# د طلاقِ احکام

## یعنی د طلاق مکمّل او مُدلّل مسائل

لیکوال

ولانا مفتی عبدالجلیل قاسمی

اضل دارالعلوم دیوبند
خپروونکي

النّاشر

حاجی سلطان محمد

غفوله ذنبی جلی والخفي

مکتبه عزیزیه کانسی روډ کوټه

# د طلاق احکام

(یعنی د طلاق مکمل او مدلل مسائل)

لیکوال


مولانا مفتی عبدالجلیل
(قاسمی)
فاضل دار العلوم
دیوبند



خپرونکی
مکتبه عثمانیه
کاسي روډ کوئټه
ناشر حاجی سلطان محمد غفر له ذنبي جلي والخفي

# دکتاب پیژندنه

| | |
|---|---|
| دکتاب نوم | دطلاق احکام |
| لیکوال | مولانا مفتی عبدالجلیل (قاسمی) |
| مترجم | مولوی سفر محمد (عابد) |
| کمپوز او سمون | پخپله مترجم |
| خپرونکی | مکتبہ عثمانیہ کاسی روڈ کوئٹہ |
| چاپونکی | حاجی سلطان محمد صاحب |
| چاپ ځای | پاکستان، لاہور |
| چاپ شمیر | ۱۰۰۰ تھوکہ |
| چاپ کال | ۲۰۱۱ فروری |



تلیفون شمیره: (۰۳۰۱-۳۷۳۷۰۳۰، ۰۳۳۳-۷۸۸۳۰۰۰)

## ناشر

حاجی سلطان محمد غفرلہٗ ولوالدیہ ربّ الاحد ولجمیع المؤمنین والمؤمنات
والمسلمین والمسلمات منہم الاحیاء والاموات آمین ثم آمین



فهرس

*تمت بالخیر*



## دمفتي مولانا نظام الدين صاحب مدظله تصديق

### صدرشعبه افتاء دارالعلوم دیوبند

الحمدلله رب العالمين والصلوة والسلام على سيدالمرسلين وعلى آله واصحابه واتباعه اجمعين !

وبعد ! محترم مولانا عبدالجلیل سلمه ددارالعلوم په فرزندانوکي يوښكاره استعدادي فرزنددی ، ددوره حديث له فراغت وروسته موصوف دافتاء په تمرين کي هم ښه شهرت حاصل کړی وو ، اوله شروع څخه يې دتصنيف اوتاليف ذوق درلود ، څرنګه چي تردي مخکي دمحترم موصوف ګومفيداوپرتحقيقي معلوماتو اومضامينو مشتمل کتابونه چاپ سوي دي ، دارازستاسوپه لاس کي كتاب ،داسلام مكمل نظام دطلاق ،پخپله يوجامع اوپرطلاق ،نكاح اودهغوئ پرمتعلقاتوحاوي اومدلل كتاب دی ، دهرې جزئي حواله يې ورکړې ،داسي تحقيقي كتاب پردي موضوع باندي تراوسه شائع سوی نه دی ،اميددی چي له دي كتاب څخه عوامواوخواصودواړوته په مساوی توګه فائده ورسيږي ، دعاکووچي ددي كتاب جلدطبع سي دعوامواوخواصولاسونوته ورسيږي دمحترم موصوف لپاره هم صدقه جاريه ،اوپه راتلوونکې کي ډيردارازنافع کتابونه دموصوف ترقلم ووځي ،مشهوره سي.

آمین یارب العالمین

نظام الدين غفرله

مفتی دارالعلوم دیوبند

بتاریخ ۱۴۰۷-۲-۲۵ه ۸۶-۱۰-۳۱ء

## دصاحب اقبال مصنف باکمال
## مولانامفتي ظفيرالدين صاحب مدظله
## مفتي دارالافتاء دارالعلوم ديوبندتصديق

بسم الله الرحمن الرحيم ! الحمدلله وكفى وسلام على عباده الذين اصطفى !

اسلام يودژوندمکمل نظام دی ، اودانساني ژوند پرټولو ګوښوباندي حاوي دی .نن .صبادطلاق اونکاح مسئلې دمسلمانانوضرورت دی ، اوپه راتلوو نکوورځوکي دهغوئ احکام اومسائل دعائلي زندګۍ مخې ته راغلې دي ، محترم .مکرم مفتی عبدالجليل قاسمی زموږدټولودشکريې مستحق دی چي هغه دې طرفته توجه وکړه .اودطلاق مکمل نظام کتاب يې دکتاب .سنت اودارازدفقهې جزئياتوپه رڼاکي دمکمل اومدلل جمع کېدوسعی کړې ده ، اوپه دې کي يې په لويه کاميابي سره متعلق کلي اوجزئی مسائل مدلل پېش کړي دي .لکه چي دکتاب دمختلفوبابونو له کتلو څخه اندازه کيږي عوام اوخواص له دې څخه زياته فائدا خستلای سي ، اوپه مسلمانه ټولنه کي داکتاب درهنمايې ښه کارکوونکی دی.

مفتی عبدالجليل سلمه ددارالعلوم ديوبندپه نووفضلاووکي دی ، مګرله ليکلو اوويلوسره خاص محبت لري ، درس اوتدريس دهغه مشغله ده ، اودلته هغه په پوهانو علماؤکي شمېرل کيږي ، له دې مخکې هم دهغه څوکتابونه شايع سوې اومقبول سوې دي.

له الله تعالی څخه دعاغواړوچي دموصوف دغه ګران قيمت خدمت کوم چي دمکمل نظام طلاق په نامه دی په هرلورمکمل کړي اوپه ورځ .شپه کي په راتلوونکومسئلو کي کارکوونکی ثابت سي زموږپوره اميددی چي ددې کتاب شائع کول دمسلمانانو لپاره نفع مندثابتيږي اودمصنف لپاره به داخيرت توښه وي

*ددعاطالب محمدظفيرالدين غفرله*
*مفتی درالعلوم ديوبند۳۱اکتوبر۱۹۸۲ء*



## سريزه

نحمده ونصلی علی رسوله الكريم امابعد!

اسلام دژوندمکمل نظام دی داسلام تعليمات دژوندهرې شعبې لره احاطه کوونکې دي يوه شعبه اسلام ترې نه ده پرې ايښې دانسان دواړه اړخونوته که هغه مثبت وي يامنفی رهنمايې کوي ، ددنياپه آبادۍ کې دانسان پيدائښت دټولو پيداشويو خلاصه ده ، که دانسان پيدائښت نه وای نوښايې الله تعالی به هيڅ شی نه وای پيداکړی ، څرنګه چي دانسان پيدائښت ته پرپرشتوباندي هم فوقيت حاصل دی ، له دې وجې انسان ته دخليفة الله فی الارض خطاب ورکول سوی دی په [ ولقد كرمنابنی آدم ] سره يې انسان اشرف المخلوقات ګرځولی دی دانسان ظاهري اوباطني جوړښت يې په حسن اوښه والی اونورواوصافوکې ترټول مخلوق احسن اوارفع جوړکړی دی له کوم څخه چي په قرآنکريم کې تعبيرپه [ ولقد خلقنا الانسان فی احسن تقويم ] سره سوی دی.

اودغه ټول ښه صفتونه په اصل کې د انسانی تخليق اودهغه دبقاء ښکارندويه دي ، ددې لپاره يې دتوالداوتناسل دسلسلې بنياداېښی دی ، له دې پرته نه دتخليق دکائناتونظام ممکن وواونه دکائناتوکوم نظام صحيح کيدی ، څرنګه چي له آدم عليه السلام څخه حواء رضی الله عنهااوبيادهغوئ داولادنه پرې کېدوونکې سلسله شروع سوه ، کوم نظام چي له توالداوتناسل سره وابسته اوتړلی دی ، ليکن داسلسله هسي فالتونه بلکي دخدای دقانون په حدودوکې شروع سوې ده اودهغه کمال په عمل کې راځي ، دکوم بنيادي ضابطه حيات چي ترټولواهمه کړۍ عقدنکاح ده ، له دې تعبيرڅخه يې اجنبياتوته په خپل شريعت کې داسي ضابطه (نکاح )ورکړې په کومه کي چي دژونددوام دښځې اونارينه په مينځ کې په محبت اومودت سره ښه زندګي تيريږي داوجه ده چي نکاح دژونداهم ترين باب دی داهم نه بلکي دهغه خلاصه ده ، له نکاح سره شريعت طلاق هم دمنفی اړخ يومحتاط باب ايښی دی.

دابغض المباحات له تصورسره دهغه حدودمقررسوي دي : ،ځکه چي چيري نکاح وي هلته دطلاق تعليمات هم په ډيراهميت سره راغلي وي ، که چيري طلاق نه واى نوښايي دنکاح وباب ته دومره اهميت حاصل نه واى په هرحال کتاب دژونددغه باب ، طلاق دلوئ اهميت حامل دى په دي شرط چي دهغه استعمال په رواطريقه سره وي مګرافسوس دى چي نن معاشره دبي لارى ښکارده دنظرياتواوتصوراتوداسي انقلاب دى چي دنکاح تصورله طلاق څخه بدل ورکوي ، نن دکثرت طلاق ترټولولويه وجه دنکاح له حقائقونه غفلت اودطلاق له تعليماتواومسائلونه ناواقفيت دى ، اوپه راتلوونکي کي په دي کي تشويشناکه اضافه کيداى سي ، ددغووجوپربناستاسوترنظرلاندي کتاب ! داسلام مکمل نظام طلاق دترتيب کوشش پيدا سو،په کتاب کي دشعبه طلاق پرټولوجزئياتوباندي مدلل بحث سوى دى دمسائلو اوحوداثوکثرت هم کتاب مزين ( ښائسته ) جوړکړى دى ډيرى داسي مسائل پکي حل سوي دي چي په ښکاره لاينحل معلوميږي ،دکتاب شروع دنکاح په اهميت اوحکمت اومقصدسره سوي ده ، دطلاق دټولوشرائطو،ابتدائي اصولووضاحت پکي سوى دى ، تقريباله طلاق سره تړلي دوه زره مسئلي په کتاب کي په مدلل توګه بيان سوي دي دخلع ، رجعت اودنکاح فسخ ،تفريق پرټولوبابونوبحث سوى دى اودهغوئ حل هم سوى دى ،دهندوستان پرسيکولرذهنيت باندي يوبهترين باب قائم سوى دى له هغه څخه دمسلم پرسنل اوله هغه سره متعلق ضروري معلومات هم سوي دي.

ددي اهم کتاب په رهنمايي کي استاذمحترم ،مربى ، ومرشدي حضرت مولانامحمودالحسن صاحب مفتى اعظم دارالعلوم ديوبنددسلوشکرونوقابل دى ، دهغه خصوصي دعاوي اوتوجهات اوشفقتونه برابراسره وو ، الله تعالى دي دهغه سايه مبارکه پرموږټولوقائمه لري ، استاذمحترم حضرت مفتى نظام الدين صاحب ، حضرت مفتى ظفيرالدين صاحب مدظلهمامفتيان دارالعلوم



ديوبندهم دشکريي مستحق دي ددواړومشفقانه توجهات برابراسره مل وو ، اوهغوئ له خپلوغيرمعمولي مشغوليتونوسره ،سره په خپلوتقريظاتوهم ونازولم.

په اخيرکي زمادمشفق اومربى حضرت مولاناوحيدالزمان صاحب مدظله استاذدارالعلوم ديوبندترټولودشکريي مستحق دده شفقت اوخصوصي توجه وه چي دکتاب طباعت( چاپ ) ممکن اوآسانه سوالله تعالى دي دحضرت مولانا دا مخلصانه خدمت اوزماناچيزداصلاح معاشره دغه کم محنت قبول کړي اودنجات باعث يې جوړکړي آمين.

وبالله التوفيق وهوالمستعان وصلى الله عليه

خيرخلقه وآله محمد وصحبه اجمعين !

احقر: عبدالجليل(غفرله)

مفتي جامعه اسلاميه مدينه مدنى نگرکلکته ۵۱ ۲۰ ربيع الاول ۱۴۰۷هج

## دنکاح فلسفه

دکتاب شروع هم دنکاح دفلسفي له عنوان نه کيږي که څه هم اصلي مقصداودتاليف مرکزى نقطه نظرطلاق دى ، ليکن څرنګه چي دطلاق وجودله نکاح پرته کيږي نه ،ځکه نودکتاب په شروع کي نکاح اوپه اسلام کي دهغي شرعي حيثيت اودهغي اسراراوحکمتونه واضحول مناسب معلوميږي په دي کي شک نسته چي دانساني نسل دبقااودهغه داخلاقي قدرونوحفاظت له اسلامى قانون اودخداى له حدودوپرته ممکن نه دى ،د انبياء عليهم السلام دراليږلومقصدحقيقي دنظام زندګي اصلاح وو ،دانساني اخلاقوبرابرول او انسانيت ته اعلى مقام ورکول هم دهغوئ دمقصداهم جزوو، څرنګه چي پيغمبراسلام صلى الله عليه وسلم دخپل بعثت منشا ( علت ) دمکارم الاخلاق (ښواخلاقو ) پوره کول ښوولي ده ، دنبى عليه السلام قول دى : بعثت اليکم لاتمم مکارم الاخلاق.

ظاهره ده چي کله انساني آبادي نه وي نومکارم اخلاق اودنظام حیات تعلیم به چیري وي ؟ څرنګه چي الله تعالی دآدم علیه السلام اوحواء رضی الله عنها په ذریعه ددنیاله آبادۍ څخه دانسان شروع وکړه دارازیې دنیاآباده کړه اودخدای دجوړسوې قانون په دائره کې به انسان زندګي تیروي ، اوانساني قدرونه یې مضبوط اومستحکم کړل تردي چي دنبی خاتم النبیین صلی الله علیه وسلم بعثت وسواوهغه دزندګۍ هره شعبه دخدای په قانون سره مکمله کړه ، خصوصاپیا ازدواجي زندګي ته یې محکم اصول کېښودل ، ددې لپاره چي ددې په ذریعه انساني نسل تراعلی لا اعلی مقام ترلاسه کړي ، دارازدښځي اوخاوند له تعلقاتوڅخه چي په راتلوونکې کوم نسل پیداکیږي اورشتي قائمیږي له هغوئ څخه دنفع اخستلولپاره یې دمهراونفقې قوانین اواصول جوړکړل ، درضاعت (تی رودلو ) ضابطه یې مقرره کړه اودموراوزوئ حقوق اوفرائض یې مقررکړل.

په ځیني حالاتوکې دتعدادازدواج له اجازې څخه دښځینه اونارینه دعصمت اوآبرودحفاظت فلسفه ثابتیږي ، په اسلام کې دمتعددوښځوکولوپه صورت کې ددوئ په مینځ یاشپه تیرولواوتعلقاتوکې دتقسیم اوقات وضاحت وتشریح سوې ده ددې لپاره چي دکومې یوې حق وهنه ونسي اوپه خپلوکې دګیلې اوشکایت موقع پیدانسي ، ماپخپله ددې کتاب په مختلفوبابونوکې پردغو ټولوخبروباندې لنډبحث کړی دی ، لیکن کتاب دژوندپراهم ترین باب طلاق باندې تفصیلي بحث کړی دی ددې لپاره چي انسان له زناکارۍ ،بدکارۍ اوله داسي متعدی ګناهونونه صرف خپله شرمګاه وآبرووساتي بلکي په راتلوونکې کي خپل نسل هم وساتي دکوم تباهي چي یورپ ته پریوداسي موږورځي کوم چي تراټیم بم زیات خطرناک اوترهائیډروجن بم زیات تباه کوونکې دي.



## په اسلام کې دنکاح حیثیت

الله تعالی دخپل لوئ نعمت بندګانوته خطاب کوي اواعلان کوي: فَانكِحُوا مَا طَابَ لَكُم مِّنَ النِّسَاء الآیة .ترجمه: نکاح کوئ له هغوښځوسره چي تاسوته معلومې وي: ظاهره ده چي دجنسي آرام ځای ښځه ده ، دخپل ازدواجی تعلق لپاره سلیم الطبع اوصحیح الفطرت انسان دښځې انتخاب کوي ، په دې باب کې رب العالمین دهغه دخوښوالې اوطبعي رغبت پوره لحاظ کړی دی اودانتخاب یې هغه ته اختیارورکړی دی ، دنکاح په خوبیانواودهغې په فضیلتونوباندې هم سروردوعالم صلی الله علیه وسلم اګاهي ورکړې ، څرنګه چي یې په حدیث کې نکاح ته دخیراوبرکت مجموعه ویلې دي: عن عائشه رضی الله عنها قالت: قال النبی صلی الله علیه وسلم ان اعظم النکاح برکتا ایسره مؤنة رواه البیهقی.

ترجمه: عائشه رضی الله عنها وایي: چي نبی علیه السلام ارشادکوي: برکتمنه نکاح هغه ده کومه چي له تکلف څخه خالي وي:

په یوه روایت کې یې نکاح ته نیم دین ویلې دي دنبی علیه السلام ارشاددی: اذاتزوج العبدفقداستکمل نصف الدین فلیتق النصف الباقی (مشکوٰة شریف) ترجمه: نبی علیه السلام وایي: چي کله بنده نکاح وکړي نوهغه نیم دین پوره کړدپاتي نیم حفاظت دي کوي.

دمرقات ملاصاحب دنصف دین په توضیح کولوکې دعلامه غزالی دغه نظریه رااخستې ده : وقال الغزالی رحمه الله الغالب فی افسادالدین الفرج والبطن وقدکفی بالتزوج احدهما لان فی التزوج التحصن وکسرالتوقان ودفع غوائل الشهوة وغض البصروحفظ الفرج ص: ۱۹۴ج: ۲) ترجمه: ددین په تباهي کې لویه حصه دشرمګاه اونس ده له واده وروسته له یوه طرف نه اطمینان حاصلیږي له دې وجې په واده کولوسره له شیطان څخه خلاصون اودشهوت له خطرناک مرض څخه خلاصون پیداکیږي دشهوت دتقاضا

قابو کول دنظر له تهمت څخه دپاکوالي اودشرمګاه دحفاظت دسامان پیدا کېدل دي .

په یوه روایت کې ناواده نارینه اوبې خاونده ښځې ته خطاب دی: چې هغه نارینه مسکین دی دکوم چې ښځه نه وي صحابه رضی الله عنهم وویل که څه هم هغه مالدار وي نبی علیه السلام وویل که څه هم مالدار وي اوهغه ښځه هم مسکینه ده دکومې چې خاوند نه وي که څه هم مالداره وي ( جمع الفوائد ج:۱ ص: ۲۱۷ )

په یوه حدیث کې دکوم چې روایت کوونکی عبدالله بن عباس رضی الله عنما دی : نکاح ته یې ترتولوزیات دمحبت باعث ویلې دي : لم یرالمتحابین مثل النکاح (مشکوة شریف) ترجمه: په دوومحبت کوونکو کې دنکاح په څیربل نظیرنسته.

رسول صلی الله علیه وسلم نکاح ته ددین اوایمان حصه ویلې دي که څه هم په ښکاره باندې دنکاح له ایمان سره هیڅ ربط نه معلومیږي مګرپه عمیق نظرېې په جائزه اخستلوسره ډېرزیات تعلق معلومیږي ،ځکه دنکاح تعلق که څه هم له ظاهري اعمالوسره دی لیکن دباطن په پاکوالي کې هم ددې رول ډېراهم دی داوجه ده چې فقهاء کرامونکاح صرف دمعاملاتوپه فهرست کې نه ده شمارکړې بلکې دعباداتوپه بابونوکې یې هم دې ته دخل ورکړی دی ، لکه څرنګه چې یوارخ له معاملاتوسره مشابه دی نوبل ارخ دعباداتوهم په دې کې موجوددی ، علامه ابن نجیم مصری رحمه الله صاحب بحرالرائق پردې بحث کړی دی: له خپل تحقیق پرته یې دصاحب بدائع الصنائع دلائل هم فرمایلي دي: له هغه څخه نکاح په حیثیت دعبادت ښه واضح کیږي لیکلي یې دي : وذکرہ بعدالعبادات لانه اقرب الیهاحتی کان الاشتغال به افضل من التخلی لنوافل العبادات ص: ۷۲ج: ۳ ) له عبادت سمدستي وروسته دنکاح ذکرکول ددې له عبادت سره دنژدېوالي واضح ثبوت دی څرنګه چې په ازدواجي تعلق ( نکاح ) کې اشتغال تراشتغال په نفلي عبادت بهتره دی .بل ځای له خپل تحقیق سره دصاحب بدائع تحقیق پېشوي : وافادبالسنة ان الاشتغال



به افضل من التخلی لنوافل العبادات ولذاقال فی المجمع تفضله علی التخلی للنوافل واستدل له فی البدائع بوجوه الاول ان السنن مقدمة علی النوافل بالاجماع ، الثانی انه اوعدعلی ترک السنة ولاوعیدعلی ترک النوافل ، الثالث انه فعله رسول الله صلی الله علیه وسلم وواظب علیه وثبت علیه بحیث لم یخل عنه بل کان یزیدعلیه ولوکان التخلی للنوافل افضل لفعله واذاثبت افضلیته فی حقه ثبت فی حق امته لان الاصل فی الشرائع هوالعموم والخصوص بدلیل ، الرابع انه سبب موصل الی ماهومفضل علی النوافل لانه سبب لصیانة النفس عن الفاحشة عن الهلاك بالنفقة والسکنی واللباس ولحصول الولد الموحد ص: ۸۰ج: ۲ بحرالرائق )

ترجمه: له سنت څخه افاده کیږي چې اشتغال په نکاح افضل دی ترتخلي (خالي کېدل ) دنفلي عباداتولپاره له دې وجې یې په مجمع الانهار کې یې فضیلت دنکاح ویلی دی پرتخلي ونوافلوته اوپه بدائع کې یې استدلال کړی په څووجوسره اوله وجه داچې سنن ( سنة ) ترنوافلومقدم دي په اجماع سره ، دوهمه داچې په ترک دسنتووعیدسته اوپه ترک ( پرېښوولو ) دنوافلو وعیدنسته ، دریېمه داچې نبی علیه السلام دنکاح فعل کړی دی اوپرهغه یې همېشتوب کړی په دې حیث چې تخلي خوېې نه ده کړې بلکې په نکاح کې یې زیاتوب لاکړی دی ،نوکه چیرې تخلي نوافلولره افضله وای نونبی علیه السلام به کړې وای نوکله چې دنکاح افضلیت دنبی علیه السلام په حق کې ثابت سونودامت په حق کې هم ثابت دی ولې اصل په شرائعوکې عموم دی خصوص که ووهم په دلیل سره به وي ، څلورم داچې نکاح سبب رسوونکې ده وهغه ته چې هغه مفضل ( غوره ) وي پرنفلوولې داسبب ده دصیانة ( ساتنې ) دنفس له زناڅخه کومه چې هلاکوونکې ده په نفقه ، سکنی اوجامه باندې اوله وجې دحصول دولدموحد.

دتحقیق اوپلټنې په مرسته راقم الحروف دې نتېجې ته ورسید چې نکاح اصالة عبادت دی (یعنی په خپل ځان کې عبادت ده دبل چاتابع نه ده ) خوددې عبادت پوره کېدل پرته دښځوله حقونویعنی نفقه ، کور، اوجامه ممکن نه وو، کوم چې له ټولومعاملاتوسره اړه لري ، له دې وجې یې هغه دمعاملاتوپه ضمن کې هم

شامله کړه لکه څرنګه چي حج پرهرمالدارکله چي یې دحج شرائط پوره وي فرض کیږي اوهغه بېله شکه عبادت دی ، له معاملاتوسره هیڅ تعلق نلري ، مګردحج دفرض کېدودبنیادي شرائطوتعلق له معاملاتوسره دی ، ځکه کله چي دحج لپاره سفرکوي نودالازمه ده چي کوربه پرېږدي اوځي به نودښځې اواولادلپاره دده ترراتګه پورې دهغوئ نان ،نفقه دده په فرائضوکې داخل دي ، لنډه داچي بعضی شیان دبعضوشیانولپاره دشرائطواوعللوپه درجه کې وي مګرپه دې وجه سره دهغه شی په حقیقت کې هیڅ فرق نه راځي داوجه ده چي دامام اعظم رحمه الله په نزدنکاح کول ترنفل لمانځه غوره ده په دې شرط چي دنکاح شرائط پوره کړي ، حالانکه نفل لمونځ عبادت دی ، اوددې ترټولولویه وجه داده چي کله انسان نکاح کوي ، دهغه په طبیعت کې دسلامتي عنصرغالبیږي نوپخپله دخپلونفسیاتي خواهشاتوپوره کېدل په جائزاوشرعي حدودوکي کول غواړي اوله زنا ،بدکارۍ ، بدنظرۍ اوداسي ناروااوخلاف شرع امورونه ځان ساتل خپل فرض ګڼي له نکاح وروسته تقربیاددې پوخ سامان برابرېږي چي هغه په دغه معصیتونو( ګناوو ) نه اخته کیږي څرنګه چي مشاهدات ددې تائیدکوي اودرسول صلی الله علیه وسلم له حدیث څخه هم ددې په زورسره تائید کیږي په یوه روایت کې نکاح له ګناهونوڅخه دځان ساتلوقوي سبب بلل سوې ده ، دنبی علیه السلام ارشاددی : قال رسول الله صلی الله علیه وسلم یامعشرالشباب من استطاع منکم الباءة فلیتزوج فانه اغض للبصر واحصن للفرج ( مشکوة شریف ) ترجمه : ای دځوانانوډلې په تاسوکې چي څوک پرنکاح اودهغې دحقوقوپر اداکېدوقادروي نونکاح کول پکاردي په دې سره شرمګاه محفوظ کیږي اوله بده نظره ساتل کیږئ.

**نکاح اووروروګلوي**

قدرت نکاح نه صرف دتوالداوتناسل اودنسبونودحفاظت ذریعه جوړه کړې بلکي له دې تعلق څخه چي کوم اتحاد ، اتفاق ، الفت اومحبت پیداکیږي دهغه وطرفته هم شاره کوي ، موږلیدلې دي چي هلک اوانجلۍ پردي وي له دې پردې



والي سره سره ، دنکاح رشته ددوئ دووترمینځ قائمیږي ټول پردی والی اولیري والی ختم کیږي ددوئ دواړوپه زړونوکې په قدرتي توګه الفت اومحبت پیداکیږي اودغه انس اومحبت په وختي توګه نه بلکي دژوندترپایه ، په هغه کي کمی هم نه وي بلکه نوره اضافه پکي کیږي.

په قرآنکریم کې ددغه الفت اومحبت تعبیرداسي کیږي : وَمِنْ آيَاتِهِ أَنْ خَلَقَ لَكُم مِّنْ أَنفُسِكُمْ أَزْوَاجًا لِّتَسْكُنُوا إِلَيْهَا وَجَعَلَ بَيْنَكُم مَّوَدَّةً وَرَحْمَةً إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ الآية !

ترجمه : په دغولوړوغلاموکې داده چي موږستاسوله ځانونونه جوړه پیداکړې یاست اوستاسوپه مینځ کې مومحبت اورحمت پیداکړی دی.

دقرآن اوحدیث له تشریحاتونه ددې خبرې په واضحه توګه اندازه کیږي چي په دنیاکې له نکاح پرته هیڅ بله داسي ذریعه هم نسته اوله نکاح پرته بله هیڅ داسي طریقه نسته دکومې له وجې چي داوږدې مودي اجنبیت ختم کیږي دالفت اومحبت سلسله قایمئږي بلکي که چیري له آزادنظرنه کارواخستل سي نوپه نکاح کې دننه دپوره نظام کائنات دچلولو ، اوپه انساني زندګي کې داتحاد ، اتفاق ، اخوت ، ورورګلوۍ ، دوستۍ اوصله رحمي لویه فلسفه په نظرراځي دنکاح پرحقائق له غورکولووروسته هرانسان ددې خبرې پرسوچ کولو مجبوریږي چي قدرت دهرانسان په زړه کې دمحبت اومینې پوره صلاحیت ایښی دی.

**دنکاح حکمتونه**

حقیقت دادی چي که چیري ښځه اونارینه په یوه رشته کې سره یوځای نسي اودهغوئ دفطري خواهشاتودپوره کېدولپاره دقدرت له لورې داصولو ، قوانینو ، حدودو ، اوضوابطوکوم جائزاومعقول انتظام ونسي ، نودحیوان اوانسان امتیازبه هم ختم سي اومعاشره څه چي ټول کائنات به ناپاکه سي لیکن قدرت چي انسان پیداکاوونودهرفردلپاره یې جوړه هم پیداکړه اوپه معلومو حدودوکي دژوندتیرولوطریقې اودهغه قوانین یې هم دخپل محبوب صلی الله

علیه وسلم په ذریعه وروښوول ، په قرآنکریم اوحدیث کې دنکاح داسراروا وحکمتواودهغې دتعلیم اوترغیب لویه ذخیره موجوده ده دخدای تعالی ارشاددی : وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ مِنَ الْمَاءِ بَشَرًا فَجَعَلَهُ نَسَبًا وَصِهْرًا وَكَانَ رَبُّكَ قَدِيرًا ( سوره فرقان آیت ۵۴ ) ترجمه: هغه ذات دی کوم چي داوبوله څاڅکوڅخه انسان پیداکړاوهغه یې خاندان والاجوړکړاوستاسورب قدرت والادی.

په بل ځای کې دخدای تعالی ارشاددی : وَأَنكِحُوا الْأَيَامَىٰ مِنكُمْ وَالصَّالِحِينَ مِنْ عِبَادِكُمْ وَإِمَائِكُمْ إِن يَكُونُوا فُقَرَاءَ يُغْنِهِمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ( سورنور )
په تاسوکې چي کوم څوک بې نکاح وي دهغوئ نکاح وکړئ دارازخپلومرېیانو اومینځوته کوم چي دنکاح لائق وي هم نکاح وروکړئ که هغه مفلس وي نو خداوند دې په خپل فضل غنیان وګرځوي.

اوس ستاسوپه خدمت کې دنبی علیه السلام ارشادات پیشیږي : تناکحواوتناسلواو تکثروافاني مباه بکم الامم یوم القیامة (مشکوة شریف)
ترجمه: نکاح کوئ ، نسل غځوئ ، اوډیروئ یې ،ځکه چي زه ستاسوپه ډیروالي سره دقیامت په ورځ دنوروقومونوپه مقابله کې فخرکوم.

بله ځای راغلي : تنکح المرأة لاربع ، لمالها، ولحسبها ولجمالها ولدینها فاظفر بذات الدین تربت یداك ( مشکوة شریف ) ترجمه : دنکاح په څلوروجوسره کوي : دښځې ددولت ، دهغې د خانداني عزت ،دهغې دښائست اودهغې ددینداري په وجه ،خو دینداره اختیاروئ.

حمیدبن عبیدله انس رضی الله عنه څخه اوږدحدیث روایت کړی وایې : جاء ثلث رهط الی بیوت ازواج النبی صلی الله علیه وسلم الخ !اووي ویل : اذااتاکم من ترضون دینه وامانته فزوجوه الا تفعلوه تکن فتنة فی الارض وفساد کبیر!
ترجمه : کله چي ستاسومخې ته داسي خلک راسي دکوموپردینداري اوامانتداري چي ستاسواعتمادوي نودبې واده نکاح فوراکوئ اوتاسوداسي



مه کوئ چي په مځکه کې فتنه اوفسادخپورکړئ اوله هغه څخه لوېې خرابی پیداسي.
دغه ټولې فائدې اوترغیبات دنکاح له اسراروڅخه دي اوس موږداصل مقصد ته راځودکوم بیان کول چي زموږبنیادي محوردی.

**دطلاق حقیقت**

په تیروسووټکوکې داواضح سوه چي نکاح دیوداسي تعلق اورشتي نوم دی دکوم په ذریعه چي دنوع انسان هرفرددنسل له بقاء سره ،سره خپل جنسي خواهشات دشریعت په حدودوکې دننه ، په جائزه طریقه پوره کوي ، ددې لپاره چي په انسان کي کوم دحیوانیت عنصر(شهوت )موجوددی دهغه دآرامولو لپاره یوبل طرفته ونه ګرځي اوپه زناکارۍ ،بدکارۍ اوپه داسي اخلاقی، مذهبي اوقانوني جرم کې له اخته کېدوڅخه انسان وژغورل سي په داسي کولو به معاشره له ټولوخرابیونه پاکه سي ، ځکه نودنکاح له تعلق څخه چي کوم محبت اواړیکې پیداکیږي په هغه کې خلوص اوسادګي وي ، له هغې څخه راتلوونکی نسل جوړیږي ، څرنګه چي دمعاشرې ددې حسن دباقي پاتي کېدولپاره شریعت مطهره طلاق یوداسي ناخوښه شی په بعضوحالاتوکې رواکړی دی ، ،ځکه چي ډیرځله له نکاح وروسته دفطري کمزوریو، جسمانی ، جنسی قوت نشتوالی ، معاشی تنګي ، دطبعیت نه موافقیت ، اونوراسباب اومحرکاتو په وجه دنکاح له حقیقي منافعونه انسان بې برخي وي ، دنکاح په ښه والي باندي پرده اچوي ، اوددې پرځای چي په خپلوکې یې محبت اوالفت ، صله رحمي اوهمدردي وای بغض ، عداوت ، دښمني اوکینه اوداسي نورمهلک امراض پیداسي اوزندګي دځان عذاب جوړه سي اودارازدازدواجي زندګی اتحاد ، اتفاق اودهغې ټول مصالح بربادسي ، پردې سنګینې اوپیچلې موقع دجلاوالي سخت ضرورت راپیداسي ، اسلام پرداسي نازکه اوحساسه

موقع باندي دطلاق استعمال جائزگرځولی دی ، چي دواړه جلا ،جلا خپله کامیا بي بخښونکي ژوندگي تیره کړي.

**پرطلاق ورکولوتهدید(دمکي)**

له دي وجي شریعت دداسي موقع لپاره یوتفصیلي قانون وضع کړی ددي لپاره چي بې ځایه استعمال نسي ، بلکي چیري چي ددي شدیدضرورت محسوسیږي صرف هلته یي استعمال کړئ له دي پرته دزماني په فلاسفه ،طبي اوسائنسي توګه داثابته سوې چي ښځې دخپل جسماني ساخت اوداعضاؤدوظیفوپه هراعتبارترنارینه ووکمزوري دي اونارینه دخپل جسماني قواوواودخپلو اعضاؤپه اعتبارترښځوقوي دي اوپه هغوئ کې دتحمل اوبرداشت زیات طاقت سته خوله دي سره ،سره بېله سخت ضرورته اوبېله څومراحلوتیریدونارینه ته هم دطلاق داستعمال اجازه نه ده ورکول سوې بلکې په مختلف اندازکې ددي له استعمال څخه منع سوې ده په قرآنکریم کي چي چیري دطلاق یادونه سوې وي دهغه له په غورمطالعه کولوڅخه معلومیږي چي په اول وارله طلاق ورکولو څخه منع سوې ده اودامکان ترحده ( ترخپله وسه ) پوري له طلاق څخه دځان ساتلوترغیب ورکول سوی دی ،دخاونداومېرمني دتعلقاتودټینګ ساتلوتائید سوی دی ، په خپل مینځ کې داختلاف په صورت کې دیوله بل سره دمشورې کولوبلکي دهغې تائیدورکول سوی دی.

وَاللّٰتِي تَخَافُونَ نُشُوزَهُنَّ فَعِظُوهُنَّ وَاهْجُرُوهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوهُنَّ فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوا عَلَيْهِنَّ سَبِيلًا إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيرًا ( القرآن )

ترجمه : له کوموميرمنوڅخه چي تاسوته دنافرانۍ خطره وي نونصیحت ورته وکړئ ، له هغوئ څخه خپله بستره جلا کړئ ، جسماني سزاورکړئ ، که چیري ستاسواطاعت وکړي نوبیاتاسونوري بهاني مه ورته کوئ.

په بل ځای کي ارشادمبارک دی:

وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِن بَعْلِهَا نُشُوزًا أَوْ إِعْرَاضًا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَن يُصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا !



ترجمه : کومه میرمن چي دخپل خاونده بدچلند څخه ویریږي یادهغه دبې اعتنایې ( بې پرواهي ) شک ورته وي نوپردوئ باندي په خپلوکې په صلح کولوهیڅ ګناه نسته.

خدای دې نه کوي که ددوئ په مینځ کي تعلقات زیات خراب سي یابې قوي اندېښنه وي نوبیاداحکم ورکول کیږي چي میرمن اوخاونددواړه خپل ځانونه په کنټرول کي کړي په خپل مینځ کي نفاق دحکم ( دربیم ګړي ) په ذریعه ختم کړي لکه څرنګه چي ارشادرباني دی: وَإِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوا حَكَمًا مِّنْ أَهْلِهِ وَحَكَمًا مِّنْ أَهْلِهَا !

که یقین وي چي که چیري داپه حسن نیت سره خپل فرائض اداکړي نوضرور کامیابیږي له ذکرسوې آیت څخه داواضح کیږي چي دطلاق تراستعمال مخکې دغه ټول مراحل تیرول ضروري دي بیاکه چیري ضرورت محسوس سونوصرف یو طلاق دي ورکړي هغه که دلیک په ذریعه وي یازباني ددې لپاره چي په آئنده کي لاري خلاصې سي.

دنبی علیه السلام چي څه ارشادات دطلاق په سلسله کي راغلي هغه ډیر واضح دي اوددي داستعمال پراختیارباندي یې لویې پابندۍ لګولي دي: عن ابن عمررضی الله تعالی عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال ابغض الحلال الی الطلاق ص: ۲۸۳ (مشکوة شریف)

په یوه روایت یې پرهغه ښځه باندي دجنت خوشبویې حرامه ګرځولي کومه چي پخپله دطلاق سوال کوي په حدیث کي دي : ایما امرأة سالت زوجها طلاقاً فی غیرما باس فحرام علیها رائحة الجنة (مشکوة شریف : ص ۲۸۳ )

په یوه راوایت کي دکوم تخریج چي ابوداؤدکړی له طلاق ورکولوڅخه منع راغلي ده ارشادرسالت دی: تزوجوا ولاتطلقوا فان الطلاق یهتزله عرش الرحمن.

ترجمه: نکاح کوئ ، طلاق مه ورکوئ ،ځکه په طلاق ورکولوسره عرش لړزیږي دارازپه یوه روایت کي دطلاق پرغلط استعمال باندي رسول الله صلی الله علیه وسلم دخپلې سختي ناراضګۍ اظهارکړی دی دکوم روایت کوونکی چي

محمودبن لبیددی: قال أخبررسول الله صلى الله عليه وسلم عن رجل طلق امرأته ثلث تطليقات جميعًافقام غضبان ثم قال ايلعب بكتاب الله عزوجل وانابين اظهركم حتى قام رجل فقال يارسول الله صلى الله عليه وسلم الااقتله (مشکوة شریف ص: ۲۸۴)

پهبل ځای کې یې دحیض (میاشتنی مریضی) په حال دطلاق ورکول معیصت (گناه) بللی دی خو په دې حالت کې ورکول سوی طلاق واقع کیږي له پورته ذکرسویواحادیثوڅخه ښه اندازه کیږي چې طلاق دالله تعالی اودهغه درسول صلی الله علیه وسلم په نزدڅومره ناخوښه دی خوپرهغوخلکوحیرانتیاده کوم چې دخو،ځواولادوخاوندان هم وي محض پرمعمولي خبروباندي دطلاق حربه استعمالوي اوبیانووروسته پښېمانه اوشرمنده وي، دصلح صفايي له فتوی او تلاش کولوڅخه بیااندازه کیږي چې طلاق ورکولووالاهم په دې باندي خوښ نه دی.

## طلاق ولې ابغض المباحات (په رواشیانوکې ناخوښه) دی؟

حقیقت دادی چې شریعت طلاق ورکولوته صرف دسخت ضرورت په صورت کې اجازه ورکړې ده، داوجه ده چې که چیري یې څوک بې محله استعمال کړي یاله دې څخه کیل جوړکړي یایې له طلاق څخه پرښځوباندي ظلم اوزیاتی مقصود وي نوبیاددې نوعیت بدلیږي اوعندالله هغه اقدام ناخوښه شمارل کیږي، ځکه چې دطلاق په وجه ددووخاندانونواتفاق اوتحادبربادیږي صرف دانه بلکي په آئنده کې پرمعاشره اوخاندانونوباندي ناقابل تلافي اثرپریوځي، په ضمني توگه هلته داویل هم مناسب دي چې دمیرمنوپه سلسله کې تراسلام مخکې په مختلفومذاهبواودینونوکې دمیرمنوکومه درجه وه اواسلام هغه ختم کړل ښځوته یې اعلی اوارفع مقام ورکړ، له دې هم معلومیږي چې دطلاق استعمال ازروئ شرع ترکومه درست دی.
ارشادمبارک دی:



يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً (سورة نساء)

ترجمه: ای خلکوله خپل رب نه وویریږئ کوم چې تاسوله یوه ځان نه پیداکړې یاست اوله هغه څخه یې دهغه جوړه پیداکړه اوله دغودواړونه یې ډیرنارینه اوښځې خواره کړل (له جوړه څخه آدام علیه السلام اوحواء رضی الله عنها مراددی) دقرآنکریم له مطالعې څخه معلومیږي دنارینه اوښځې تعلق دجامې اوبدن دی لکه څرنگه چې وایي: هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ !

ترجمه: هغه ستاسولپاره جامه دي اوتاسودهغوئ لپاره.

دارازدښځودحقوقودښوولوقرآنکریم صفااعلان کوي: وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِي عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ ! زیات دادی چې قرآنکریم دازدواجي زندگۍ صحیح تیرولو، په اتفاق ،اتحاد، محبت اوالفت سره اوسېدلو په خپل مینځ کې دحسن چلند کولو ترغیب اوتعلیم ددې آیت په ذریعه کړی دی: وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ فَإِن كَرِهْتُمُوهُنَّ فَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا شَيْئًا وَيَجْعَلَ اللَّهُ فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا !

له هغوئ سره په نیک اندازکې ژوندکوئ اوکه چیري ستاسوناخوښې وي نوممکن دی چې تاسویوشی ناخوښه گڼئ خوالله تعالی په هغه کې ډیره نفع اینبې وي.

په دې باب کې احادیث هم په کثرت سره موجوددي دنمونې په ډول څه روایت تاسوته پیشیږي: عن ابى هريرة رضى الله عنه عن النبى صلى الله عليه وسلم قال من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فلايؤذى جاره واستوصوابالنساء خيرًافانهن خلقن من ضلع وان اعوج شئ فى الضلع اعلاه فان ذهبت تقيمه كسرته وان تركه لهم يزل أعوج فاستوصوابالنساء متفق عليه (مشکوة شریف)

ترجمه: رسول صلى الله عليه وسلم وایي: کوم سړی چې پرالله تعالی اوداخیرت پرورځ ایمان لري هغه دې خپل همسایه نه آزاروي اوله میرمنوسره دې ښه چلند کوي ولې هغه دنارینه له چپې پښتۍ نه پیداسوې ده اوپه پښتۍ کې لو ړه

حصه ترې لونړي. وي که يې چېرې سيده کوې نوماتيږي اوکه يې چېرې پرېږدي نوکږه پاتېږي له دې وجې نوله ښځوسره په خوشحالۍ مخامخ کېږئ.

دښې معاشرې يوه بله نمونه په کومه کې چې نبی عليه السلام دعدل اوانصاف دمجسمه کېدوسره ،سره دخپل کوتاهې دويرې اظهارکوي ، دصديقه رضی الله عنهاله ژبې نه اورېدل کيږي: کان رسول الله صلى الله عليه وسلم يقسم فيعدل ويقول اللّهم هذا قسمي فيما املك فلا تلمني فيما تملك ولا املك يعني القلب (جمع الفوائد ص: ۲۲۴)

ترجمه: دخدای پيغمبرصلی الله عليه وسلم دازواج مطهرات لپاره وارمقررکړی وو، ويل يې خدايه پاکه دازماله لوري واراوتقسيم دی کوم چې زماپه اختيار کې دی البته په کوم کې چې زماارادې اواختيارته دخل نه وي په هغه کې مې مه نيسې.

کله چې يې دښځې دحقوقوپه باره کې صحابه رضی الله عنهم پوښتنه وکړه : عن حكيم بن معاويه تعشيرى عن ابيه قال قلت يارسول الله صلى الله عليه وسلم ماحق زوجة احدنا عليه قال ان تطعمها اذا طعمت وتكسوها اذا اكتسيت ولاتضرب الوجه ولاتقبح ولاتهجرالافى البيت رواه احمد بلوغ المرام ص:

۷۷.حکيم بن معاويه رضی الله عنه له نبی صلی الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړه: چې يارسول الله صلی الله عليه وسلم پرماباندې زمادمېرمنې څه حق دی وې ويل داچې ته ډوډۍ خورې نوپه هغې يې هم وخوره اوچې کله ته جامې اغوندې نوپه هغې يې هم واغونده ،پرمخ يې په څاپېړه مه وهه اوسپکې مه ورته وايه ،که چېرې ضرورت وي نوپه کورکې يې پرېږدي دتنبيه په توګه قطع تعلق ورسره وکړه.

له يادوسويواياتونوڅخه دمېرمنوحقوق ، له هغوئ سره همدردې اوښه چلند داسلام کومه نظريه چې پيش سوې هغه ښه واضح ده ، ښکاره ده چې کله اسلام دمېرمنوکوچنی ،کوچني حقوقورعايت کوي اودقانون پرشايې داخلاقي تعليماتوښوونه کړې چې انسان دخپل زړه په عدالت کې پخپله فيصله وکړي ، څکه چې دقانون اخلاقي له قوت پرته دهيڅ قسم خيرداعي نسي کېدای نواوس



دطلاق ابغض المباحات کېدل دورځې په څيرروښانه کېږي له دې وجې چې ددوروروحونويوځای والی دهمېشه لپاره ختم کيږي ، څرنګه چې دمېرمنودظلم پرنښانه جوړولوباندې په قرآنکريم اواحاديثوکې سخت وعيدونه راغلې دي اوله دې وجې نه يې په اخيرت کې ددرناک عذاب نقشه ورته کېښوده اوله هغې يې ووېراوه.

### دطلاق قانون اودهغه اهميت

له نکاح څخه دمعاشرې سمون ، په خپلوکې دتعلقاتوپوخ والی ، توالداوتناسل له داسې نعمتونونوڅخه انتفاع ، ښځوته پرنفرت باندې سخت تهديد(دمکې ) اوپه محبت سره دمخ کېدوترغيب ، ديوبل دفطري حقوقواداکول ، دجذباتواو خواهشاتوپه آراموکې دفطرت انساني درعايت کولوپه وجه الله تعالی نکاح جائزکړې ده . دهغې اصول يې مرتب کړې دي اودهغې حدوديې معلوم کړې دي ، دهغه دائره يې واضح کړې ده په مخکښيوړقوکې داخبره تېره سوه چې نکاح دانسانيت دبقاء اودزندګۍ دصحيح نظام لپاره يوعظيم ترين نعمت دی ، دارازطلاق هم په حقيقت کې يوانعام خداوندي دی چې نارينه ووته يې ورکړی دی ، څکه ډېروخت دنکاح په مصالحوکې دننه مفاسدپيداکيږي دمحاسنو پرځای خرابۍ رامينځ ته کيږي اوازدواجي زندګي ګرانه سي ،داتحاد ، اتفاق او صله رحمي پرځای عداوت اودښمنني پيداکيږي ، له دې وجې ازدواجي زندګي پخپله عذاب جوړيږي حقوق العبادخوڅه کوي دحقوق الله په اداکولوکې چې کومې کوتاهيانې کيږي هغه هم دبيان قابلې نه دي څرنګه چې په دې صورتونو کې دنکاح ټول مصالح معطل کيږي له دې وجې نوپه داسې مواقعوکې جلا والی نهايت ضروري کيږي ددې لپاره چې ددغوخرابيوصحيح تدارک ( دفع ) وسي الله تعالی په داسې مواقعوکې داسې ناخوښه شی (طلاق ) مباح نه بلکې مستحن کړی يې دی پرامت مسلمه يې يولوئ احسان کړی اوحقيقت دادی چې که چيري دغه قانون طلاق نه وای اوپه زرګونوواره ښځې له مظالمواومصائبونه

پرېشانه کېدای کله چې دخلاصې لارپاته نشي نوپه ناجائزاوحرام کاري کې به مبتلاکېدای او داخبره به صرف تردوئ پورې محدوده نه وه بلکې پوره ملت اوټوله معاشره به په دې اخته لېدل کېده.

دخدای شکردی چې دهغوئ دزندګۍ برقرارساتلولپاره يې نکاح يوداسې مثبت اړخ نعمت بللی ، همداقانون دطلاق په ذريعه يې دنکاح دمنفی اړخ هم رعايت کړی هوددې خبرې ضرورخيال کول پکاردي چې نکاح ددې لپاره ونکړل سي چې طلاق ورکړي بلکې هغه دزندګۍ تراخيري ساه پورې غيرمنقطع جوړه کړي ، له دې وجې ددې عظيمې رشتې دحفاظت لپاره نارينه ووته تنبيه ورکوي ، اودابيان يې کړې چې دطلاق له لفظ څخه عرش هم لړزيږي ، څرنګه چې په حديث شريف کې دي: تزوجواولاتطلقوافان الطلاق يهتزله عرش الرحمن (جمع الفوائد)

ترجمه: نکاح کوئ ، طلاق مه ورکوئ ، ځکه په طلاق ورکولو سره عرش لړزيږي.

څرنګه چې اسلام ددې قرابت دحفاظت لپاره دحکم دتجويزکولو مشوره ورکړې ده چې له دواړوطرفونودې حکم ( دربيمګړی ) منتخب کړل سي ددې لپاره چې معاملې ته دمصالحت لاره راخلاصه سي اوطلاق ته نوبت راونه رسيږي ، په هرحال له دغوټولومرحلواوصورتونووروسته په خپلوکې اتفاق اوپه زړونوکې محبت نه وي نودطلاق لاره اختيارکړئ ، دارازدطلاق ضرورت هم مخې ته راځي اوکه چيرې په شرعي حدودوکې دقانون اسلامي مطابق طلاق استعمال سي نوپه هغه کې هم دخيراوبرکت اړخ ته نظرکوئ.

غرض داچې: طلاق دمعاشرې دډيرې کوتاهۍ علاج تدارک اودتلافۍ کارکوي اودمعاشرتي زندګۍ په واجباتوکې شمارل کيږي دامفهوم دبحرالرائق ملاصاحب په دې ټکوکې بيان کړی: واماسببه فالحاجة الى الخلاص عندتباين الاخلاق وعروض البغضاء الموجبة عدم اقامة حدودالله تعالى وشرعه رحمة منه سبحانه ص: ٢٣٦ج: ٣ بحر)

په اسلام کې دطلاق دقانون دضرورت اواهميت له اجمالي بيان وروسته مناسبه معلوميږي چې په مختلفوقومونواوملکونوکې په مختلفوزمانوکې



درواج طلاق قوانين هم په لنډول ذکرسي درواجي طلاق طريقه اودهغه استعمال هم ستاسوپه مخ کې ښوول مناسب معلوميږي ددې لپاره چې دطلاق داسلامي طريقي اهميت اوافاديت اوحکمتونه په ذهن کې کښېني.

**په پخوازمانه کې طلاق**

په قديمه زمانه کې پرښځوباندې قسم ،قسم مصائب اومظالم بې شماره کېدل اوله هغوئ سره له ظلم اوتشدد څخه کاراخستل کېده ، دطلاق په معامله کې هم دهغوئ چلندله ښځوسره حيواني اوله انسانيت نه ليري وو ، له طلاق وروسته دهغوئ دحقوقوادائينه داوه چې له کوره به يې بې کوره کوله اوټول مال ،سامان به يې ځيني اخستی ، صرف دبدن کپړې بلکې په بعضې حالاتوکې به يې پرته له جامولـه کوره شړلې ، لاندې څواقتباسونه دعربودمشهورمصنف علامه عبدالله المراغبی له کتاب الزواج والطلاق فی جميع الاديان څخه پېشيږي.

**دفارسيانونکاح اوطلاق**

داهل فارس دنکاح اوطلاق طريقه له نورومذهبونوڅخه بلکل بېله وه ، له غيرمحرم پرته له محرم رشته سره هم نکاح کول جائزوو ، دپلارله لورسره زوئ له مورسره اوورورله خورسره نکاح جائزوه اوعملاې ددې په کولوفخرهم کاووا وښځې که به بالغې وي يانابالغې وي دومره اختيارهم ورته نه ووچې هغه په خپله خوښه واده وکړي ، خدای نخواسته که به دښځې کوچنی نه کيدی نو نارينه فوراله هغې سره ازدواجي تعلق ختماوو ، پرښځوباندې هرقسم تصرف دنارينه حق وواوکله اوپه کوم وخت چې به يې غوښتل بېله کوم اخلاقي قيد بند څخه دښځې پرېرېښوولو اوطلاق ورکولو قادراواختيارمن وو ، دمهراونفقې داداينې تصورهم نه وو ، ښځې ته په يوه حال کې هم حق نه ووچې هغه دخپلو حقوقودپامالۍ يوقسم کارروايې وکړي ( ص: ۵۳۵ازواج والطلاق فی جميع الاديان )

## دپخوانیوهندوستانیانودطلاق رواج

په هندوستان کې دنکاح اوطلاق رواج له نوروممالکواوقومونونه بلکل جلااو نهایت ظالمانه وو، یوه ښځې به یې دپوره خاندان لپاره کافي بلله ، دخاندان هرفردپرډغې ښځې باندي دهرقسم تصرف حقداره وو، یوه بله طریقه هم وه چې ښځې به له څونارینه ووسره دنکاح اجازه درلوده ، هریوه ته به یې دهغه پوره ،پوره حق ورکاوو، اودیوه په حق کې به یې کومه کمي یازیاتی نه کاوو.

په فابریکه کې نوهم عجیب وو، په یوه وخت کې به یې له یوولسو ،یوولسونارینه سره نکاح کوله ، اوهریوه ته داستمتاع ( نفع ) اخستلوحق مساوي حاصل وو، دغریبې طبقې خلگوبه هم دخپل غربت له وجې له یوې ښځې سره واده کاوو، کومه چې به دپوره خاندان لپاره مصرف جوړېده ، دهندوستان په مختلفو علاقوکې دارواج عام وو، دطلاق په معامله کې دغه قوم یوګام نورمخته وو، ښځولره هم دطلاق ورکولوحق وو، په یوه وخت کې یوې ښځې له څلورو بالغونارینه ووسره نکاح کولای شوای ، اوکله چې دې غوښتلای طلاق یې ور کولای سوای ، نارینه ته هم پوره اختیارحاصل ووکله چې به یې غوښتل نوطلاق یې ورکاوو، اوبله به یې پیداکړه کورته به یې راوستله ددوو، څلورورځوله لذت اوخوندوروسته به یې داپرېښووه درېیمه به یې پیداکړه ، دارازترڅوچې به دښځې ځواني ختمېده ،دځوانې دپرېښودوچې به ورته وویل سونوهغه به ویل چې نه کېږي اودنسل دحفاظت اوداولاددحقوقودتحفظ خوڅودوره تصورهم نه وو، څکه دکوچنې له پیداکېدووروسته به یې موراوکوچنی دواړه له کوره ایستل ،له بلې ښځې سره به یې واده کاوو، په مذهب ( مانو ) کې خاوندمختار مطلق وو، ښځې ته یوقسم حق علیحده حاصل نه ووکله چې به هم نارینه وغوښتل چې طلاق ورکړي نواختیارورلره وو( الزواج والطلاق ص: ۵۵۳ )



## دپخوانیوچنایانوطلاق

چینایي ښځې دخپلونارینه ډیرې فرمانبرداري اواطاعت کوونکې وي ، لکه څرنګه چې پرته له کوم جبراوزورڅخه به متعددې ښځې دیوه خاوندپه نکاح کې اوسېدې ، داوجه وه چې چیرې به یوښځې دخپل خاوندپه معامله کې له بې پرواهۍ یابداخلاقۍ نه کاراخست دهغې سزابه اتیا( ۸۰ ) درې وه ، نارینه ته پرښځوباندې هرقسم تصرف حاصل وو، دمعاشرتي اواقتصادي ضرورت په خاطردنورسامان په څېرپه بازارکې ښځې هم خرڅېدلې ، له نکاح وروسته چې به ښې دخاونددحکم خلاف ورزي په کومه معامله کې هم وکړه ، یابه له هغې څخه زناوسوه یابه زړه سوه ،یابه په کومه متعدي مریضۍ مبتلاسوه ، یابه یې یوشی دخاوندناخوښه سونوپه دغوټولوصورتونوکې نارینه ته دطلاق ورکولو اختیاروو(ص: ۵۲۲ )

## دپخوانیویونانیانوطلاق

که به چیرې له نکاح وروسته ښځې زناوکړه نونارینه ته قانونًا دااختیاروو چې هغه له کوره وباسي ،نارینه ته دااختیارحاصل ووچې کله وغواړې ښځې ته طلاق ورکړي په دې کې دښځې درضااونه رضاهیڅ قیدنه وو، دښځوزوروالی به یې نحوست باله ، اونارینه ته داسې ښځې دجلاکېدوپوره حق وو، دخوند خبره خولاداوه چې که به چیرې نارینه زوړسونوپه داسې صورت کې ښځې ته قانونًااختیاروو چې دخاوندله کوم بل رشته دارسره وطی وکړي چې کوچنیان وزیږوي که څه هم چې ددغوبچیانونسبت به خاوندته کېدی ، ښځوته له خاوندڅخه دجلااوسېدویادنکاح دفسخ کېدوپه هیڅ وخت کې هم اختیارنه وواونه هغې ته په دې کې قانوني حمایت حاصل وو، چې یووارېه دنکاح رشته قائمه سوه نوهغې به بیادغه ژوندتیراووولوکه به هرڅومره ناخوالې پردې باندې راتلې( ص: ۵۸۷الزواج )

### په مسيحي دين کې طلاق

په مسيحي دين کې هم دنکاح طريقه عجيبه وه ، دازدواج تعدددوئ په قانون اومذهب دواړوپه رڼاکې ممنوع وو، نارينه به بس له يوې ښځې سره نکاح کوله ، ددوهمې ښځې سره يې ترخپل ژوندپورې حق نه وو، دارازطلاق په دوئ کې هيڅ شی نه وو، که به په زوجيت کې اتحادووپانه ، يوله بل سره خوشحال وو يانه ، نه نارينه طلاق ورکولای سواونه ښځې په کوم صورت کې طلاق غوښتلای سوص : ۲۲۰دمسيحي شريعت ( کيتولک ) فرقې هم له مرګ پرته دخاونداوميرمنې په مينځ کې جلاکېدل په يوه صورت نه کول ، دپروټستنټ فرقې دجلاکېدواونکاح فسخ کېدوده شکلونه وو، يابه په دواړوکې ديوه انتقال وسو يابه له ښځې څخه دزناارتکاب وسو.

لاينحل الزواج الا بسبب الموت فقط عندالكاتوليك وينحل بالموت والزناعندالبروتستنت ص : ۳۸۵ الزواج والطلاق.

اوس نوپه لاندې ملکونوکې دطلاق قانون دماضی قريب اوبعيدپه لحاظ ملاحظه کړئ.

### په برطانيه کې دطلاق طريقه

په برطانيه کې دطلاق هيڅ مستقل قانون نسته ، البته دمخکنی زماني دقانون مطابق څه شيان په عرف کې مشهوردي مثلا که چيري په زوجينوکې دکوم يوه عمردبرطانوي قانون له ازدواج څخه کم يعنی دهلک عمرتر۱۴کاله اود انجلۍ عمرتر۱۲ کاله کم وي نوهريوه ته دطلاق اختياردی ، که خاوندنامرد ، ياميرمن زړه وي نوپه دې صورتونوکې هم دطلاق اختيارلري ، که په دماغ کې خلل راسي ،ياليونی سي قانوناًدغه شيان دفسخ نکاح سبب جوړيږي ( ص: ۳۸۲ )

### په اټلي کې دطلاق قانون

داټاليي په قانون ازدواج کې دطلاق هيڅ ځای نه وو، بلکي دلاندې موانعو پربناخاونداوميرمن دواړه ياپه دوئ کې يوپه عدالت کي په دعوه کولوپه خپل



مينځ کې جلاوالی کولای سي ، مثلا په دواړوکې يوزناوکړي ، يوپربل ظلم وزياتي وکړي ، وحشيانه چلندوکړي ، له وهلوڅخه جسماني نقصان وررسيږي ، په دواړوکې يودبل توهين اوتضحيک وکړي ، ياپه دوئ دواړوکې يو په پنځه کاله بندمحکوم سي ، نوپه دغوصورتونوکې دنکاح دفسخ کولوهريوه ته اختياردی ( ص: ۳۹۲ )

### په امريکه کې دطلاق قانون

په امريکه کې دننه دوه قسمه قانون رواج دی : يونظامي ، يوعادی ، دعادي قانون په اعتبارسره دلاندې موانعوپربناازدواجي رشته جلاکېدای سي ، خاوندليونی ياليون حاله سي ، عقل يې ګډوډسي ، ديوخطرناک مرض ښکار سي ، يادجماع ( کوروالي ) قابل پاته نسي ياښځه له بل چاڅخه حامله سي: ص ۴۱۰ )

غوښتنه : په دغومختلفوملکونواوقومونوکې دطلاق طريقه اودهغه دقانون دغه مختصربيان وو، له مذکوره تفصيلاتوڅخه داهم ظاهره سوه چي په اسلام کې دطلاق قانون دښځولپاره يولوئ نعمت اورحمت دی ، اسلام دطلاق لپاره سخت شرائط مقررکړي دي ، دارازيې له طلاق وروسته دمهرحقوق ، دعدې د وخت پرنفقه اوداسي نورويې سخت تاکيدکړی ، چي ښځه له طلاق وروسته هم مطلقه سي ، دخپلې عدې تيرولوپه ورځوکې محتاجه اوبې وسه نه سي ، اوهغه له ذلت سره مخ نسي ، دنفقې په ضمن کې ددې زيات تفصيل په مخکې کې راغي ، له هغه څخه اندازه کېدای سي چي اسلام له ښځوسره دطلاق په معامله کې دخومره همدردۍ اوخيرخواهۍ ثبوت ورکوي چي په هيڅ يوملک اومذهب کې دهغه هيڅ نظيراومثال نه پيدا کيږي.

### دطلاق اختيارولې نارينه ته دی ؟

نن ،صبا خصوصاًپه سواداره طبقه کې دغه سوال عام دی دحکومت په دفترکې هم په دارازسوالونو ورځ تيروي د۱۹۷۷ء په سرکې سپريم کورټ يوه دشريعت

خلاف فیصله هم ښه واضحه کړه چې دشریعت په معامله کې له حکومت نه واخله ترعدالت پورې دافرادوذهن صفانه دی ، دپوهې دغه اندازته قطعًا سیکولرنه ویل کیږي کوم خلګ چې یورنګه (دسول کوډ) اوازلګوي دوئ په حقیقت کې له مذهب اوملت سره هیڅ واسطه نلري ، اوپه هندوستان داسې سیکولرملک کې دمذهب تصورممکن نه دی ، داسلام علمبردارداراز غیر اسلامي قانون کله هم نسي برداشتولای د( مسلم پرسنل لاء ) سره په ترلوسوالونوکې یواهم سوال کوم چې په ډیرقوت سره مختته راځې دادی: چې دطلاق اختیارولې نارینه ووته ورکول سوی دی اودښځودمحروم (بې برخې) کېدسبب څه دی ؟ څرنګه چې داسوال دډیروخلګوګمراه کوونکی وولهدې وجې مودکتاب اوسنت په رڼاکې پردې باندې لنډبحث مناسب وباله:

الله تعالی چې کله نارینه ووته پرښځوباندې برتري وروبخښله اودهغوئ دحقوقوساتوونکی اودهغوئ داخلاقي حقوقودساتنې ذمواریې جوړکړنوپه همدې ازدواجي زندګی کې یې دداسې اهم اونازک شی چې طلاق دی اختیارهم نارینه ووته وسپاری اودهغه داستعمال لپاره یې حدودهم معلوم کړل ددې لپاره چې له دغوحدودنه تجاوزونکړي مګرنن دنام نهاده روشن خیاله طبقې یورپ اواهل مغرب په تقلیدکې دطلاق اختیارله خاوندڅخه اخلې غواړې چې عدالت ته یې ورکړي څرنګه چې په ترکي کې داسې سوې هم دي لیکن داپه قطعي توګه دقرآن اوسنت خلاف دی که یې کوم حکومت هم کوي مسلمان حکومت ته هم په شریعت کې دتبدیل اوتغیرحق نسته ، ،ځکه له قرآن اوحدیث څخه داخبره په واضحه توګه ثابتیږي چې دطلاق اختیارصرف نارینه ته دی اوعقل هم داخبره تسلیموي لکه څرنګه چې به په راروانو سطوروکې واضحه سي.

په قرآن کریم کې دطلاق احکام بیان سوې دي طلاق یې دخاوندوطرفته منسوب کړی دی له هغه څخه صفادامطلب واضح کیږي چې دطلاق اختیارصرف خاوندته دی نه عدالت ته اونه ښځې ته ،



ارشاددی : (١)وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاء (٢)فَإِن طَلَّقَهَا (٣)وَإِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ ! په بل ځای کې قرآنکریم دطلاق اختیارپه ښکاره توګه دخاوندپه لاس کې ورکړی دی فرمایې: بِيَدِهِ عُقْدَةُ النِّكَاحِ (البقرة ) ترجمه : دنکاح کړی دخاوندپه لاس کې ده لهذادنکاح دجوړولواوخلاصولواختیارهم صرف خاوندته دی ، بل چاته ددې اختیارورکول دخدای تعالی دذکرسوې حکم بلکل ضددی.

داحادیثوله تفصیلاتوڅخه هم همدانارینه ته داختیارثبوت کیږي ، لکه څرنګه چې دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما له روایت څخه معلومیږي چې یوسړی رسول صلی الله علیه وسلم ته شکایت وکړچې زماباداردخپلې مینځې نکاح له ماسره کړې وه اوس هغه ماله هغې څخه جلا کول غواړي ، پردې باندې نبی کریم صلی الله علیه وسلم خطبه وویله اودخطبې په مینځ کې وویل : یاایهاالناس مابال احدکم بزوج عبده امته ثم یریدان یفرق بینهما انماالطلاق لمن اخذ الساق !ترجمه : ای خلګوڅه خبره ده چې په تاسوکې یوسړی خپله مینځه خپل مریيي ته په نکاح ورکړي اوبیادهغې جلا کول غواړي په یادولرئ دطلاق اختیارصرف خاوندته دی.

له قرآن اواحادیثونه پرته دطلاق په باب کې دخاوندیانارینه اختیارپه پوره وثوق سره جائزه واخلئ نومعلومه به سي چې ددې اختیاربه نارینه ته وسپارئ ،ځکه الله تعالی پردې نازک صنف (ښځو) باندي لوئ احسان کړی خدای دې نه کوي که چیري ښځوته هم دااختیارحاصل وای نونه وه معلومه چې پرخپلو ځانوباندې به یې څومره واره طلاقونه اخستل اویوې ،یوې ښځې به څومره میړونه بدلول ، ځکه چې دصنف له نازک والي سره ،سره نصف عقل هم دي ، ترټولولویه کمزوري خوداده چې دنارینه عقل مکمل اودښځوعقل ناقص دی ،بیاپه پوهه اودمسئلې وپای ته په رسېدلوکې یې صلاحیت معدوم دی خواه خپله معامله وي یادبل دهغې پرپوهېدوباندې په ښځوکې صلاحیت نسته اوهغوئ طبعًا ترنارینه زیاتې تلوارخوښوونکې ثابتې سوې دي ، بیاپه نازک طبیعتی کې خواعلی درجه دي ، په دې حالاتوکې هغوئ ته طلاق سپارل

دهغوئ دعزت اوعصمت پاماله کول اودهغوئ داخلاقي قدردختمولو مترادف کیږي ، یوارخ داهم دی چي نارینه کله دښځې دنان ،نفقې اودهغې دحقوقو ذمواردی نوله دې حقوقوڅخه دلاس پرسرکېدلواختیارهم هغوئ ته ورسپارل پکاردي نه وبل چاته ،ځکه داخوداسي کیږي چي یوشخص روپۍ خرڅې کړې اوسوداواخلې اوپرهغه باندې دتصرف مالک کوم بل څوک وي ، داخودعقل اودیانت هم خلاف اودقانون هم خلاف دی.

دریمه خبره داچي دوهم فریق که ښځه وي یاعدالت (کوم ته چي مفت دتصرف کولواختیارحاصل دی ) که چیري هغه ته دااختیارورکول سي نوهغه په دې کې دمفت مال په څیرله تصرف کولوڅخه قطعاځان نه ګوري اوله داسي سړي څخه کله هم داامید نه کیږي چي هغه دتصرف په وخت دصاحب مال (چي خاونددی ) رعایت وکړي نونارینه ته دطلاق ورکولواختیارصرف دزوجینو دحقوقو دحفاظت باعث نه بلکي په دې کې دطلاق دډیرښت دمخه نیولو فلسفه هم مضمره ده.

## دطلاق اقسام

په اسلام کې دطلاق دحیثیت له واضح کولووروسته یوسوال داکیږي چي ددې داستعمال طریقه څه ده ، شرعًا کومه طریقه خوښه ،کومه ناخوښه ده ، نوپه دې سلسله کې عرض دی چي په اسلام کې دطلاق درې طریقې دي دهرې یوې جلا ، جلادرجې دي (۱) احسن (۲) حسن (۳) بدعت : طلاق احسن دادی چي خاوندخپلې مېرمنې ته په داسي طهر(دطهرمعنی داچي په داسي وخت کې چي میاشتنۍ مریضې نه وي ) کې طلاق ورکړي چي په هغه کې یې مباشرت ( کوروالی ) نه وي کړی اوهغه په داسي حال کې پرېږدي چي عده یې تیره سي دعدې په تېرېدوسره ښځه له نکاح خلاصیږي اوبل ځای دواده کولوهغې ته شرعًا اختیارحاصلیږي مشهورفقیه علامه علاء الدین الکاسانی الحنفی / ۵۸۷هه/ صاحب په بدائع الصنائع کې داحسن طلاق تعریف کړی دی: احسن الطلاق



فی ذوات القرؤ ان یطلقهاطلقة واحدة رجعیة فی طهرلاجماع فیه ویترکهاحتی تنقضی عدتهاثلاث حیضات ص : ۱۷۲۵ج: ۴:

که چیري ښځه حملداره وي اوپه دې وخت کې طلاق مخې ته راسي نوپه داسي صورت کې هم بهترصورت طلاق احسن دی دبدائع ملاصاحب لیکي : واماق الحامل اذااستبان حملهافالاحسن ان یطلقهاواحدة رجعیة ! ج:۴ص: ۱۷۲۲.

که چیري په نکاح کې ښځه داسي عمرته رسېدلې وي یانابالغه وي چاته چي حیض نه ورځي نوهغې ته دطلاق ورکولوپه هکله دبدائع ملا صاحب لیکي : وکذلك فی ذوات الشهرمن الایسة والصغیرة الاحسن ان یطلقهاواحدة رجعیة ! دارازښځې دکوموچي دکبرسن په وجه دهمېشه لپاره مریضي نه راځي یادکم سن له وجې نواحسن داده چي هغوئ ته هم یورجعي طلاق ورکول سي.

احسن طلاق دشریعت په نظرکې بهتره دی نودعقل اودیانت په رڼاکې هم مفیددی اوپه دې کې ډیرمصلحتونه مضمر( پټ ) دي اول داچي کله دطلاق نوبت راځي نوطلاق ورکوونکی سړی اکثره پښېمانه کیږي ځکه چي داکثره خلکوحال داسي وي چي په غصه یامعمولي خبروکې طلاق ورکوي بیاد پښېمانۍ اوشرمندګي اظهارکوي ،غالبًا ددې ترټولولویه وجه دشرع موافق دطلاق له ورکولوڅخه پرهیزدی ، ،ځکه که چیري طلاق ورکوي نوڅه وجه ده چي دشریعت دښوولې طریقې مطابق یې نه ورکوي اوطلاق احسن یعنی یو طلاق رجعی ورکول ددې لپاره چي په وروسته کې پښېماني ونکړي صاحب بحرالرائق تردې پورې ویلې چي که دسنت خلاف دطلاق ورکولوداعي پیداسي اوهغه له طلاق ورکولوڅخه راوګرځي نوهغه داجرمستحق جوړیږي موصوف لیکي : لووقعت له داعیة ان یطلقهابدعیًا فمنع نفسه الی وقت السنی یثاب علی کف نفسه عن المعصیة ص : ۲۳۸ج: ۳ بحرالرائق.

## دافضلیت یوبل سبب

طلاق احسن ته افضل له دي وجې هم ویل کیږي که چیري دعدې په مینځ کې په نکاح باقي ساتلوکې مصلحت وي نوپرته له نکاح به رجوع ورته وکړي اوکه چیري عده تیره سي اوبیامصلحت په نکاح باقي پاتي کېدووي نوبیاهم پرته له حلالې (دوهمي نکاح ) څخه صرف دنکاح نوي کېدل کافي کیږي نو ،ځکه درې طلاقونه ورکول بلکل نه دي پکاربلکې ښه پوه سئ په دې معامله کې که ګام پورته کول غواړئ نوچي کله هم خدادې نکوي داسي نوبت راسي نوکه غواړئ په زباني توګه یاپه تحریري توګه تریوه طلاق کله هم زیات استعمال نکړئ ،ځکه کوم کارچي په دروطلاقونوکیږي هغه په یوه هم کیږي صاحب بحرالرائق پردې باندي زیاته رڼاچولې ده وایې : وخصوالاول باسم الاحسن لماروی عن ابراهیم النخعي ان اصحاب رسول صلی الله علیه وسلم کانوایستحسنون ان یزیدوافی الطلاق علی واحدة حین عدتهاوان هذاافضل عندهم ص: ۲۳۸ج: ۳.

امام موصوف له معراج څخه پرنقل سوې داحسن پر افضلیت باندي لیکي : وفی المعراج انماکان هذاالقسم احسن من الثاني لانه متفق علیه بخلاف الثاني لانه مختلف فیه لان مالکاقال بکراهته ص: ۲۳۸ج: ۳.

په معراج کې یې داصورت ځکه احسن بللی چي داصورت دټولو په نزد اصل دی اوپه دوهم صورت کې دامام مالک رحمه الله اختلاف دی ، له مذکوره بیانونوڅخه واضح کیږي چي دطلاق ورکولوبهترینه طریقه طلاق احسن دی یعنی یورجعي طلاق ورکړئ ښځه پریږدئ تردې پوري چي عده تیریږي.



## حسن طلاق

دطلاق دوهمه طریقه ده کومه چي تراحسن یوه درجه کم دی صاحب بدائع دحسن په تفسیر کې لیکي : واماالحسن في الحرة التي هي من ذوات القرؤ ان یطلقهاثلاثافي ثلثة اطهارلاجماع فیهابان یطلقهافي طهرلاجماع فیه ثم اذاحاضت وطهرت اخری وهذاقول عامة العلماء وقال مالک لاطلاق السنة الا ان یطلقهاواحدة ویترکهاحتی تنقضي عدتهاص : ۱۷۲۷ج : ۴.

ترجمه : حسن طلاق په ازادوښځوکې کله چي هغوئ ته میاشتنۍ مریضي راځي دادی چي خاوندپه درې طهرونوکې درې طلاقونه ورکړي په کوم کې چي یې جماع (کوروالی ) نه وي کړی یعنی طلاق په داسي طهرکې ورکړي په کوم کې چي کوروالی نه وي سوی بیاچي کله په دوهمه میاشتت کې له حیض وروسته دطهرزمانه راسي نودوهم طلاق ورکړي داراز ددریم حیض ترختمېدووروسته په طهرکې دریم طلاق ورکړي په عامه توګه علماء داوایي : البته امام مالک رحمه الله دسنت مطابق طلاق ورکولویوشکل داښیي اوهغه داچي خاوندښځې ته په یوه طهرکې یوطلاق ورکړي دعدې له تیرېدووروسته یې خوشي کړي.

که چیري یوسړی خپلې مېرمنې ته درې طلاقونه ورکول غواړي (مګر ا مستحسنه طریقه نه ده )لکه څرنګه چي امام مالک رحمه الله سنت صرف یوطلاق بللی له سنت نه مراددادی چي دشریعت مطابق وي اودعقل هم داتقاضاده ،ځکه چي طلاق په طلاق ورکولوکي ولي صرف پریوه اکتفاونسي ، مګردافسوس مقام دی چي ټولنه دنفس په خواهش کې تردې پوري ځي چي ددرې طهرونوپرځاې په یوه طهرکې بلکې کله داسي راځي چي یوطلاق نه ورکوي په یوه وخت په یوه لفظ درې طلاقونه ورکوي مګرددې نتائج بدراوځي ددې بحث زیات تفصیلات ددرې طلاقوترعنوان لاندې ملاحظه کړئ.

دامام مالک رحمه الله په نزدپه طلاق حسن کې کراهیت دی چي هغه دسنت خلاف دی له دې وجې صاحب بدائع لیکي : وجه قوله ان الطلاق المسنون هوالطلاق لحاجة

والحاجة تندفع بالطلقة الواحدة فكانت الثانية والثالثة فى طهرالثانى والثالث تطليقامن غيرحاجة فيكره ص: ١٧٧٦ج: ۴.

## دبدعت طلاق

دطلاق دریيم قسم طلاق بدعت دی کوم چي دشریعت په نظرکي ناخوښه کاردی ، ددې ورکوونکی ګنهګاریږي ،ځکه که چیري دبدعت طریقه اختیارکړل سي دطلاق اچولوڅخه ښځوته پریشاني پیښیږي اوداشرعانهایت ناخوښه ده چي ښله وجې ښځې په تکلیف مبتلاکیږي.

## دحیض په حال کې طلاق

دطلاق بدعت یوصورت داچي په حیض کې طلاق ورکړي ، اوداسي کول د کتاب وسنت ښکاره مخالفت دی ارشادرباني دی: إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاء فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ!
دطلاق بدعت دډیرناخوښه کېدویوه وجه داهم ده چي په دې کې عده اوږدیږي چي هغه دښځې لپاره دپریشانۍ باعث کیږي څرنګه چي علامه کاساني رحمه الله لیکلي دي: الطلقة الواحدة الرجعية فى حالة الحيض اذاكانت مدخولابها!

مخته ی ی لیکل ې دی: لماروينا عن رسول الله صلى الله عليه وسلم انه قال لعبدالله بن عمررضى الله عنهما حين طلق امرأته فى حالة الحيض اخطات السنة ولان فيه تطويل العدة عليها وذلك اضراربها ص : ١٧٧٨ج : ۴بدائع !

خلاصه داچي: نبی علیه السلام ابن عمررضی الله عنه ته هغه وخت تنبیه ورکړه اودرجوع کولوحکم یې ورته وکړکله چي هغه خپلې مېرمنې ته دحیض په حال کې طلاق رجعی ورکړی وو.
درجوع الفاظ دادی: مره فليراجعها ثم ليمسكها حتى تطهرالخ ص: ۷۹۰بخاری شریف )
دبدائع ملاصاحب وایي: واذا طلقها فى حالة الحيض فالافضل ان يراجعها ! یعنی دحیض په حال له ورکول سوې طلاق نه رجوع کول بهتره دي په درمختارکې خودوجوب تصریح



ده : وتجب رجعتها على الاصح فيه اى فى الحيض رفعًا للمعصية واذا طهرت طلقها ان شاء اوامسكها ( شامی ص: ۵۷۷ )
ترجمه : دحیض په حال کې رجوع کول واجب دي ددې لپاره چي له ګناه څخه خلاص سي بیادطهرپه حال کې دطلاق ورکولویانه ورکولواختیارلري.

## دبدعت دوهم صورت

دطلاق بدعت یوداصورت هم دی چي خاوندپه داسي طهرکې ښځې ته طلاق ورکړي چي په هغه کې کوروالی کړی وي له دې وجې چي ډیره ممکنه ده چي په دې کوروالي باندي مېرمن حملداره سوې وي اودهغې دعدې تیرېدل به تروضع حمل پوري اوږدیږي کوم چي دخپل ځان وبال دی صاحب بدائع لیکي : لاحتمال انها حملت لذلك الجماع وعند ظهور الحمل يندم ص: ١٧٧٨ج : ۴.

## دبدعت دریيم صورت

دبدعت طلاق یوصورت داهم دی چي په یوه طهرکې درې یادوه طلاقونه ورکړل سي ، که په یوه جمله کې یاپه جلا ،جلا ، په یوه مجلس کې یاپه مختلفو مجا لسوکې وي په هرصورت دطلاق وقوع راځي مګرداسي کول دقرآن اوسنت خلاف بلکي حرام دي په شامي کې دې تصریح ده چي : البدعى منسوب الى البدعة والمرادبهاهنا المحرمة لتصريحهم بعصيانه (شامی ص: ۵۷۲ج: ۲ )
دبدعت طلاق په ټولو صورتونوکې له ممانعت سره ، سره طلاق واقع کیږي ، که یې چیري درې طلاقونه ورکړې وي نوله حلاله ( دوهم خاوند ) پرته دمېرمنې له ځان سره کېدل حرام دي اوله هغې سره مباشرت ( کوروالی ) زناده ، دحلالې تفصیلات دهغې په بحث کې وګورئ.

## دبدعت طلاق حکم

لومړی داعرض کول غواړم چي په یوه مجلس په یوه جمله کې ورکول سوې درې طلاقونه درې سره واقع کیږي ددې خلاف هیڅ یوتاویل صحیح نه دی دحرام

او حلال په مسائلو کې دامت اتفاق او اجماع پرېښودول دلوېي ناپوهی خبره ده ، دا مسئله اجماعي ده ، لکه څرنګه چي علامه شامی رحمه الله تفصيل کوي:

وذهب جمهور الصحابة والتابعين ومن بعدهم من ائمة المسلمين الى انه يقع ثلاث (شامی ص: ۵۷۲ ج: ۲)

دبدائع ملا صاحب لیکي: واماحكم طلاق البدعة فهوانه واقع عندعامة العلماء وقال بعض الناس انه لايقع وهومذهب الشيعة ايضا ( بدائع ص: ۱۷۸۳ ج: ۴ )

ترجمه: جمهورصحابه ،تابعين ،تبع تابعين اوټول ائمه مجتهدين رضی الله عنهم وايي چي درې طلاقونه واقع کیږي البته څه خلک دنه وقوع قائل دي او د شیعه ګانو دامذهب دی.

**دحلالې (دوهم خاوند) وطي (کوروالي) شرط دی**

له دروطلاقو مغلظو وروسته که له مطلقه ښځې سره دوهم وارنکاح کول غواړئ نودهغې لپاره حلاله ( له بل چاسره نکاح کول ) ضروري دي دهغه تفصيل دادی چي مطلقه بی بی له طلاق ورکولو وروسته عده تیره کړي اوله عدې پوره کېدو وروسته به له دوهم سړی سره نکاح وکړي له هغه سره به لږ،ترلږه یووار کوروالي ضرور کوي ، بیابه هغه دوهم سړی طلاق ورکوي کله چي يې عده تیره سي بیابه له اول خاوندسره نکاح کوي ، لنډه داچي په حلاله کې وطې یعنی کوروالي شرط دی صرف نکاح نه کافي کیږي ،صاحب بدائع پردې ښه بحث کړی دی موږ په لنډډول دموصوف تحقیق اومفتی به قول پیشوو: موصوف لیکي :

ومنها الدخول من الزوج الثاني فلاتحل لزوجها الاول بالنكاح الثاني حتى يدخل بها وهذا قول عامة العلماء ج: ۴ ص: ۱۹۹۰.

ترجمه: دحلالې په شرائطو کي ددوهم خاوندله ښځې سره جماع کول ضروري دي صرف په نکاح کولو کارنه کیږي ، ترڅو چي يې جماع نه وي کړې دادعامو علماؤ قول دی.



علامه شامی رحمه الله لیکي:

والتحليل يعتمد الوطء لامجرد العقد !

ترجمه: دحلالې کولو لپاره جماع معتبره ده صرف په نکاح ترلو کارنه کیږي.

ترجمه : دحلالې کولو په معامله کې دتحليل پرثبوت باندي دشریعت رویه سخته ده : څرنګه چي ویل کیږي چي ددې له مشروعیت څخه خاوندته پریوناخوښه کارباندي غصه اوعبرت ورکول دي ، چي له دې ناخوښه کارڅخه يې هم زیات ناخوښه کارچي طلاق دی ورکړی ووعملاددې مظاهره کوي ، همداوجه ده چي جماع يې شرط وګرځوله اوجماع به هم په داسي اندازسره وي چي کوم حجاب به نه وي ، په جماع کي به مخصوص اندام سپارل داخل وي ، تردې چي غسل په واجبیږي اوپه عالمګیري کې ذاارازتصریح ده:

ويشترط ان يكون الايلاج موجبا للغسل وهوالتقاء الختانين ( عالمګيري ج: ۲ ص: ۲۵۱ )

ترجمه: ذکربه په فرج کې په داسي اندازه داخلول وي چي غسل واجب سي کوم ته چي په اصطلاح کې دتناسل ددواندامویوځای کېدل وايي.

له مذکوره تصریحاتونه معلومه شوه چي په حلاله کې صرف نکاح ترل کافي نه دي دوطې کول هم ضروري دي اوپردې باندي فتوی هم ده ، البته دسعیدابن المسیب رحمه الله مسلک له جمهوروخلاف دی یعنی هغه صرف نکاح ترل کافي بولي ، صاحب بدائع الصنائع لیکي : وقال سعيدابن المسيب تحل لنفس العقد واحتج بقوله تعالى فان طلقها فلاتحل له من بعدحتى تنكح زوجاغيره والنكاح هوالعقد !

ترجمه: دسعیدبن مسیب رحمه الله په نزدنفس نکاح ترل دحلالېدو لپاره کافي دي ، دهغه استدلال دآیت کریمه: فَإِن طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِن بَعْدُ حَتَّىٰ تَنكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ !اله تَنكِحَ څخه دی اوده په نزددنکاح معنی عقددی.

زموږاستدلال هم له دغه لفظ (تَنكِحَ ) څخه دی لیکن زموږ په نزدله نکاح څخه مراد جماع ده کومه چي دنکاح حقیقي معنی ده صاحب بدائع لیکي: ولناقوله تعالی

فان طلقهافلاتحل له من بعدحتی تنکح زوجًا غیره! والمرادمن النکاح الجماع لان النکاح فی اللغة هوالضم حقیقة وحقیقة الضم هوالجماع.

مخته صاحب بدائع ليکي: چي که چيري موږداتسليم هم کړوچي په آيت کې له نکاح څخه مرادجماع نه بلکي عقددی نوهم زموږلپاره دجماع دثابتو لومشهوروايت موجوددی موصوف ليکي: ثم ان کان المرادمن النکاح فی الآیة هوالعقدفالجماع یضمرفیه عرفناذلك بالحدیث المشهوروضرب من المعقول ص: ۱۹۹۱ج: ۹)

## آيا انزال هم شرط دی؟

يوه خبره بله هم دذکروړده چي له وطي سره انزال هم شرط دی يا هسي پټ والی دذکرد سردحلالې لپاره کافي دی نوپه دې سلسله کې دفتاواوودمشهورکتاب دعالمکيري شرح داده: اماالانزال فلیس بشرط للاحلال (عالمکيري ص: ۲۵۱ج: ۲

ترجمه: دښځې دحلالوالې لپاره انزال ضروري نه دی، صاحب درمختارهم داپه صفالفظونوکې بيان کړی دی: وان لم ینزل لان الشرط الذوق لاالشبع قلت وفی المجتبی الصواب حلهابدخول الحشفة مطلقا(شامی ص: ۷۹۳ج: ۲)

ترجمه: که چيري انزال هم رانسي ولې ددې مقصدلذت دی نه مړتيا په مجتبی کې دي چي صرف دذکرسرداخلول دحلالې لپاره صحيح دي.

علامه ابن عابدين رحمه الله هم دارازتحسين تصريح کړې ليکي: بخلاف من فی التہ فتوروادلجهافیهاحتی التقاالختانافلهاتحل له الخ!

مخته ليکي: نعم علی تصویب لامجتبی من الالتقامدخول الحشفة یظهرالاحلال فی الکل (شامی ص: ۷۹۳ج: ۲)

## بالغ کېدل هم شرط نه دی

اوس يوسوال داپيداکيږي چي کله انزال شرط نه سونوله يوه کوچني څخه هم حلاله ثابتيږي نوفقهاؤتصريح کړې چي که چيري هلک مراهق يعنی بلوغ ته نژدې وي اوجماع يې هم کولای سوای دداسي هلک له جماع څخه هم ښځه داول



خاوندلپاره حلاليږي، دارازدليونی له وطې څخه هم دحلالې تحقق راځي، البته دهلک دقريب البلوغ کېدونه تحقيق وکړئ يا يې دعمرپه اعتبارسره جاج واخلئ صاحب بدائع ليکي: وسواء کان الزوج الثانی بالغا اوصبیایجامع فجامعهااومجنونافجامعها لقوله تعالی حتی تنکح زوجاغیره من غیرفصل بین زوج وزوج ولانه الصبی والمجنون یتعلق به احکام النکاح من المهروالتحریم لوطء البالغ العاقل ص: ۱۹۹۲ج: ۴.

په فتاوی عالمکيري کې هم ددې تصريح موجوده ده: وفی الانفع الصبی المراهق فی التحلیل کالبالغ الخ فسرالمراهق فی الجامع الصغیرفقال غلام لم یبلغ ومثله یجامع جامع امرأته وجب الغسل علیهاواحلهاعلی الزوج الاول ومعنی هذاالکلام ان تتحرك آلته ویشتهی (ص: ۲۵۱ج: ۲ عالمکيری)

ترجمه: مراهق دتحليل په سلسله کي دبالغ په څيردی دمراهق تعريف په جامع صغيرکې دی هغه هلک دکوم چي منی خارجيږي نه مګرجماع کولای سي داسي جماع چي په هغې سره پرښځې باندي غسل واجبيږي اوس هغه دداول خاوندلپاره حلاله سوه (ددې مطلب داچي دهلک ذکرحرکت کوي اودجماع خواهش هم لري)

مولاناعبدالحی رحمه الله دمراهق دعمردتعين په باره کې له فوائدشمس الاسلام څخه نقل کوي ليکي: وفی فوائدشمس الاسلام انه مقدربشعرسنین ص: ۱۲۰ج: ۲)

## مجموعه

له دې معلومه سوه چي لږ،ترلږه لس کاله ضروري دي اوله سره دومره معلومه سوه چي که چيري په لوئ والي دانتشارآله اوحرارت دفقدان له وجې دجماع پوره صلاحيت نه لري البته له التقاء ختانين څخه دحرارت اوانتشاراحساس کولای سي نوپه داسي صورت کې هم دحلالې تحقق کيږي، که چيري له دخول وروسته هم انتشار( جګېدل ) نه وي نوبيا حلاله صحيح نه ده، په عالمګيري کې دي: لواولج الشیخ الکبیرالذی لایقدرعلی الجماع بقدرته بل بمساعدة الیدلاتحل للاول الا ان تنتشر آلته وتحل ص: ۲۵۱ج: ۲.

البته علامه شامی رحمه الله دشیخ فانی محض غیبوبة حشفه هم دحلالي لپاره کافي بولي اوداقول درست دی ليکي: والصواب حلهالانه متعلق بدخول الحشفة الخ واقره فی الشرنبلالية(شامی ص: ۷۴۳ج:۲)

دارازکه چيري په آله کي دننه فتوروي يا داسي مرض وي چي انتشارنه کيږي التقاء ختانين کيږي نوحلاله صحيح ده، صاحب بحرالرائق تصريح کړي: بخلاف من فی آلته فتوروادلجهافيهاحتی التقی الختانان فانهاتحل به ص: ۵۲ج: ۴ بحرالرائق)

ترجمه: په خلاف دهغه دکوم په ذکرکي چي نقص وي له هغه سره، سره په فرج کي دومره داخل سي چي ددواړه دتناسل داندامو ديوځای کېدوتعريف پر صادق سي نوحلاله کيږي.

## کپړه پرپيچل حلاله کول

دحلالي يوصورت دجوازداهم دی چي يوسړی پرخاص آله باندي کپړه وپيچي ،وطي وکړي اوالتقاء دختانينوسي نوحلاله صحيح ده، په دې شرط چي حرارت اوخوندهم محسوس کړي.

فقهاء کراموچي ددې مسئلي کومه تصريح کړي دهغه خلاصه داده چي که دالتقاء ختانين ( دناريته اوښځي خاص اندام سره يوځای کېدو ) په وخت حرارت محسوس سونوحلاله صحيح ده کني نه ده صحيح.

اشاربالوطی بشرط الایلاج بشرط کونه عن قوة نفسه وان کان ملفوفا بخرقة اذاکان يجدلذة حرارة المحل ( بحرالرائق ص: ۵۲ج: ۴ )

ترجمه: دعضوي ( اندام ) دداخلولوشرط دادی چي هغه يې په خپل طاقت دننه کړي که چيري ذکرپه کپړه کي وپيچي نولازيات دجماع لذت اودشرمګاه دحرارت احساس وي په عالمګيري کي ددې داسي تصريح ده: وفی الفتاوی اذالف ذکره بخرقة وادخل فی جهافان وجدالحرارة تحل والافلا ص: ۲۵۱.



په فتاوی صغری کي دي چي که چيري پرذکريوکپړه وپيچي اوپه اندام کي يې داخل کړي که يې چيري دفرج حرارت ( ګرموالی ) محسوس کړنوحلاله صحيح کني نه.

مولاناعبدالحی رحمه الله په خپل کتاب مجموعة الفتاوی کي هم ددې قابل دقبول تصريح کړې وې ګورئ ص: ۱۲۱ج:۲.

## دنيرودپه ذريعه حلاله کول

ددې په ذيل کي ددورحاضردتيارسوي نيرودحکم هم چليږي اوډيرخلګ دحلالي په معامله کي ياله انزال څخه دبچ کېدويابياله شرمندګی څخه دتخفيف کولولپاره دنيرودااستعمال کوي لهذاددې هم هغه حکم دی کوم چي په کپړه پيچلوکي وو، بلکي په دې کي ترکپړه په زيات واضح اندازکي دجماع فعل متحقق کيږي تول شيان محسوسيږي، په داسي کولوکي کومه بدي نشته په حديث کي راځي (حتی تذوق عسيلته ويذوق عسيلتك الخ)

## دصغيرې نابالغي دحلالي صورت

که چيري خاوندخپلي داسي ښځي ته درې طلاقونه ورکړي کومه چي دجماع قابله نه وي نوبيرته داول خاوندلپاره دپه نکاح کېدوپه هغې کي هم حلاله ضروري ده، په دې شرط چي خاوندخپلي ښځي ته درې طلاقونه په يوه وخت اوپه يوه لفظ سره ورکړي وي چي دارازوواييي تاته مادرې طلاقه درکړي دي، ياتاته درې طلاقه ،ځکه په دې صورت کي درې طلاقونه واقع کيږي اوکه يې چيري جلا ،جلا په متفرقه توګه درې ورکړي وي داسي چي وواييي تاته يوطلاق ،دوه طلاقه درې طلاقه نوپه داسي صورت کي دحلالي ضرورت نسته پرته له حلالي محض نوې کېدل دنکاح کافي دي،ځکه په دې وخت ښځه په يوه طلاقه سره بائنه کيږي، دنابالغي دحلالي صورت دادی چي هغه تردومره ورځوپوې پريږدي چي دجماع قابله سي ،ځکه دحلالي لپاره جماع شرط ده کله چي هغه قابله سي اودوهم خاوندجماع ورسره وکړي نوداوخت دحلالي تحقق کيږي

اودښځې لپاره داول خاوندبیرته په نکاح کول روادي ، په درمختارکې ددې تصریح داسې ده : والشرط التیقن بوقوع الوطی فی المحل المتیقن به فلوکانت صغیرة لایوطأ مثلهالم تحل للاول درمختار!

البته پرمطلقه غیرمدخوله اومطلقه صغیره چې دجماع قابله نه وي عده نشته لکه څرنګه چې به یې دعدې په بیان کې تفصیل راسي.

**مرګ دوطې پرځای نه دریږي**

که چیرې ددروطلاقونوالاښځه له دوهم سړي سره دحلالې په غرض نکاح وکړي اوله وطی کولومخکې دوهم خاوندمړسي نومرګ دوطی پرځای نه دریږي ښځه داول خاوندلپاره حلالیږي یانه په دې باره کې دفقهاؤمتفق علیه تصریح داده چې ښځه داول خاوندلپاره نه حلالیږي بلکې دوباره له دریېم سړي سره نکاح اوهمبستري کول ضروري دي ،ځکه په دې صورت کې له دوهم سړي سره صرف نکاح راغله وطی نسته ، صاحب بحرالرائق لیکي : والموت لایقوم مقام الدخول فی حق التحلیل ص: ۵۲ج: ۴.

ددوهم خاوندمرګ دکوروالي په معنی نه دی لهذادحلالولولپاره کوم سوال نه پیداکیږي صاحب ردالمحتارپردې باندې په واضح انداز خبره کړې : لومات عنهاقبل الوطء لایحلهاللاول الخ لان الشرط هناالوطء (شامی ص: ۷۴۲ج: ۲)

البته که چیرې دوهم خاوندوطې وکړي اوترطلاق ورکولومخکې مړسي نوبیاداول خاوندلپاره حلالیږي ،ځکه په دې وخت خومرګ تروطی وروسته سو په فتاوی هندیه کې ددې تصریح ده : لم تحل له حتی تنکح زوجاً غیره نکاحاًصحیحاًویدخل بهاثم یطلقهااویموت عنها( ص: ۷۵۱ج: ۲ )

ښځه ترهغوپورې نه حلالیږي ترڅوچې یې له خاوندسره جماع نه وي کړې له صحیح نکاح وروسته یې بیاهغې ته طلاق نه وي ورکړي یاځیني مړنسي.



**دحلالې په نیت واده کول**

ډیروختونه داسې کیږي چې ددوهم خاوندله لورې ددې اطمېنان نه وي چې هغه دې هم طلاق ورکړي که څه هم په عامه توګه خوداسې نه کیږي بلکې کله یوسړی دحلالې لپاره آمده هم سې خولږ ،ترلږه په زړه کې دانیت ضرورکوي چې دښځې دکارله پوره کولوروروسته به طلاق ورکوم ، اودهغه دوه شکلونه دي ، یوصورت خوپه حلاله کې دننه داکیږي چې مخکې لاپه خپلوکې مشوره کوي چې له دغې وطې کولوروروسته به فوراً طلاق هم ورکوي اودارازعمل عام دی ، یادده اوښځې په مینځ کې قولاددې خبرې معاهده وسي چې له نکاح وروسته به دطلاق نوبت هم راځي یادنارینه ( محلل ) په نیت کې وي چې له حلالې وروسته به طلاق ورکوم البته قولاددې کوم اظهارونکړي په اول وارذکرکیدوکې دفقهاؤاختبلاف دی ، صاحب بدائع ددې اختلاف داسې رانبیې : وان شرط الاحلال بالقول وانه یتزوجهالذلك وکان الشرط منهافهونکاح صحیح عندابی حنیفة وزفر رحمهماالله وتحل للاول ویکره للثانی والاول الخ وقال ابویوسف رحمه الله النکاح الثانی فاسدوان وطیهالم تحل وقال محمدرحمه الله النکاح الثانی صحیح ولاتحل للاول ص: ۱۹۸۹ج: ۴.

ترجمه : صرف دحلالولولپاره نکاح شرط ده چې هغه ددې ضرورت په مخته راتلوسره نکاح کوي ، که چیرې شرط دښځې له خواوي نوهم صحیح ده ، امام صاحب اوزفررحمهماالله دې ته جائزویلې دي ، ښځه دخاوندلپاره حلالیږي البته ددوهم لپاره مکروه ( ناخوښه خبره ) ده ابویوسف رحمه الله نکاح ثانی ته فاسده ویلې دي ، که یې چیرې له هغه سره نکاح وکړه نوهم حلالیږي نه ، امام محمدرحمه الله ثانی نکاح صحیح مګرداول لپاره یې جائزنه بولي ، دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دادی چې نکاح مؤقته ده لکه څرنګه علامه شامی رحمه الله لیکي : وعن ابی یوسف رحمه الله انه یفسدالنکاح لانه فی معنی المؤقت الخ دامام ابویوسف رحمه الله په نزددنکاح دفسادوجه نکاح مؤقته ده ، له دې وروسته علامه

موصوف دامام محمدرحمه الله دلیل هم بیانوي لیکي : وعن محمدرحمه الله یصح ولایحلهالانه استعجل ما اخره الشرع ص: ۷۴۳ج:۲.

امام محمدرحمه الله وايي: چي دوهمه نکاح صحیح ده خوداول لپاره حلالیږي نه ،ځکه په دې کې یې په هغه شي کی کوم چي شریعت مؤخرکړی دی له تلوارنه کاراخیستی دی.

خوفتوی دامام اعظم رحمه الله پرقول باندي ده لکه څرنګه چي ددرمختار عبارت بیان کوي: وان حلت للاول لصحة النکاح وبطلان الشرط (شامی ص: ۷۸۳ج:۲ )

ترجمه: ښځه داول لپاره حلالیږي اوشرط باطلیږي ، علامه شامی رحمه الله خپل رجحان اودامام اعظم رحمه الله دمسلک قول صحیح بللی دی ، دبحرالرائق ملاصاحب هم پردې باندي بسیط کلام کړی دی ، موصوف دعلامه ابن الهمام الحنفی قول نقل کوي اولیکي : نعم یکره الشرط کما تقدم من محمل الحدیث ویبقی ماوراءه وهوقصدالتحلیل بلاکراهة (بحرالرائق ص: ۵۸ج:۴ )

ترجمه: هوشرط مکروه دي چي دمخکې ذکرسوې حدیث محمل هم دی بله خبره داچي نکاح بېله کراهته پاتیږي ، اوهغه دحلاله کوونکې اراده ده ، لیکن داسي کول مکروه تحریمي دي لکه څرنګه چي په بحرالرائق کې دي : ای کره التزوج للثانی بشرط ان یحلها للاول بان قال تزوجتک علی ان احلک له اوقالت المرأة ذلک الخ والمراد بالکراهة التحریم فینهض سببا للعقاب (ص: ۵۸ج:۴ )

ترجمه: له دوهم خاوندسره نکاح په دې شرط سره چي داول لپاره یې حلاله کړي مکروه ده خواه نارینه ووايي چي ستالپاره یې دحلالولوپه مقصدنکاح کوم یاښځه داووايي : چي داکارله تاسره ددې لپاره کوم چي بیرته اول خاوندته حلاله سم ، له کراهت څخه مرادتحریمي دی اوهغه سبب دعذاب جوړیږي.



**دحلالې نیت بېله کراهت جائز**

البته دثانی الذکرپه باره کې چي محض حلاله په نیت کې وي ، قولا دهغې اظهارونسي اونه ددې قسم کومه معاهده وسي نودجمهوروعلماؤپردې اتفاق دی چي بېله کراهیته صحیح ده ، له دې وجې چي په معاملاتوکې دمحض نیت اعتبارنه وي اوښځه داول خاوندلپاره پرته له کوم چون وچراحلالیږي بلکي دبحرالرائق ملاصاحب خودالله تعالی په نزدباندي دثواب مستحق بللی . لیکي : امالونویاکان ماجورلان مجردالنیة فی المعاملات غیرمعتبر!

دبدائع ملاصاحب پردې باندي اجماع رانقل کړې دي : فان لم یشرطاذلک بالقول وانمانویاودخل بهاعلی هذاالنیة حلت للاول فی قولهم جمیعا (بدائع ص: ۱۹۸۹ج:۴ )

**دمسلک ( مذهب ) بدلول حرام دي**

دحلالې له بحث څخه له فارغېدووروسته موږدیوې داسي خبرې دواضح کولوسعی کړې کومه چي دخپل بدوالي په اعتبارسره دکفرددرجې شی دی مګربعضي جاهلان له دې څخه دکوچنیانوبازۍ جوړه کړې ده ، دحلالې متعلق مخکني دلائل اوبراهین موږددې خبرې پرتصدیق کولومجبوروي چي په اسلام کې دحلالې قانون داخلاقي اومعاشرتي سمون یواهم ترین جزدی ددې له وجې څخه له زناکارۍ ،بدکارۍ څخه انسان ساتل کیږي ، داڅه زموږخپل خیال نه دی بلکي دعقلي اونقلي دلائلوله چاڼ کولواودهغوئ له تحقیق اوتفتیش څخه هرشخص دې نتیجې ته رسیږي چي اسلام دحلالې قانون نافذکړ،دانسان کرداریې له پستۍ کولوڅخه وساتی اودښځوآبرواوعصمت یې دهمېشه ، همېشه لپاره خوندي کړ، مګربعضي خردماغه داسي هم موجوددي کوم چي حلاله محض دخپلې واهمې پربنیادپه یوه ناوړه صورت کې پیشوي ، اوله دې څخه دنجات لپاره په مسلک بدلولوکې یوه ذره تامل نه کیږي دهغه دااهمیت لوړوالی کوي ،پردې خردماغوباندي سخت افسوس دی آیاهغه په موجوده دورکې دسیاسي پارټیانوددل بدلي ته په ښه نظرسره ګوري ؟ سیاست په داسي

رکیک فعل کې دزړه بدلونکو د کنټرولو لپاره ټول اهلم علم او عقل متفق سوې دي او دهغوئ د بدو عواقبو او نتېجو له اثراتو څخه خلګو ته اګاهي ورکوي ، حتی چې ددې دل بدلی له لعنت څخه دځان ساتلو لپاره يې دواضح قانون جوړولو ترغيب کړی دی ، له خلګو څخه يې دهغوئ دحمايت اپيل جاري کړی دی ، افسوس چې داخلګ دمذهب او مسلک دداسي اهم او بنيادي اصولو بيخ کني کوي هيڅ سوچ هم نه کوي ، دهغوئ زړونه داسي مړه سوې دي چې دخپل نفسانی خواهش دپوره کېدو لپاره دهربدکار لپاره آمده اوسي او دمسلک تبديلي بې شېدو حلوی استعمالوي ، له دل بدلی څخه دپيدا سويو خرابيو چې ښه مطالعه وسي هغه پرمسلک بدلوونکو باندي له لعنت پرته بل هيڅ نه دی زما په پوهه کې نه راځي چې دداسي واضح خرابی ترمعلومېدو وروسته هم انسان دمسلک دتبديل کولو جرأت کوي ، او هغه هم حرامې ښځې ته دحلالولو لپاره کوم چې دانسان دژندګی اهم ترينه مسئله ده ، له هغه سره دميراث مسائل ، دنسب ، حلال او حرام اولاد ،دهغوئ دتربيت ذمواريانې دمعاشرې دفساد او اصلاح متعلق دی دادمسلک دتبديلېدو په حواله حل کول غواړې اناالله وانااليه راجعون ! برين عقل ودانش ببايد ګريست !

موږ ستاسو دعقل او تجربې په رڼاکې دهغه پرخرابيو تنبېه درکړه او تاسو داد شرېعت مطهره په رڼاکې وګورئ دمسلک تغيرپه اصل کې دشرېعت مطهره توهين دی له دې څخه موږ په لازمي توګه پرشرېعت توهين وايو ،ځکه مسلک (مذهب ) که له امااعظم رحمه الله ياامام شافعی رحمه الله سره متعلق دی دټولو نچوړ له شرېعت مطهره قرآن او حديث فقه وتفسيرسره يوځای دی ، حقيقت دادی چې دانسان دايمان او يقين ازموينه په همداسي موقع کيږي کله چې يوسړی ديوسختې او پيچيده مسئلې له وجې دخپل مسلک پربدلولو آماده کيږي له داسي سړی څخه په ايمان او عمل او دهغه داستحکام او استقلال په باره کې څه توقع کيدای سي له دې وجې په واضحه توګه داعرض کول مناسب



معلوميږي چې کوم حضرات په دې کې پرلپسي او سيږي هغوئ ته پکاردي چې له داسي خيالاتو څخه ژر، ترژره رجوع وکړي او پرخپل مسلک باندي قائم اودائم واوسي په دې کې ددنيا او اخيرت کاميابي ده فقهاؤ خوتردې پورې ويلې چې دداسي خلګو دخرابې خاتمې ويره ده کله چې خاتمه دانسان دعمل او اعتقاد لپاره بنيادد ی ، په حديث شريف کې راځي : انماالاعمال بالخواتيم الخ ! په شرح حموي کې ددې پوره تفصيل موجود دی.

په اخيرکې داعبارت ملاحظه کړئ په کوم کې چې دمجتهد لپاره هم دمسلک تبديلي دګناه باعث او موجب دتعزيردی : وفی الفتح قالواالمنقل من مذهب الی مذهب باجتهادوبرهان اثم يستوجب التعزيرفلااجتهادوبراهان اولی (حموی ص: ۲۵۲ )

ترجمه: له يوه مذهب څخه بل مذهب ته تلل داجتهاد او برهان ( دليل ) په رڼاکې هم جرم دی هغه ته سزاورکول پکاردي نو چې پرته له اجتهاد او برهان څخه مذهب بدلوي هغه خو په طريقه اولی سره دسزامستحق دی دفتاوی په مشهوراو معتبر کتاب قنيه کې يې مذهب بدلول دايمان دتلو خطره بللی دی لکه څرنګه چې يې ليکلې دي : اليس للعامی ان يتحول من مذهب الی مذهب ويستوی فيه الحنفی والشافعی وقيل لمن انتقل الی مذهب الشافعی يزوج له اخاف ان يموت مسلوب الايمان لاهانته بالدين لجيفة قذرة (قنيه ص: ۱۵۵ )

کوم انسان ته له يوه مسلک څخه بل مسلک ته تلل جائزنه دی په دې کې حنفی او شافعی ديوه خصوصيت نسته کوم چې دشافعی مذهب صرف دنکاح په غرض اختياروي دهغه دبې ايمانه دمړه کېدو انديښنه ده ،ځکه چې ديوبدبويه مردارد حاصلولو لپاره ددين توهين کوي.

په درمختارکې هم دبل مسلک داختيارولو دعدم جوازواضحه تصرېح ده : الرجوع عن التقليد بعد العمل باطل اتفاقا وهوالمختار (درمختارص: ۵۱ج: ۱شامی )

ترجمه: په تقليد له عمل کولو وروسته رجوع بالاتفاق باطله ده او مختاره مسلک همدادی ، محقق ابن عابدين رحمه الله هم په ډيرلنډ او فيصله کوونکو اوجامع

الفاظ کې تصریح کړې او دټولو علماؤ اتفاق یې ددې پربطلان باندې لیکلی دی:
وان الرجوع بعد العمل باطل اتفاقا ( شامی ص: ۲۲۸ج۲ )
علامه جوزجانی رحمه الله خودامسئله نوره واضح کړې لکه څرنګه چې علامه
شامی رحمه الله لیکي: کماقال الجوزجانی فی رجل ترک مذهب ابی حنیفة رحمه الله لنکاح امرأة من اهل الحدیث فقال اخاف علیه ان یذهب ایمانه وقت النزع لانه استخف مذهب الذی هوحق عنده وترکه لاجل جیفة
تذرة (شامی کتاب التعزیر ص: ۳۰۷ج: ۳ )
ترجمه: جوزجانی رحمه الله وایې: چې کوم سړی دامام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دیوې ښځې دنکاح کولولپاره بدل کړي او داهل حدیثو مذهب اختیار کړي دهغه په هکله دنزع ( مرګ ) په وخت کې دایمان دضائع کېدو قوی امکان دی ، ځکه کوم مذهب چې دهغه په نزد حق وو دهغه توهین یې وکړاو هغه یې دیو بدبویه شی دحاصلولو لپاره پرېښوو.
له مذکوره تصریحاتو وروسته هغه حضرات کوم چې دمسلک دبدلولو په فکر کې دي هغه دې حق او باطل لاره پخپله معلومه کړي ، له دې سره ،سره هم چې کوم حضرات داسې جرأت کوي هغه یقینًا په مذهب کې له ډېرې دلاورۍ څخه کاراخلي ، داسې جرأت له کوم څخه چې داسلام شان اودهغه حیثیت بربادېږي اودهغه په ذریعه دمذهب اومسلک وقارزخمي کیږي پناه غوښتل پکار دي اوله هغه څخه همېشه احتراز کول پکار دي.

**په حلاله کې خلوت ( یواځې والي ) دوطي پرځای نه درېږي**

که چیرې له ښځې سره خلوت صحیحه هم وسي بیاهم دحلالې په معامله کې هغه دوطی قائم مقام نه کیږي لکه څرنګه چې دفتاوی په مشهوراو معتمد کتاب قنیه کې موجوددي: وکذاالخلوة فی نوادر هشام ( قنیه ص: ۸۳ ) یعنی دحلالې په معامله کې خلوت هم دوطي قائم مقام نه دی.



**په دبر ( دشالخوا ) په وطي کولوسره دحلالې تحقق نه راځي**

که چیرې یو سړی دښځې دخاص مقام پرځای په دبره کې وطي وکړي له دې وطې نه تحقق دحلالې ممکن نه دی ،ځکه اول خوداسې کارشرعی جرم اوګناه ده بل داچې په غیرمحل کې یې وطې وکړي له دې وجې نوګواکې دوطي تحقق بیخي راغلی نه دی لهذانودحلالې ثبوت هم نکیږي لکه څرنګه چې په فتاوی قنیه صفحه: ۸۳کې هم ددې مسئلې وضاحت سوی دی: اذااتاهافی دبرهالاتحل للاول الخ!
ترجمه: له وطی بالدبر څخه اول خاوندته نه حلالیږي.

**ښځه ووایې چې زه حلاله سوې یم**

که چیرې ښځه ووایې چې اوس ته ماپه نکاح کړه ،ځکه ماحلاله کړې ده نوداول خاوندلپاره جائزنه دی چې یواځې دښځې په دې ویلوسره فورًا هغه په نکاح کړي بلکه دحلالې به پوره تحقیق کوي.چې دچاپه ذریعه حلاله سوې ده اوڅرنګه حلاله یې کړې کله چې دحلاله پوره شرائط ثابت سي اوښه اطمېنان وسي نودې دواده لپاره ورسره تیارسي پرته له تحقیقه په نکاح کې داخرابي لازمیږي چې که چیرې حلاله صحیح نه وي نومېرمن ترهغه وخت پورې حرامه ده ، کله چې حلاله په صحیح.توګه نه وي نودواړه به دزناکوونکې وي ددې وبال پرخاوندزیات راځي ،ځکه هغه پرته له پلټنې نکاح کړې لکه څرنګه چې ددې تصریح په فتاوی قنیه کې موجوده ده : لوقالت حللت لک اوقالت حلاله کردم لایحل له التزوج مالم یستفسرها لاختلاف الناس فی کیفیة التحلیل وهوالصواب (ص: ۸۴ )
ترجمه: که چیرې ښځه ووایې چې زه ستالپاره حلاله یم یاووایې چې زه حلاله کوم نویواځې دښځې په دې ویلوسره وخاندوته دنکاح کول جائزنه دي بلکې ددې پلټنه اوددې متعلق پوښتنه کول ضروري دي ،ځکه چې دحلالې په کیفیت کې خلک مختلف وي او داعمده صورت دی.

## دسنت طلاق یوبل صورت

مخکې دسنت اوبدعت طلاق بحث ووخوپه مینځ کې څه حصه دحلالې دبحث راغله مخکې چې دسنت طلاق کومې طریقې ښوول سوې وې خودهغه په دې صورت کې اجراء کېده چې کله خاونداومېرمن دواړه موجودوې اوپه یوه ځای کې ددواړواوسېدنه وې مګرډېروختونه داسې صورتونه هم مخته راځي چې خاوندپه بل ملک یابل ځای کې ملازمت کوي ، مېرمن دلته اوسې نوکه په داسې حال کې دطلاق نوبت راسي نوظاهره ده چې په طلاق ورکولوکې هم دسنت رعایت اوطریقه دسنت نبوی صلی الله علیه وسلم تاسوته داجرباعث ده نو په داسې حالت کې که چیري یوسړی پرسنت طریقه طلاق ورکول غواړي نودا صورت فقهاؤلیکلی دی : چې ښځې ته دې خط ولیکي اوپه خط کې دننه دې دطلاق ورکولوذکرداسې وکړي لکه څرنګه چې محقق علاء الدین الکاسانی رحمه الله په خپل کتاب بدائع الصنائع کې تصریح کړې اولیکلي:

ولوکان الزوج غائبًا فارادان یطلقهاللسنة واحدة فانه یکتب الیهااذاجاءك کتابی هذاثم حضت وطهرت فانت طالق الخ!

ترجمه : که چیري خاوندبل ځای وي اودیوه سنت طلاق ورکولواراده یې وي نودهغه ښه صورت دادی چې ښځې ته په داسې عنوان خط ولیکي : چې کله زماخط دروسیږي اوته له حیض څخه هم پاکه سې نوتاته یوطلاق.

داخوپه هغه صورت کې چې دیوه طلاق اراده یې وي که یې چیري ددروطلاقونو اراده وي اودسنت رعایت کول هم غواړي نوفقهاؤدهغه صورت هم لیکلی دی:

وان ارادان یطلقهاثلاثًا یکتب ایهااذاجاءك کتابی هذاثم حضت وطهرت فانت طالق ثم اذاحضت وطهرت فانت طالق ثم اذاحضت وطهرت فانت طالق (بدائع ص: ۱۷۷۷ج: ۴ )



## دصریح طلاق بحث

### یوڅوضروري خبرې

دصریح طلاق اودهغه دجزئیاتوپروضاحت تربحث مخکې یوڅوخبرې دمقدمې په توګه ذکرکول غواړودډې لپاره چې مسائل په ذهن کې ښه راسي.

### نیت ضروري نه دی

اوله خبره داده چې په صریح طلاق کې دنیت ضرورت نسته اونه په دې کې دکوم قسم نیت اعتبارکیږي محض دصراحت الفاظ یاپه عرف کې دطلاق په معنی دکثرت استعمال په وجه پرظاهرفیصله کیږي دبحرالرائق ملاصاحب رحمه الله دصریح طلاق تصریح کړې اولیکي:

الثالث عدم توقفه علی النیة ص: ۲۵۷ج: ۳

ترجمه: دصریح طلاق دارمدارپرنیت نه دی.

### دبدائع دملاصاحب رحمه الله محققانه کلام

دبدائع ملاصاحب ددې ښه وضاحت کړی دی پرصفااوصریح الفاظواستعمالو لویې دنیت نفې کړې اولیکي:

وهذه الالفاظ ظاهرة المرادلانهالاتستعمل الافی الطلاق عن قیدالنکاح فلایحتاج فیهاالی النیة بوقوع الطلاق ص: ۱۷۹۴ج: ۴.

ترجمه : اوددغوالفاظومرادظاهردی له دې وجې ددغوپه استعمال سره نکاح ختمیږي په دغوکې دطلاق دواقع کېدولپاره دنیت هیڅ ضرورت نسته.

علامه موصوف رحمه الله داستدلال اړخ هم عجیبه اختیارکړی دی:

اذاالنیة عملهافی تعین المبهم ولاابهام فیها، وقال الله تعالی فطلقوهن لعدتهن ! شرع الطلاق من غیرشرط النیة وقال سبحانه وتعالی: الطلاق مرتان مطلقًا وقال سبحانه وتعالی: فان طلقهافلاتحل له من بعدحتی تنکح زوجًا غیره ! حکم سبحانه وتعالی بزوال عن شرط النیة (ص: ۱۷۹۴ )

ترجمه : ولې دنیت عمل دمبهمې (پټې ) خبرې معلومول وي اودلته هیڅ ابهام نسته الله تعالی پخپله وایې : دهغوئ له عدې نه طلاق ورکړئ په دې کې دنیت

دشرط قیدنسته دارازفرمايي : طلاق دوه واره دی مطلق بېله کوم شرط بیاارشاددی: هغه هم دنکاح زوال بېله شرط نه کوي.

له روایاتو څخه هم موصوف دنیت پرع!.م باندي استدلال کړی لیکي:

وروی عبدالله بن عمررضی الله عنه لماطلق امرأته فی حال الحیض امره رسول الله صلی الله علیه وسلم ان یراجعهاولم یسئله هل نوی الطلاق اولم ینوولوکانت النیة شرط لسأله ص: ۱۷۹۴ج: ۴.

ترجمه : ابن عمررضی الله عنهما چي کله خپلې میرمنې ته دحیض په حال کې طلاق ورکړی وونونبی علیه السلام هغه ته دبیرته رجوع امروکړاوله هغه څخه یې پوښتنه ونکړه چي ستادطلاق نیت وو،یانه که چیري نیت شرط وای نویقیناً به یې پوښتنه څیني کړې وای.

له ذکرسویوتشرېحاتوڅخه داخبره واضحیږي چي صریح طلاق بېله نیته واقع کیږي ،شرعًا ددې مدارپرنیت نه دی ، دوهمه خبره داده چي دصریح طلاق لپاره کوم الفاظ متعین دي په هغوئ سره یورجعی طلاق واقع کیږي که چیري دهغه استعمال یوواروکړي کنې دوه اودرې هم واقع کیږي دمثال په توګه ( انت طالق ) صریح الفاظ دي ، که چیري یوسړی خپلې مېرمنې ته ووایې تاته طلاق دی یاته دطلاق والایې نوپه دې سره یورجعي طلاق واقع کیږي په هندیه کې ددې تصریح ده: الفصل الاول فی الطلاق الصریح وهوانت طالق مطلقة وطلقتك ویقع واحدة رجعیة (ص : ۵۰۰ج: ۲ )

دبحرالرائق ملا صاحب هم ددې په څیرتصریح کړې: بیان الاحکام الصریح وهی ثلثة الاول وقع الرجعی به (بحرالرائق ص: ۲۵۵ج: ۳ )

علامه شامی رحمه الله هم پرصریح طلاق باندي تفصیلي بحث کړی دی : لان الصریح لایحتاج الی النیة الخ!

مخته لیکي: لان المرادبهامایقع به واحدة رجعیة وان نوی خلافها( ردالمحتار ص: ۵۹ج: ۲ )



ترجمه : صریح طلاق دنیت محتاج نه دی له ده څخه مرادیورجعي طلاق دی که یې څه هم ددې خلاف نیت وي.

دریمه : خبره داده چي درجعی طلاق په عده کې دننه ،دننه ښځې ته دنکاح له نوې کولوپرته رجوع کولای سي ( دې ته فقهاء کرام رجعت وایې ) ددې پوره تفصیل په خپل ځای کې انشاء الله تعالی راځي ) البته دعدې له تېرېدووروسته ښځه بائنه ګرځي له نکاح وځي اودنکاح دنوې کېدوضرورت دی محقق ابن عابدین رحمه الله لیکي: لان الرجعی لایزیل النکاح ای قبل انقضاء العدة (شامی ص: ۲۱۹ج: ۲ )

ترجمه: په طلاق رجعي کې دعدې ترپوره کېدوپورې نکاح باقي وي:

داخبره واضح سوه چي که عده تېره سوه نوبیانکاح نه پاتي کیږي.

څلورمه خبره داچي له یوه رجعي طلاق وروسته تردروحیضوپورې ښځه په نکاح کې وي له طلاق رجعي وروسته چونکه درجوع اختیاروي نو،څکه خاوندله طلاقې سوې ښځې نه هرقسم استمتاع ( نفع ) اودزوجیت دتعلقاتواظهارکولای سي ، له عدې تېرېدوروسته پرته له نکاح نوې کولودازدواجي تعلق قائمول ناجائزدي علامه شامی رحمه الله لیکي : هذاالصریح الرجعی اذلایخفی ان بقاء النکاح فیه من کل وجه الخ لان قید الحکمی باق من کل وجه لبقاء الاستمتاع الخ (شامی ص: ۲۴۲ج: ۲ )

ترجمه : په طلاق رجعی کې دننه نکاح پوره باقي دد ،څکه داستمتاع په وجه دنکاح قید حکماپوره پاته دی.

### صریح پردوه قسمه دی

صریح هم پردوه قسمه دی یوصریح رجعي یعنی هغه الفاظ په کوموسره چي درجوع اختیارکیږي اویوصریح بائن یعنی هغه الفاظ دکوموپه ذریعه چي په طلاق ورکولوسره مېرمن بائنه ګرځي ،له نکاح څخه وزي اوپه هغه کې درجوع امکان نه وي علامه شامی رحمه الله دهغه حکم له بدائع څخه نقل کړی لیکي:

فی البدائع ان الصریح نوعان صریح رجعی ،صریح بائن (شامی ص: ۵۹۲ج: ۲ )

### صریح رجعي

دبحرالرائق ملاصاحب رحمه الله: دصریح رجعي تفسیر کړی ،لیکي:
فالصریح الرجعی ان یکون الطلاق بعدالدخول حقیقة لیس مقرونًا بعوض ولابعددالثلاث لانصًا ولااشارةً ولاموصوفًا بصفة تنبئ عن البینونة اوتدل علیهامن غیرحرف العطف ( بحرالرائق ص: ۲۵۲ج: ۳ )
ترجمه: صریح رجعی دادی: چي طلاق له حقیقي دخول وروسته وي ،په هغه کي کوم عوض نه وي ، اوددرودعددنه صراحتًا اونه اشارةً وي اونه هغه په داسي صفت سره موصوف وي کوم چي جلاوالی راولي ، دهغه لپاره حرف عطف هم نه وي.

### دصریح طلاق الفاظ

له مذکوره تعریف څخه دومره خبره واضح سوه چي درجعي طلاق لپاره یوحد اودهغه لپاره مخصوص الفاظ دی کوم لفظ چي دصفااوواضح طلاق ښوونه کوي اودهغه استعمال دطلاق لپاره خاص وي خواه چي دچاپرژبه وي علامه ابن عابدین رحمه الله لیکي:
فمالایستعمل فیهاالافی الطلاق فهوصریح یقع بلانیة ( شامی ص: ۵۹۰ج: ۲ )
ترجمه: هغه الفاظ کوم چي صرف دطلاق لپاره استعمالیږي هغه صریح دي بېله نیته واقع کیږي.
دبدائع ملاصاحب رحمه الله دالفاظو دتعین کولو عمده توضیح کړي لیکي:
اماالصریح فهواللفظ الذی لایستعمل الافی حل قیدالنکاح وهولفظ الطلاق اوالتطلیق مثل قوله انت طالق اوانت الطلاق اوطلقتك اوانت مطلقة سمی هذاالنوع صریح ( ص: ۱۷۹۴ج: ۱ )
ترجمه: صریح هغه لفظ دی په کوم سره چي دنکاح قید( غوټه ) خلاصیږي هغه لفظ دطلاق یالفظ دصریح دی دارازچي ( ته طلاقه یې ، یاتاته طلاق ، یاتاته طلاق درکول سوي دی.



په عالمګیري کې هم ددې تصریح موجوده ده: وهوکانت طالق ومطلقة وطلقتك وتقع واحدة رجعیة وان نوی للاکثراولم ینوشیئًا کذافی الکنز(عالمګیری ص: ۳۵۴ج: ۱ )
درجعي طلاق درې لفظونه دي ، ( تاته طلاق ، ته طلاق والاېې ، ماتاته طلاق درکړی دی ) په دغوسره یورجعي طلاق واقع کیږي که یې څه هم تریوه دزیات نیت کړی یایې بلکل نیت نه وي کړی.
دمذکوره جملوترجمه که په هره ژبه کې هم وي په هغوئ سره یورجعي طلاق واقع کیږي دبدائع ملا صاحب رحمه الله لیکي: لان الصریح لایختلف باختلاف اللغات (ص: ۱۷۹۴ج: ۴ ) ترجمه: صریح دلغاتو(ژبو ) په اختلاف نه مختلف کیږي.
اوپردې فتوی ده په دې شرط چي په هغه ژبه کې هغه دطلاق لپاره استعمالېدل رواج وي.
والاصل الذی علیه الفتوی فی زماننا الخ ان کان فیهالفظ لایستعمل الافی الطلاق فذلك اللفظ صریح یقع به الطلاق من غیرنیة (ص: ۱۷۹۴ج: ۴ )
په هردورکې کې دهغوئ لپاره په صریح توګه استعمالېدونکې الفاظ صریح طلاق بلل کیږي په هغه کې دنیت ضرورت نسته.

### صریح بائن طلاق

دوهم قسم: دطلاق صریح بائن په صورت کې دی: علامه شامی رحمه الله لیکي:
واماالثانی بخلاف وهوان یکون بحروف الابانة وبحروف الطلاق لکن قبل الدخول حقیقة اوبعده لکن مقرونًا بعددالثلاث نصااواشارة اوموصوفابصفة تنبئ عن البینونة من غیرحرف العطف ( شامی ص: ۵۹۲ج: ۲ )
ترجمه: دوهم صورت بلکل مختلف دی په دې کې ابانت کول ضروري دی هغه داسي چي دطلاق له لفظ سره تردخول حقیقي مخکې یاترهغه وروسته ، ددروعددهم وي یاپه ښکاره توګه یااشارتا یاطلاق په یوداسي صفت موصوف وي له کوم څخه چي ابانت ښکاریږي یاپرهغه دلیل وي مګرحرف عطف نه وي.

### دشبهې ازاله

دطلاق صریح له دې تقسیم څخه دې هیڅوک دانه اخلي چې کله دصریح سونو دطلاق ثلثه دوقوع څه مطلب دی او دا له دصریح بائن تقسیم څرنګه دی ، ځکه دصریح بائن حکم هغه وخت دی کله چې په هغه کې ټول هغه شرائط اوقیود وي کوم چې دصریح بائن په تعریف کې ذکرسوي دي ،صریح رجعي خوهغه دی چې پرته له قیداوشرط نه یوطلاق رجعي په واقع کیږي لیکن کله چې په صریح کې قیداوبند معتبرسي نوبیاصریح رجعي له خپل حکم نه وځي دابانت په حکم کې داخلیږي لکه څرنګه چې دداړوله تعریف څخه واضح کیږي

### له بعضي الفاظ کنایه څخه درجعي فائده

دطلاق رجعي په ذیل کې دکنایه دبعضی الفاظو ذکرکول هم مناسب معلومیږي په کوموسره چې درجعي حکم ثابتیږي سره له کنایه والي په هغوئ سره یورجعي طلاق واقع کیږي ، څرنګه چې الفاظ کنایه ښکاره نه وي اودمختلفو معناوو اومرادونوحامل وي ، په دوئ کې له تنبیه اومزاح ( مسخرو ) پرته دطلاق دمعنی هم احتمال وي له دې وجې په کنایه الفاظوکې دنیت ضرورت دی ددې لپاره چې دمتکلم نیت دیوشي ( طرف ) تعین وکړي مګردري الفاظ مستثنی دي دهغوئ له کنایه کیدوسره ، سره یورجعي طلاق په واقع کیږي ، که څه هم دطلاق ورکوونکي په دوئ سره نیت دبائن وي دفتاوی په ټولو معتبرو کتابونوکې ددې تصریح ده دبحرالرائق دملا صاحب رحمه الله تحقیق ملاحظه کړئ: فتطلق واحدة رجعية في اعتدي واستبرئي رحمك وانت واحدة (ص: ۲۹۹ج: ۲ ) یورجعي طلاق واقع کیږي کله چې ووایي ( عده تیره کړه ، خپل رحم پاک کړه ، ته یوه یې )

په درمختارکې هم ددې وضاحت سوی دی: وتقع رجعية بقوله اعتدي واستبرئي رحمك وانت واحدة وان نوى اكثر (شامي ص: ۲۴۱ج: ۲ )

محقق ابن عابدین رحمه الله پررجعية باندي لیکلي دي: اي وان نوى البائن الخ (شامي ص: ۲۴۱ج: ۲ ) یعنی که یې چیري دبائن طلاق نیت کړی وي هغه قابل اعتبارنه

دی علامه شامی رحمه الله یو ځای ددې تصریح کړې: [illegible] (ص: ۴۳۹ج: ۲ )

لکه څرنګه چې په بعضی کنایاتوسره رجعي طلاق واقع کیږي مثلاً ( عده تیره کړه ، رحم پاک کړه ، ته یوه یې )

### دطلاق رجعي دواقع کیدووجه

اوددې ترټولولویه وجه داده چې په دغودرو الفاظوسره دصراحت پشوالی کیږي اوپه دغودریوکې دصریح طلاق معنی مضمره ( پټه ) ده لکه څرنګه چې دردالمختارملاصاحب رحمه الله ددې انکشاف کړی دی: [illegible] یعنی اعتدی ویل ګواکې خاوند داوویل چې ماتاته طلاق درکړیوته عده تیره کړه او دطلاق په باب کې هم ( ماتاته طلاق درکړ ) صریح دی په دې وجه طلاق رجعي واقع کیږي له دې وجې فقهاؤرحمهم الله له دې څخه دصریح معنی اخستې ده له کنایه کیدوسره ،سره یې دصریح په حکم کې شمیرلی دی ، لکه څرنګه چې علامه شامی رحمه الله ددې معنی بیان کړې ده په: [illegible] (که ماتاته طلاق درکړ ) نوعده تیره کړه موصوف داستبرئ متعلق هم داتصریح کړې کومه چې دفاعتدی ده لکه څرنګه چې لیکي: [illegible] (ص: ۲۴۱ج: ۲ )

دبحرالرائق ملاصاحب رحمه الله په ( انت واحدة ) کې درجعي دحکم وجه داښیي چې دامصدردی صفت یې محذوف دی یعنی ( انت مطلقة بتطليقة واحدة ) او په دې سره رجعي واقع کیږي لکه څرنګه چې ظاهره ده موصوف لیکي: [illegible] (ص: ۲۹۹ج: ۳ )

## دشبهې ازاله

دطلاق صریح له دې تقسیم څخه دې هیڅوک دانه اخلي چې کله داصریح سونودطلاق ثلثه دوقوع څه مطلب دی اودغه دصریح بائن تقسیم څرنګه دی ؟ .څکه دصریح بائن حکم هغه وخت دی کله چې په هغه کې ټول هغه شرائط اوقیودوي کوم چې دصریح بائن په تعریف کې ذکرسوې دي ،صریح رجعی خوهغه دی چې پرته له قیداوشرط نه یوطلاق رجعی په واقع کیږي لیکن کله چې په صریح کې قیداوبندمعتبرسي نوبیاصریح رجعي له خپل حکم نه وځي دابانت په حکم کې داخلیږي لکه څرنګه چې ددواړوله تعریف څخه واضح کیږي

## له بعضي الفاظ کنایه څخه درجعي فائده

دطلاق رجعي په ذیل کې دکنایه دبعضی الفاظوذکرکول هم مناسب معلومیږي په کوموسره چې درجعی حکم ثابتیږي سره له کنایه والي په هغوئ سره یورجعي طلاق واقع کیږي ، څرنګه چې الفاظ کنایه ښکاره نه وي اودمختلفو معناوو اومرادونوحامل وي ، په دوئ کې له تنبیه اومزاح ( مسخرو ) پرته دطلاق دمعنی هم احتمال وي له دې وجې په کنایه الفاظو کې دنیت ضرورت دی ددې لپاره چې دمتکلم نیت دیوشق ( طرف ) تعین وکړي مګرددې الفاظ مستثنی دي دهغوئ له کنایه کېدوسره ، سره یورجعی طلاق په واقع کیږي ، که څه هم دطلاق ورکوونکې په دوئ سره نیت دبائن وي دفتاوی په ټولومعتبرو کتابونوکې ددې تصریح ده دبحرالرائق دملا صاحب رحمه الله تحقیق ملاحظه کړئ: فتطلق واحدة رجعية في اعتدي واستبرى رحمك وانت واحدة(ص: ۳۹۹ج:۲) یورجعي طلاق واقع کیږي کله چې ووایې (عده تېره کړه ، خپل رحم پاک کړه ، ته یوه یې )
په درمختارکې هم ددې وضاحت سوی دی: وتقع رجعية بقوله اعتدي واستبري رحمك وانت واحدة وان نوى اكثر(شامي ص: ۲۴۱ج:۲ )
محقق ابن عابدین رحمه الله پررجعیة باندې لیکلې دي: اى وان نوى البائن الخ (شامی ص: ۲۴۱ج:۲ ) یعنی که یې چیري دبائن طلاق نیت کړی وي هغه قابل اعتبارنه



دی علامه شامی رحمه الله یوځای ددې تصریح کړې : كما ان بعض الكنايات تقع به الرجعي مثل اعتدي واستبرى رحمك وانت واحدة(شامی ص: ۲۳۹ج:۲ )
لکه څرنګه چې په بعضی کنایاتوسره رجعي طلاق واقع کیږي مثلا ( عده تېره کړه ، رحم پاک کړه ، ته یوه یې )

## دطلاق رجعي دواقع کېدووجه

اوددې ترټولولویه وجه داده چې په دغودروالفاظوسره دصراحت پټوالی کیږي اوپه دغودریوکې دصریح طلاق معنی مضمره ( پټه ) ده لکه څرنګه چې دردالمحتارملاصاحب رحمه الله ددې انکشاف کړی دی: لان من باب الاضمار! یعنی اعتدی ویل ګواکي خاونداوویل چې ماتاته طلاق درکړنوته عده تېره کړه اوطلاق په باب کې هم ( ماتاته طلاق درکړ ) صریح دی په دې وجه طلاق رجعي واقع کیږي له دې وجې فقهاؤرحمهم الله له دې څخه دصریح معنی اخستې ده ،له کنایه کېدوسره ،سره یې دصریح په حکم کې شمېرلی دی ، لکه څرنګه چې علامه شامی رحمه الله ددې معنی بیان کړې ده په : ان طلقتك فاعتدى (که ماتاته طلاق درکړ ) نوعده تیره کړه موصوف داستبری متعلق هم داتصریح کړې کومه چې دفاعتبدی ده لکه څرنګه چې لیکي : انه كناية عن الاعتداد من العدة فقال فيه ماقلناه آنفافي اعتدى ص: ۲۴۱ج:۲ )
دبحرالرائق ملا صاحب رحمه الله په ( انت واحدة ) کې درجعی دحکم وجه دابښې چې دامصدردی صفت یې محذوف دی یعنی ( انت مطلقة بتطليقة واحدة ) اوپه دې سره رجعي واقع کیږي لکه څرنګه چې ظاهره ده موصوف لیکي : واما انت واحدة فيحتمل ان يكون نعتالمصدر محذوف معناه تطليقة واحدة فاذانواه مع هذا الوصف فكانه قاله (بحرالرائق ص: ۲۹۹ج:۳ )

ترجمه : په ( ته یوه یې ) کې ددې خبرې اجمال ( لنډيز ) دی چې هغه صفت دمصدرمحذوف دی اودهغه معنی ده ( ته یوازې یې ) یوطلاق دی نوکله چې دطلاق نیت وي نوګواکې چې له دې ځخه داسې ثابتیږي.

**دبحرالرائق دملاصاحب رحمه الله فیصله**

دبحرالرائق ملاصاحب پردې درې جملوباندې له بحث کولووروسته دفیصلې په ډول وایې : فقدظهران الطلاق فی هذه الالفاظ الثلاثة مقتضی ولوکان مظهرًا لایقع له الا واحدة فاذاکان مضمرًا وانه اضعف منه اولی ( ص: ۲۹۹ج: ۳ )

دغه درې سره الفاظ دطلاق تقاضاکوي ، که چیرې یې واضح نکړې نویو طلاق واقع کیږي بیاچې کله مضمردی اوهغه یې مدلول کمزوری دی نودیوه طلاق واقع کېدل ښه معلومیږي ، واضحه دې وي چې په مذکوره دروجملوسره درجعي طلاق حکم هغه وخت کیږي کله چې په دوئ سره دطلاق نیت هم سوی وي ، داالفاظ په کنایه کېدوکې ټول برابردي ، فرق صرف دحکم دی چې په دوئ سره بائن نه واقع کیږي بلکې رجعي واقع کیږي اوپه دغوالفاظوسره دطلاق رجعي دواقع کېدوتر ټولولویه وجه دسوده رضی الله عنهاواقعه ده کومه چې دبحرملاصاحب له نوادرځخه نقل کړې ده اودایې ثابته کړې چې درجعي واقع کېدودحکم مرجع په اصل کې دغه روایت دی کوم چې دقیاس اواستحسان دواړوتقاضاده موصوف لیکي : ومافی النوادرمن ان وقوع الرجعی بهااستحسان لحدیث سودة یعنی نه علیه السلام قال لهااعتدی ثم راجعهاوالقیاس ان یقع البائن کسائرالکنایات بعید( ص: ۲۹۹ج: ۳ ) بعیدلفظ په راوړلوسره دبحرملاصاحب دقیاس ردکوي : اووایې : چې قیاس اواستحسان دواړوتقاضادطلاق رجعي کېدل دي ، لیکي : بل ثبوت الرجعی اس واستحسان ( ۲۹۹ج: ۳ بحر )



**دبائن خفیفه یاغلیظه نیت معتبرنه دی**

دارازکه یوسړی په دغوتېروسویوجملوسره ووایې چې زمانیت دبائن طلاق یاددروطلاقونوووڼوداسې نیت معتبرنه دی ،اونه بائن اونه درې طلاقونه واقع کیږي بلکې درجعي طلاق حکم به کیږي لکه څرنګه چې یوسړی خپلې ښځې ته ووایې چې ماتاته طلاق درکړ، اوهغه ووایې چې زمانیت په دې سره دوه یادرې طلاقونه ووڼودهغه ددې نیت اعتبارنه کیږي بلکې دالفاظودصراحت اودطلاق صریح کېدوپه وجه دیوه رجعي طلاق فتوې کیږي ، دارازدلته هم دیوه طلاق حکم کیږي ، که یې هرنیت وي ، محقق ابن عابدین رحمه الله خوله یوې جملې ځخه دهغې ټوټه رااخستې اولیکي : وتقع واحدة وان نوی البائن ( شامی ص: ۲۴۱ج: ۲ ) رجعی واقع کیږي که څه هم له هغه ځخه یې مرادبائن وي ، په درمختارکې هم در وان نوی اکثرالفاظ دي.

دبحرالرائق ملاصاحب خومسئله نوره هم واضح کړې ،لیکي : واشارالمصنف بقوله واحدة رجعیة الی انه لونوی لبینونة الکبری اولصغری لاتعتبرنیته ( بحرالرائق ص: ۲۹۹ج: ۳ )

ترجمه: مصنف رحمه الله په دې قول سره چې ( رجعیة ) دې طرفته اشاره کړې چې که له دې ځخه دائمي جلاوالی مرادهم وي نوداسې نیت اعتبارنه کیږي بلکې یوطلاق رجعی واقع کیږي.

**دمدخول بهااوغیرمدخول بهافرق**

په دې کې دمدخول بهااوغیرمدخول بهاتقریبایوحکم دی فرق صرف دادی: چې دمدخول بها( په کومه ښځه چې دخول سوی وي ) لپاره عده ضروري ده اوغیرمدخول بهالپاره عده تېرول ضروري نه دی که څه هم دمخکې دووجملو (اعتدی،واستبری رحکم ) تقاضاعده تېرول دي چې کله طلاق واقع سي نوعده تېرول هم ضروري وي ددې لپاره چې دداړومحل ( دحمل کېدوځای ) صحیح سي ،

Scanned with CamScanner

مگرغیرمدخول بهاته دعدې ضرورت نسته له دې وجې دهغې په هکله سوال نه پيداکيږي.

### دواحدة نحوي بحث

اوس يوسوال دواحدة داعراب په هلکه کيږي بعضی خلگوددې تشريح کړې: چې که چيرې واحدة په ضمه ( پېښ ) سره وي نويو طلاق هم نه واقع کيږي که په هغه سره دطلاق نيت وي يانه ، اوکه چيرې واحدة په نصب ( زور ) سره وي نويو طلاق واقع کيږي که څه هم دطلاق نيت نه وي اوکه چيرې ساکن ( بېله حرکته ) وي نوپرنيت به فيصله کيږي لکه څرنگه چې علامه شامي رحمه الله دبحرالرائق پرحاشيه ددې تفصيل ليکلی دی: قال بعضهم ان رفع الواحدة لايقع شئ وان نوى وان نصبها وقعت واحدة وان لم ينوالخ وان سكن احتيج الى النية (بحرالرائق (هامشه) ص: ۲۹۹ ج: ۳ )

مگرالله تعالی دې دبحرالرائق ملاصاحب اومحقق ابن عابدين رحمهما الله ته دخيرجزاء ورکړي هغوئ ددې فيصله داکړې چې اعراب ته هيڅ اعتبارنسته ،ځکه عوام ددې څه تميزکولای سي چې درفع ، نصب اوسکون په حال کې احکام هم بدليږي اوداقول مفتی به هم دی اودايې صحيح ليکلی دی:

دبحرالرائق ملاصاحب ليکي : فافادانه لامعتبرباعرابها وهوقول العامة وهوالصحيح ( ص : ۲۹۹ ج: ۳ )

علامه شامي رحمه الله ليکي : لا اعتبارباعراب الواحدة عندعامة المشائخ وهوالاصح ( شامي ص: ۲۳۹ ج: ۲ )

داعراب په اختلاف سره داحکامواختلاف کالعدم بلل انتهايي پرپوهې باندي مبنی دی ، ولې داسلام دارازمباحث دداسي باقي مذاهبو لپاره کوم چې دارډو، هندي ، بنگالي ،انگريزي دهرقسم ژبه ويوونکولپاره عام دي نوروژبو والاداعراب فرق نسي کولای له دې وجې دوئ (علامه شامي اودبحرالرائق ملاصاحب ) داعراب اعتبارنه کوي په ټولومسلمانانويې احسان کړی دی فجزاهم الله خيرالجزاء.



### دفقهاؤاجتهادي نظر

دغوفقهاؤحضراتوته وسعت نظراوهغوئ ته بې پايه ذهن اوذکاوت ورکول سوی چې له يوې مرجع څخه په سلگونومسائل راباسي اودهغوئ نمونه کوي چې موږپه حيرت کې اچوي ، چې الله تعالی دغوحضراتوته ددين ، قرآن اوحديث دپوهې اوله هغوئ څخه دجزئياتواوکلياتوداستنباط څومره ملکه ورکړې ده دهغوئ مثالونه زموږدفقهې دکتابوله مطالعې څخه مونده کيږي: اوس داوگوره خبره په کناياتوکې درجعې دحکم وه اوتراوسه پردرېيو جملو بحث وسوکوم چې په اصل کې مرکزي نقطه وه مگرفقهاء محض ديوه علت مشترکه پربناددمسائلو انبارلگوي ، لکه څرنگه چې دمحقق زين الدين ابن نجيم مصری له تحقيق څخه معلوميږي موصوف پردې مسئله بحث کړې دی ليکي:

ولماكانت العلة في وقوع الرجعي بهذه الالفاظ الثلثة وجود الطلاق مقتضى اومضمرًا علم ان لاحصر في كلامه بل كل كناية كان فيها ذكر الطلاق كانت داخلة في كلامه ويقع بها الرجعي بالاولى كقوله انا برئ من طلاقك ، الطلاق عليك ، عليك الطلاق ، ولك الطلاق ، وهبتك الطلاق اذاقالت اشتريت من غيربدل قدشاء الله طلاقك ، قضى الله طلاقك ، شئت طلاقك ، تركت طلاقك ، خليت سبيل طلاقك ، انت مطلقة بتسكين التاء الخ ، انت طال بحذف الاخر، خذى طلاقك ، اترضيك طلاقك ، عرتك طلاقك ، ويصيرالامربيدها على مافي المحيط ، لست لي بامرأة ، وماانابزوج ، لست لك بزوج ، وماانت لي بامرأة (بحرالرائق ص: ۳۰۰ ج: ۳ )

څرنگه چې په دغودرېيوالفاظوسره درجعي طلاق واقع کېدوعلت دطلاق وجوددی عام تردې که هغه اقتضاءً وي يااضمارًا له هغه اندازه کيږي چې له کنايه څخه درجعي طلاق حکم په دغودرولفظونوکې خاص نه دی بلکې هرکنايه په کوم کې چې دطلاق ذکراغلی وي.

البته کوم سرې چې داووايې چې زه ستاله نکاح برى ( بېزاره ) يم نوپه دې سره طلاق نه راځي : فانه لايقع قاله ابن سلام بحر!

د(وانابرئ من طلاقك )په باره کې دفتح القدير ملااوعلامه شامي وغيره دبائن طلاق قائل دي لکه څرنګه چې دبحرالرائق ملاصاحب دخلاصې عبارت رانقل کړي ، ليکي: والاوجه عندي ان يقع بائنا كمافي فتح القدير والمعراج ( ص:٣٠٠ج:٣ )
زما په نزد اوجه داده چې بائن طلاق واقع کيږي.

دمحقق ابن عابدين عبارت دادي: قلت مقتضى هذا وقوع واحدة بائنة لان الوقوع ليس بلفظ الصريح بل بلفظ برءت تامل ( شامي ج:٢ص:٢٤١ )
زه وايم چې ددې مقتضى ديوه طلاق واقع کېدل دي ، ځکه دلته صريح لفظ نسته چې دبرءت دلفظ باوجود پرکنايه دال وي.

**يوشرط**

له پورته ذکرسويو الفاظو څخه درجعي طلاق واقع کېدل هغه وخت متحقق کيږي کله چې په دې الفاظو سره نيت هم دطلاق وي اوددغو الفاظو استعمالو نکې دطلاق په نيت استعمال کړې وي کني په محض الفاظو سره طلاق نه واقع کيږي دمثال په توګه که يوسړی خپلې مېرمنې ته ووايي چې زه ستاله طلاق نه بري يم او په دې سره يې نيت هسې دمکې ورکول وي نو په دې سره طلاق نه واقع کيږي ،ځکه دطلاق دواقع کېدو لپاره نيت شرط دی.

**يوه عامه غلطي**

نن ، صبا اکثره خلک غلطي کوي چې هغوئ له طلاق صريح ورکولو وروسته هم داسې فهموي چې پرښځې باندې طلاق نه دی راغلی ،ځکه دطلاق نيت خونه وو، بلکې دوېرولو يادمکې ورکولو نيت ووددې لپاره چې دطلاق په لفظ سره ښځه وويريږي حتى چې بعضې خلک درې طلاقه ورکوي ، مطمئن اوسې او قصور پر نيت اچوي چې نيت نه وي نو طلاق څرنګه راځي چونکه په دروصريح طلاقونو سره مثلاً داسې ووايې ( تاته مادرې طلاقونه درکړې ، ياماتاته طلاق درکړ) که چيرې درې واره ووايي نومغلظه طلاق راځي اومېرمن بلکل پردۍ کيږي له هغې سره هرقسم ازدواجي تعلق حرام اوناجائز کيږي که يې هرنيت هم



وي دصريح طلاق په باب کې يې هيڅ اعتبار نسته ، لکه څرنګه چې ددې بحث مخکې تيرسوی دی هو که چيرې يويادوه طلاقه ورکړي نو په عده کې دننه رجوع کولای سي مګرله دروطلاقونو وروسته هيڅ سوال نه پيداکيږي ، لهذدطلاق مسئله بې حده نازکه اودحرام اوحلال مسئله ده هرانسان ته پرشرعي طريقه عمل کول پکار دي او که چيرې داسې غلطي وسي نوتوبه کنبل پکاردي.

له دې پرته دټولو فقهاؤ متفق عليه تصريح ده چې که چيرې يوسړی ( انت طالق ) ووايي يعنې ( ماتاته طلاق درکړی )اوبيا وايي چې له دې څخه زمانيت دطلاق نه وونو دده دنيت هيڅ اعتبار نه کيږي اوطلاق واقع کيږي لکه څرنګه چې دبدائع ملاصاحب رحمه الله ددې مسئلې وضاحت کړی دی: ولوقال لها انت طالق ثم قال اردت انها طالق من وثاق (اوقال) انها طالق من العمل ثم يصدق في القضا ( ص: ١٢٩٤ج:٤ )

**هغه طلاقه سوې ياهغه مطلقه ويل**

که چيرې يوڅوک خپلې ميرمنې ته په يې مطلقه ياېې طلاقه سوې الفاظو ورنعره کړي نو په دې سره يورجعي طلاق واقع کيږي هو که چيرې ووايي چې زمانيت خو دمخکې خاونددطلاق پېغور ورکول وو څرنګه چې هغه له مخکني خاوندڅخه مطلقه وه که واقعه همداسې وي چې مخکني خاونددې ته طلاق ورکړی وي نو پرداسې موقع باندې نيت معتبريږي اوطلاق نه واقع کيږي علامه شامي رحمه الله ليکي : ولوكان لها زوج طلقها قبل فقال اردت ذلك الطلاق صدق ديانة الخ وقضاء في رواية ابن سليمان وهو حسن في فتح القدير وهو الصحيح كمافي الخانية ص: ٥٩٣ج:٢ شامي )

**دطلاق ورکولو خبرورکول**

که چيرې يوسړی خپلې ښځې ته يوطلاق ورکړي اويوبل څوک له هغه څخه پوښتنه وکړي چې تاڅه وويل نوهغه ته خبرورکړي يعنې ماخپلې ښځې ته طلاق ورکړ په دې تکرار وطلاق سره ددوهم طلاق استعمال نه راځي يعنې دادوهم طلاق نه بلل کيږي ، بلکې مخکني طلاق معتبردی ،ځکه دويل سويو خبرو خبر ورکولو ته دمخکنيو خبرو حکايت ويل کيږي لکه د( نقل کفرکفرنباشد ) په لمن

کې دمذکوره طلاق حکم هم راځي دهغه پردليل باندي غورو کړئ: ولوقال لامرأته انت طالق فقال له رجل ماقلت فقال طلقتها اوقال قلت هي طالق فهي واحدة في القضاء لان طلاقه انصرف الى الاخبار بقرينة الاستخبار (بدائع الصنائع ص: ١٧٩٢ج: ٤)

دارازدطلاق وحدت ( يووالى ) صرف په هغه صورت کې دی کله چي يوڅوک پوښتنه وکړي اوهغه ته داجوب ورکړي کني دطلاق دلفظ دتکرارپه دوهم صورت کې مثلا يوسړی خپلې ميرمنې ته ووايې چي ماتاته طلاق درکړطلاق درکړاوهغه ووايې چي دوهم وارطلاق مې درکړستادخبرولولپاره ووايونوپه دې وخت کې يې اعتبارنه کيږي ،ځکه داخبرورکول بې محله دی چاله هغه څخه پوښتنه نه ده کړې چي تاڅه وويل ؟نو ددوطلاقودواقع کېدوحکم به کيږي.

لکه څرنګه چي له دليل څخه هم معلوميږي: لوقال عنيت بالثاني الاخبار عن الاول لم يصدق في القضاء (بدائع ص: ١٧٩٢ج: ٤)

ترجمه: که چيري ووايې چي په دوهم وارطلاق ويلومې نيت دښځې دخبرولو ووپه اول طلاق باندي نوپه قضاکې يې ددي نيت تصديق نه کيږي اودوهم طلاق هم واقع کيږي.

**دمصحف الفاظو ( لکه دطاپرخاى تا) په ذريعه دطلاق صورت**

اکثره داسي کيږي چي انسان دطلاق په معامله کې دهرې ممکنې حيلې اوبهاني دتلاش کوشش کوي ، کله کله خو ددغوحيلوکوشش ترطلاق ورکولومخکې کوي اوډيروختونه ترطلاق ورکولووروسته له طلاق څخه دځان خلاصولو پربهانوغورکوي.

په هره زمانه کې په دوهم قدم کې ډيرخلک په بې فهمۍ اوغصه کې پرښځه باندي اخيري حربه دطلاق استعمال کړي اوبياپه وروسته کې ندامت او پښيماني کوي ، دنه واقع کېدوهرممکن صورت لټوي له دې وجې په هرکارکې خصوصاله ازدواجي زندګۍ سره متعلق چي کوم کارهم وي ښه سوچ اوپر



راتلونکې يې ښه نظرکول پکاردي ،عوام پردې باندي متوجه کول پکاردي ، دطلاق ورکولوپه سلسله کې هم څه داسي الفاظ سته دکوموچي صحيح تلفظ ( ويل ) نه کيږي خوله هغه سره ،سره طلاق په واقع کيږي مثلا که چيري خاوندخپلې ښځې ته ووايې چي ماتاته ( تلاک ) درکړ، يادطلاق ،ياتلاغ ،ياطلاغ الفاظ استعمال کړي نواوس داحيلې په کارنه راځي چي تلفظ يې صحيح نه دی ، کني داسي کېدای سوای نوڅه لږغوندي سوچ وکړئ چي په دنياکې صحيح تلفظ ويلووالاڅومره موجوددي مشکله ده چي په سل کې به دوه ياڅلورپيداسي يابه بياعلماء وي ، کني دعوام دالفاظود ادائېي حال او همهغوئ دعربي ويلوپه سلسله کې دټولوپه مخکې دی .

که چيري دالفاظودصحيح ويلواعتباروسي نوزماپه پوهه خوبه پرهيڅ چاښځه طلاقه سوې نه واى اودعدم تلفظ په بهانه کولوبه دڅومره ليک ، لوست خاوندان خلک جرأتمندسوې واى.

هويوصورت له دې څخه وتلی دی په هغه سره طلاق نه واقع کيږي مګرپه هغه کې هم دډيراحتياط ضرورت دی هغه صورت دادی: چي ښځه دطلاق غوښتنه وکړي اوخاوندطلاق ورکول نه غواړې پرداسي موقع باندي دغه الفاظ مصفحه لکه ( تلاک ، طلاک ، طلاغ اوداسي نور ) ويلاى سي مګرپه دې کي هم يوشرط سته چي دغوالفاظوتراستعمالولومخکې به خاونددوه شاهدان دروي چي ماپه دې لفظ ( تلاک وغيره ) سره دطلاق نيت نه ووکړی دښځې دضداوهغې ته دايذارسولولپاره مې استعمال کړې وو( چي مارهم ومري اولرګی هم مات نسي ) په دې صورت کې دعدم تلفظ عذرهم کارکوي.

دبحرالرائق ملا صاحب رحمه الله پرالفاظ مصفحه باندي کافي بحث کړی دی دمسئلې دوضاحت لپاره يې دکلام خلاصه نقل کړې ، ليکي: وهي خمسة تلاق وتلاغ وطلاغ وطلاك وتلاك فيقع قضاء ولايصدق الا اذاشهدعلى ذلك قبل التكلم بان قال امرأتي تطلب مني الطلاق وانالااطلق فاقول هذا (بحرالرائق ص: ٢٥٢ج: ٣)

د دې پنځولفظونوله استعمال وروسته به عدالت دطلاق دواقع کېدوفیصله کوي ، صرف دتهجی اوتلفظ په غلطۍ سره دعدم وقوع فیصله نه کیږي.

## عالم اوجاهل برابر

ترکومه چې دجاهل اودکم لیک ، لوست دخلکوسوال دی دهغوئ لپاره ددې الفاظوغلط استعمال بعیدنه دی بلکې له هغوئ څخه دصحیح ویلوتوقع هم نه کیږي البته دعالم لپاره داسي کول محل نظرنه دی دهغه دعلمي شان هم خلاف دي اوکه چیري ددې الفاظواستعمال دکومې حیلې پربناوي ( په دې شرط چې ددې دشرائطولحاظ سوی وي ) نودبحرالرائق ملاصاحب ددې دفیصلې مفتی به قول نقل کوي ، لیکي : چې په دې سلسله کې عالم اوجاهل دواړه برابردي یعنی طلاق واقع کیږي.

ولافرق بین العالم والجاهل وعلیه الفتوی ( بحرص: ۲۵۲ج: ۳ )

## دطلاق داضافت بحث

دطلاق په باب کې داضافت بحث هم ډیرلوي اهمیت لري ، دطلاق دواقع کېدولپاره چې کوم شرائط دي په هغوئ کې یواهم شرط اضافت هم دی یعنی په طلاق کې دطلاق نسبت دهغې ښځې وطرفته وي کومې ته چې طلاق ورکول کیږي ،داسي نه چې په طلاق کې خونیت دخپلې ښځې لپاره وي اونسبت له هغې پرته بل طرفته وي ، دنسبت دوه صورتونه دي یوداچې حقیقي نسبت وي لکه چې ووایې: زماښځې ته طلاق نواوس په دې کې دغیراحتمال نسي کېدای یااشارې په ذریعه طلاق ورکړي مثلا یوسړی دخپلې ښځې وطرفته اشاره وکړي ووایې چې دغې ښځې ته طلاق یادابنځه طلاق والاده نودطلاق دواقع کېدولپاره دومره نسبت هم کافي کیږي.

دا ضروري نه دي چې نسبت صراحتًا وکړي ، بلکې نسبت معنوی هم دطلاق دواقع کېدولپاره کفایت کوي ، مثلا یوڅوک ووایې طالق نوظاهره ده چې ددې لفظ کومه پته نه لګیږي چې داطلاق پرچاواقع سو، مګرپه معنوی توګه دومره



خبره ضرورمعلومیږي چې کوم سړی کله طلاق ورکوي نوله هغه څخه دده مرادخپله ښځه وي بله ښځه نه وي . لهذاپرداسي موقع بادي هم دطلاق دواقع کېدوحکم ورکول کیږي ، اوس ددې پوره تفصیل دعلامه ابن عابدین رحمه الله له قلم څخه وګورئ موصوف اضافت معنوی شرط کړی ، لیکي : لترکه الاضافة ای المعنویة فانها الشرط والخطاب عن الاضافة المعنویة وکذ الاشارة نحوهذه طالق وکذ انحوامرأتي طالق وزینب طالق ( شامی ص: ۲۹۰ج: ۲ )

ترجمه: داضافت معنوی دپرېښوولوپه وجه هم طلاق نه واقع کیږي ولې داشرط دی ، له اضافت معنوی سره دارازاشاره هم ده مثلا ( داطلاقه ) ده یادارنګه چې ( زماښځه طلاق والا ) ده یامسمی فلانۍ طلاقه ده وغیره.

په یوبل ځای کې علامه شامی رحمه الله وایي : ولایلزم کون الاضافة صریحة فی کلام کمافی البحرلوقال طالق فقیل له من عنیت فقال امرأتي طلقت امرائته ( شامی ص: ۵۹۰ج: ۲ )

ترجمه :اضافت صراحتًا ذکرکول ضروري نه دی ،لکه څرنګه چې په بحرکې دي که چیري څوک له طلاق ورکوونکې څخه پوښتنه وکړي چې څوک دې مراددی نوپه جواب کې ووایې چې زماښځه مې مرادده نودهغه ښځه طلاقیږي.

همداوجه ده چې که چیري یوسړی دښځې یادهغې دپلاریامور،یادخپل اولاد نوم واخلي طلاق ورکړي نوطلاق واقع کیږي ،ځکه چې خوپه اول کې اضافت ذکردی په باقي الفاظوکې دننه هم فی الجمله اضافت موجوددی علامه ابن عابدین صاحب ردالمحتارلیکي : لوذکراسمها اواسم ابیها اواسم امها اواسم ولدها فقال عمرة طالق اوبنت فلان اوبنت فلانة اوام فلان فقدصرحوابانها تطلق ( شامی ص: ۵۹۱جلد۲ )

له دې څخه معلومه سوه چې صرف نوم اخستل ضروري نه دی بلکې که چیري ښځه په کوم بل لقب مشهوره وي نودهغه لقب په ذکرباندي هم طلاق واقع کیږي غرض داچې داضافت لپاره صرف دومره اشاره که هغه دهرې نوعي هم وي کافي کیږي ( چې له هغه څخه دده ښځه مرادوي ) اوکه چیري دیادوسویوالفاظوله

صراحت سره ، سره خاوندووایې چې له دې څخه زماخپله ښځه مرادنه وه نود هغه اعتباربه نه کیږي ،ځکه چې په صریح طلاق کې دنیت کوم اعتبارنه کیږي اوطلاق واقع کیږي دارازدطلاق دصراحت همداحال دی ، ولوقال لم اعن امرأتي لايصدق قضاء( ص:۵۹۱ج۲ شامی )

دارازدصریح طلاق دپریوه ځای ورکولوباندي بحث کوي ، لیکي:
ان الصریح لايحتاج الى النية ولكن لابدفي وقوعه قضاءً وديانةً من قصداضافة لفظ الطلاق اليهاعالمابمعناه ( شامی ص:۵۹۳جلد۲ )

ترجمه : صریح طلاق دنیت محتاج نه دی مګردطلاق کېدودیانتًا تصدیق اودهغه په هکله دعدالتي فیصلې کولولپاره ضروري ده چې دطلاق دلفظ اضافت به دښځې وطرفته وي اوطلاق ورکوونکی به دطلاق په معنی هم پوهیږي.

له دې څخه معلومه سوه چې دطلاق ورکوونکي لپاره په دې خبره پوهېدل ضروري دي چې هغه طلاق ورکوي همداوجه ده چې که چیري یوسړی دطلاق الفاظ ووایې اودهغوئ په معنی نه پوهیږي نوددې ویلواعتبارنه کیږي ،ځکه هغه دمعنی په مقصدبلکل ناخبره دی لکه څرنګه چې شامی لیکلي دي :
واماالوالقنته لفظ الطلاق فتلفظ به غيرعالم بمعناه فلايقع اصلا( شامی ص:۵۹۳ج:۲ )

که چیري کوم سړی دطلاق دالفاظوتلقین ورکړي اوهغه دهغوئ په معنی نه پوهیږي نوددې په تلفظ سره بلکل طلاق نه واقع کیږي.

**دطلاق دمسائلوبه وار، وارتذکره**

دارازکه چیري دافهمام ( پوهولو ) په غرض دښځې په مخکې دطلاق دمسئلووار، واریادونه کوي یاله کوم کتاب څخه د( انت طالق ) دلفظ نقل وکړي یاکوم بل چاته هغه الفاظ ووایې کوم چې له طلاق سره متعلق وي ، یادهغوئ تلفظ وکړي نوپه دې صورتونوکې طلاق نه واقع کیږي ، هوکه چیري په دې صورتونوکې په یوه کې هم دتلفظ ( ویلو ) په وخت کې خپله ښځه



مرادکړي نوپرښځه باندي طلاق واقع کیږي علامه شامی رحمه الله صرف په یوه جمله کې دپورته یادې سوې مسئلې دلیل پیش کړی دی : فانه لايقع اصلا مالم يقصدزوجته ( شامی ص:۵۹۳جلد۷)

ترڅوپورې چې یې دخپلې ښځې اراده نه وي کړې نوطلاق نه واقع کیږي.

له دې سره ددې خبرې لحاظ هم ضروري دی چې دتلقین په صورت کې دطلاق نه واقع کېدوجه داده چې دلته دطلاق ورکولواراده نه وي بلکې تعلیم ( ښوول ) مقصودوي کنې که چیري دطلاق ورکولوپه اراده سره داسي وکړي ولوکه بل چاته له تلقین ( ښوولو ) څخه دسهي اومعنی معلومات نه وي نودمسئلې نوعیت بدلیږي یعنی دلته په معنی پوهېدل ضروري نه دي کله چې اراده اونیت وکړي نوپه معنی پوهېدل ضروري نه دي له دې پرته هم طلاق واقع کیږي لکه څرنګه چې علامه شامی رحمه الله دغیرعالم په ذیل کې ددې تفصیلي وضاحت کړی او لیکي : لوقالت لزوجها اقرأعلى اعتدى انت طالق ثلاثافغعل طلقت ثلاثافي القضاء اذلم يعلم الزوج ولم ينو( شامی ص:۵۸۴ج:۲ )

که چیري مېرمن خاوندته ووایې چې ته زماپه مخکې ووایه چې ته عده تېره کړه تاته درې طلاقه دي خاوندمېرمن په خوله وکړي داسي ووایې نوقاضی په نزددرې طلاقونه واقع کیږي که څه هم خاوندته ددې نه علم وواونه نیت.

**ديوې شبهې ازاله**

اوس یوه شبه پیداکیږي چې کله مېرمن غائبه وي نومسئله همداده چې دمېرمن په نه شتون کې که چیري خاوندطلاق ورکړي نوطلاق واقع کیږي ، دمېرمن حاضرېدل ضروري نه دی ، مګرغائب کېدوپه صورت کې خواضافت نه وي نوبیادطلاق واقع کېدل څرنګه ؟ دشبهې ازاله داسي کیږي چې اضافت غائبانه هم متحقق کیږي ، یاخودهغه صراحت وکړي یاکوم اسباب اوقرائن داسي موجودوي له کوموڅخه چې صاحب دعلم اوفهم دافیصله کولای سي چې هغه خپلې مېرمنې ته وویل بل چاته یې نه دي ویلې لهذادارازهم دطلاق دواقع

کېدوحکم کیږي غرض داچي دطلاق دورکول کېدوپه وخت کې دښځې موجود کېدل څه ضروري نه دي اونه هغې ته په طلاق باندي خبرېدل دطلاق دواقع کېدولپاره شرط دي.

همداوجه ده چي که کوم سړی دطلاق قسم وکړي نوطلاق دهغه پرښځې باندي راځي که څه هم هغه دښځې هیڅ یادونه نه وي کړې لکه چي علامه شامی رحمه الله دامسئله په صفااوواضح الفاظوکې لیکلي ده : لان العادة ان من له امرأة انمایحلف بطلاقها لابطلاق غیرها( شامی ص:۵۹۱ج:۲ )

ترجمه: په عامه توګه پرخپله ښځه باندي سړی دطلاق قسم کوي ،دبل چاپرښځه یې نه کوي.

### ته خپل طلاق واخله

که چیري خاوندخپلې ښځې ته ووایې چي ته خپل طلاق واخله په دې باندي ښځه ووایې چي ماواخست نویورجعي طلاق واقع کیږي ،دنیت هیڅ اعتبارنه کیږي.

ومنه خذی طلاقك فقالت اخذت فقدصح الوقوع به بلا اشتراط نية كمافى فتح القدير( شامی ص : ۵۹۱جلد۲ )

دبحرالرائق ملا صاحب تردې پورې ویلي دي : چي ددې ( ماواخست ) ویلوهم ضرورت نسته صرف دخاوندپه مذکوره الفاظوویلوسره رجعي طلاق واقع کیږي موصوف لیکي: لایشترط قولهااخذت کمافی البحر( شامی ص:۶۹۱جلد:۲ )

داراز لاندي الفاظ پرته له نیت نه په ویلوهم یورجعي طلاق واقع کیږي.

اورضیت طلاقك اواوقعت علیك الطلاق ووهبت لك طلاقك ولم ینوشیئا یقع طلاق واحدة ( شامی ص : ۵۹۱ج۲ )

ترجمه: زه ستاپه طلاق راضي یم ، پرتاطلاق دی ، تاته مې طلاق دربخښلی دی ،اونیت یې هم نه وي نویورجعي طلاق واقع کیږي.



### دطلاق دارادې حکم

البته که چیري خاونداووایې : چي ماتاته دطلاق درکولواراده کړې ده ، یایه تاته طلاق درکوم نوپه داسي ویلوسره طلاق واقع کیږي نه دامحض اراده اووعده ده : ولوقال اردت طلاقك لایقع( قاضی خان ص:۳۸۵ج:۱ )

په عالمګیري کې دي: فی المحیط لوقال بالعربیة اطلق لایکون طلاقًا ( ص:۴۱۰ج:۱ مصری )

### په خنداا ومسخروکې طلاق ورکول

دطلاق په باب کې دمسخروحکم هم شرعًا معتبراوپرحقیقت باندي حمل کیږي دنبی علیه السلام ارشادمبارک دی: عن ابی هریرة رضی الله عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال ثلاث جدهن جدوهزلهن جدالنكاح والطلاق والرجعة رواه الترمذی ص : ۲۸۴( مشكوة شریف )

نبی علیه السلام ویلي دي : چي په دروشیانوکې مسخرې هم پرحقیقت حمل کیږي-۱ نکاح ، -۲ طلاق ، -۳ اورجعت.

که کوم سړی په مسخروکې هم خپلې ښځې ته طلاق ورواچوي نوپرهغې باندي طلاق راځي ددې دزیاتې تشریح لپاره دفقهاء کرامودغه څوعبارتونه وګورئ:

بخلاف الهازل واللاعب فانه یقع قضاء ودیانة لان الشارع جعل هزله جدًا( شامی ص:۵۸۵ج:۲ )

په خلاف ددې چي په مسخرواوبازیوکې دطلاق لفظ استعمال کړي نوقضاء اودیانتاً دطلاق واقع کېدوحکم کیږي ،ځکه چي شارع علیه السلام په مسخرو کې ورکول سوې طلاق ته دحقیقت درجه ورکړې ده.

ددلیل پرسبب باندي علامه شامی رحمه الله بحث کړی اولیکي: لانه تکلم بالسبب قصدًا فیلزمه حکمه وان لم یرض به ص:۵۸۵ج:۲ )

ترجمه: ،ځکه ده دسبب استعمال قصداوکړله دې وجې نوپرهغه باندي حکم هم مرتبیږي که دده خوښه وي ،که نه ؟

### په غلطي سره دطلاق لفظ ویل

کله چي شریعت دطلاق په باب کې په مسخروباندي هم دطلاق واقع کېدوفیصله کړې ده نوپرغلطي باندي به یې ولي نه کوي اوکه چیري غلطي صریح اوواضحه وي نونور خطرناک صورت حال اختیاروي ، لهذاکه چیري یوڅوک په غلطي سره دسبحان الله پرځای: ( ماتاته طلاق درکړ، یاتاته طلاق ) ووایې نوپرښځه باندي یورجعي طلاق واقع کیږي ،ځکه دطلاق په صریح الفاظوکې غلطي هم صرف نظرنه کیږي په ردالمحتارکې ددې صفاتصریح سوې ده : بان اراد ان یقول سبحان فجری علی لسانه انت طالق تطلق لانه صریح لایحتاج الی النیة ( شامی ص: ۵۸۴ج:۲ )

ترجمه: که یوسړی غواړي چي سبحان الله ووایې خوپرژبه یې دطلاق لفظ جاري سي یعنی داسي ووایې چي ( تاته طلاق دی ) نوطلاق واقع کیږي ،ځکه دطلاق په صریح الفاظوکې دنیت لحاظ نه کیږي.

که په خبرویاناخبرې کې له ژبې څخه دطلاق لفظ ووځي اودښځي وطرفته دطلاق ورکولواشاره وکړي نوداطلاق هم واقع کیږي په درمختارکې دي : اوغافلااوساهیایقع قضاءً ( درالمختارمع هامشه ردالمحتارص: ۵۸۲ج:۲

### دمرض په حال کې دطلاق حکم

مریض که چیري دمرض په حال کې طلاق ورکړي نوطلاق واقع کیږي په دې شرط چي دهغه هوښ اوحواس پرځای وي دمریض په ذیل کې دردالمحتار ملاصاحب رحمه الله لیکي: ای لم یزل عقله بالمرض ( شامی ص: ۵۸۵ج:۲ )

ترجمه: دمرض په وجه یې عقل زائل سوی نه وي.

دمریض تصرفات په هغوحالاتوکې چي مرض یې خطرناک نه وي اوعقل اوشعوریې باقي وي شرعًا معتبردي البته که چیري په مرض الموت کې طلاق ورکړي نودهغه احکام ضروربدلیږي اوپه هغه کې څه تفصیل دی پرداسي موقع باندي طلاق ورکوونکې ته فار( تېښتېدوونکی ) ویل کیږي ، ،ځکه طلاق



ورکوونکې په داسي وخت کې په طلاق ورکولوسره ښځه له میراث څخه بې برخې کول غواړي اوطلاق ورکوي ګواکې له دې څخه فراراختیاروي : ویقال له الفارلفراره من ارثها ( شامی ص: ۷۱۵ج:۲ )

خودفراردتحقق اواودهغه دحکم ثبوت صرف دطلاق بائن اودروطلاقونو پرموقع باندي کیږي ،ځکه په دغودواړوصورتونوکې دمیراث حق ساقطیږي ، طلاق رجعي ورکوونکې ته فارنه ویل کیږي شامی رحمه الله لیکي چي: البائن قیدبه لان حکم الفرار لایثبت الابه لان الرجعی لافرارفیه ( شامی ص: ۷۲۱ج:۲ )

په دې طلاق کې دبائن قیدپه دې وجه ضروري دی چي له بائن پرته په هیڅ صورت کې له میراث څخه تېښته نه کیږي په طلاق رجعي کې دفرارثبوت نه راځي.

### دمرض الموت ( دمرګ دمریضی ) حکم

داسي مرض ته په کوم کې چي په ظاهري توګه دکتوونکو دمریض دپاتېدو امیدنه وي مرض الموت وایې که چیري په دغه مرض کې مړسي نوبیادطلاق احکام مختلف دي ، که چیري یوسړی خپلې ښځې ته دداسي مرض په حال کې طلاق ورکړی وي اوپه عده کې دننه دهغه انتقال وسي نوپه دې وخت کې مېرمن دمیراث حقداره ده اوددااستحقاق ( حقداره کېدل ) صرف په هغه صورت کې دی کله چي یې رجعي طلاق ورکړی وي ، اوکه چیري خاوندبائن طلاق ورکړی وي نودهغه څوصورتونه دي ، یابه یې دښځې په مطالبه ( غوښتنه ) طلاق ورکړی وي یابه یې دژوندپه اخیري وخت کې میرمنې ته له میراث څخه دمحرومولو په خاطرطلاق ورکړی وي په اول صورت کې په میراث کې حصه نه ورکول کیږي ،ځکه په هغه صورت کې ښځې په خپله دطلاق غوښتنه کړې ده اودخپلو کړوعلاج نسته ، په دوهم صورت کې دمیراث حقداره ده.

البته که چیري یووارجوړپیاناروغ وي ( یعنی دځه مصالحولکه اودس ،ولاړه ،بیت الخلاء ته دتللوقدرت لري ) اوپه ظاهره دمرګ آثارموجودنه وي نوپه

داسي وخت كې طلاق وركوونكې ته نه ( فار ) ويل كيږي اودې مرض ته مرض الموت ويل كيږي په ردالمحتاركې يې وګورئ: فلوقدرعلى اقامة مصالحة في البيت كالوضوٰ والقيام الى الخلاء لايكون فارًا ( شامى ص: ۷۱۵جلد:۲ )

**يوه مسئله**

كه چيرې په مرض الموت كې ښځه له خاوند څخه درجعي طلاق غوښتنه وكړي اوخاوند طلاق وركړي بيا په عده كې دننه خاوند مړسي نوښځه دميراث حقداره ده كه چيرې دبائن طلاق غوښتنه وكړي اوخاوندبائن طلاق وركړي نو اوس دښځې په ميراث كې هيڅ حصه نسته ، له دې وجې چې په دې صورت كې ښځې خپل حق پخپله باطل كړ.

وكذاترث طالبه رجعية درمختاربخلاف مالوطلبت البائن ( شامى ص: ۷۱۹ج:۲ )

ترجمه : درجعي طلاق غوښتوونكې ښځه دميراث حقداره ده خودطلاق بائن دغوښتوونكې ښځې مسئله مختلفه ده.

**يواصول (قانون)**

داسي طلاق دكوم په وجه چې دزوجيت قرابت فورًا نه منقطع كيږي بلكه دطلاق له وخته ترعدې تېرېدوپورې ښځه په نكاح كې دننه وي نومسئله داده چې ښځه دخاوندپه مال كې ( كه يې چيرې اولادنه وي ) دڅلورمې حصې اوكه يې چيرې اولادوي نوداتمې حصې حقداره ده ، په رجعي طلاق كې ظاهره ده چې دعدې ترتېريدوپورې ښځه په نكاح كې ده البته په طلاق بائن كې اختلاف دى ، په رجعي طلاق كې كه يې صريح طلاق وركړي يادوه ددواړوحكم يودى علامه شامى رحمه الله ليكلي دي: لابدمن استمرار الاهلية من وقت الطلاق الى وقت الموت ( ص:۷۹۱ج :۲ )

دطلاق له وخته ترمرګه پورې داهليت ( ښځه كېدل يې) باقي پاتې كېدل ضروري دي.



دغه اصول قاضى خان په واضحه توګه بيان كړى دي : والاصل فيه ان احد الزوجين باشرالفرقة بعدماتعلق حق الآخربماله ورثه الآخر( ص:۵۰۲ج:۲ )

اصل دادى : كه چيرې په خاونداومېرمن كې هريوپه داسي وخت كې جلاوالى اختياراول غواړي ، كله چې ديوه په مال كې دهغه بل حق ثابتيږي په دې وخت كې ميراث هم جاري كيږي.

**دبائن طلاق اختلاف**

كه چيرې ښځه خاوندته دمرض په وخت كې صرف داووايې چې ماته طلاق راكړه ( درجعي اوبائن هيڅ تصريح ونكړي ) خوخاونددرجعي طلاق پرځاى بائن يادرې طلاقونه وركړي نوپه دې وخت كې كه څه هم ښځه له نكاح ووته مګردميراث مستحق ( حقداره ) كيږي ،ځكه دښځې غوښتنه دمطلق طلاق وه كومه چې پررجعي حمل كيږي اوخاونددهغې خلاف وكړل.

كذاترث طالبة رجعية اوطلاقًافقط درمختار!

علامه شامى رحمه الله ليكلي دي:

اى بان قالت له فى مرضه طلقنى فطلقهاثلاثًا فمات فى العدة ترثه اذاصارمبتدأ فلايبطل حقهافى الارث لقولهاطلقنى رجعية فابانها( شامى ص: ۷۱۹ج:۲ )

ترجمه : ښځه دمرض په حال كې غوښتنه وكړي چې ماته طلاق راكړه ،خاوند هغې ته درې طلاقونه وركړي اوپه عده كې مړسي نوښځه دميراث حقداره ده ، ځكه چې خاوندابتداء دښځې دميراث حق باطل نكړ ،ځكه له ده څخه درجعي طلاق غوښتنه سوې وه اوخاونددرې طلاقونه وركړل.

**دتوجه وړوښتنه**

له دې څخه دامسئله هم واضحه كيږي چې كه چيرې خاوندپه مرض الموت كې خپلې ښځې ته له ميراث څخه دبې برخې كولولپاره بائن يامغلظه طلاق وركړي اوپه عده كې دننه هغه مړسي نوپه دې وخت كې ښځه بې برخې كيږي نه ، اوپه ميراث كې دهغې هم حق سته علامه زين العابدين رحمه الله په خپل كتاب

الاشباه والنظائرکې يو اصول بيان کړی ،ليکي: لوطلقهاثلاثًا بلا رضاهاقاصدًا حرمانهامن الارث فی مرض موته فانهاترثه ( الاشباه والنظائرص: ۱۵۹)

ترجمه: دښځې دخوښې په خلاف خاونددرې طلاقونه ورکړي ددې لپاره چې له ميراث څخه يې محرومه کړي نودابنځه دميراث حقداره ده.

**په رجعي طلاق کې خاونداوميرمن دواړه دميراث حقداره دي**

درجعي طلاق په صورت کې لکه څرنګه چې ښځه دميراث حقداره ده درازخاوندهم حقداره دی يعنی که چيري يوڅوک خپلې ښځې ته رجعي طلاق ورکړي خواه دښځې په غوښتنه يې طلاق ورکړی وي ياپرته دهغې له غوښتنې وي اودمرض په حال کې يې ورکړی وي يادصحت په حال کې بياپه عده کې دننه هغه مړه سي نوخاوندهم دميراث حقداره کيږي.

**دخاوندحق**

څرنګه چې دښځې په ترکه (پاتي شونې) کې دهغې داولاديادنورو ميراث خورو حصه سته دارازدخاوندهم حق سته ، داويل صحيح نه دي چې خاوندطلاق ورکړی وولہ دې وجې نواوس دهغه دحصې هيڅ سوال نه کيږي ،ځکه هغه رجعي طلاق ورکړی وواوپه رجعي کې ښځه له نکاح نه وځي بلکي ښځه يې ده ترهغه پورې چې په عالمګيري کې يې تفصيل موجوددی: الرجل اذاطلق امرأته طلاقًا رجعيافی حال صحته اوفی حال مرضه برضاهااوبغيررضاهاثم مات فی العدة فانهمايتوارثان بالاجماع (ص: ۴۷۳ ج:۱ مطبع مصری ص:۵۰۲ قاضی خان)

ترجمه: خاوندښځې ته رجعي طلاق ورکړخواه دروغتياپه حال کې يادمرض په حال کې وي دارازدښځې په غوښتنه ياپرته دهغې له غوښتنې وي بيادعدې په زمانه کې خاوندمړسي نودواړويودبل دميراث حقداره دي.

علامه ابن عابدين رحمه الله هم دد ې مسئلې ښه وضاحت کړی دی ددرمختار پرعبارت (يتوارثان) باندې يې تبصره کړې ، ليکي:



فايهمامات وهی فی العدة يرثه الآخر ( شامی ص: ۷۱۹ ج:۲ )

ترجمه: دعدې په وخت کې چې په خاونداوميرمن کې هريووفات سي نوهغه بل يې دميراث حقداردی.

قاضی خان هم ددې وضاحت کړی ليکي: وکذايومات المرأة فی العدة ورثهاالزوج ( ص: ۵۰۳ ج:۲ )

دارازکه چيري ښځه په عده کې دننه مړه سي نوخاونديې دميراث حقداره دی.

**دمړې سوې ښځې مهر (ولور) هم ميراث دی**

که چيري ښځه مړه سي اوخاونددهغې مهراداکړی نه وي (له دې وجې چې اکثره داسي کيږی چې دمهرخصوصادمؤجل (ځنډمنی) په ادائينه کې دخاوندله لورې خاص تاخيرکيږي ) نوددې ولورشرعي حيثيت دميراث دمال دی يعنی څرنګه چې دنورمال اوجائيدادتقسيم دمرحومې (مړې سوې ) دميراث خوروپه مينځ کې کيږي دارازدمهرتقسيم هم دميراث په حقدارو کيږي اوڅرنګه چې خاوندهم دنکاح پربناوارث دی له دې وجې په مهرکې هم دهغه څلورمه حصه کيږي په دې شرط چې اولادموجودوي که اولادنه وي نوبيادنيمی حقداردی.

که چيري خاوندښځې ته رجعي طلاق ورکړی وي اوپه عده کې دننه پرته دمهرله ورکولوښځه مړه سي نوهلته هم دهغې مهرد ميراث په مال کې شميرل کيږي اوخاونددمخکني صورت په څيردميراث حقداره دی.

**په طلاق کې دتاکيدبحث**

په دې باب کې دتاکيدبحث هم ډيراهم دی ، محض دالفاظوپه تکرارسره په حکم کې هم دتکرارقوي احتمال سته اوپه دې باب کې ددې خاص لحاظ کيږي ، دتاکيددجزئياتواوبيلابيلو مسئلوتربيان مخکې په دې باره کې دفقهاؤاصول ملاحظه کړئ:

اصول: فقهاؤ دمسائلودااستخراج اواستنباط اوپرهغوئ دحکم مرتب کولوپه سلسله کې يوت قاعده کليه ، ترکومې لاندې چې پرتولوجزئياتواومسائلوحکم

لګول کيږي اوهغه داده چي تاسيس ترتاکيداولی دی يعنی دمتکلم دکلام اصل مرادته تاسيس ويل کيږي دمثال په توګه زيددخپلې ښځې په مخکې ( انت طالق ،طالق طالق ) ووايي يعنی تاته طلاق ، طلاق ، طلاق ، اودلته دطلاق لفظ درې واره وويل سونواوس که چيري زيدوايي چي زمامرداله دوهم اودريم طلاق نه تاکيدوويعنی صرف ديوه طلاق اراده مې کړې وه نوقضاء دزيددې ويناعتبارنه کيږي بلکي ويل کيږي به چي څرنګه دمتکلم مرادپرخپله ښځه باندي دطلاق واقع کېدل وولکه څرنګه چي دزيدله اقرارڅخه معلوميږي لهذادفقهاؤداصولومطابق دوهم اودريم طلاق هم داول طلاق په څيرپرطلاق باندي حمل کيږي اوپرښځې باندي درې طلاقه واقع کيږي.

ترڅوپورې چي ددیانت سوال دی نودتکرارپرلفظ دنيت معامله چونکه بينه وبين الله ده له دې وجې هلته دتاکيددنيت اعتبارکيږي لکه څرنګه چي له حديث څخه هم ددې تاکيدکيږي چي نبی عليه السلام دظاهراعتبارکوي اودنيت مسئله خدای تعالی ته سپاري علامه ابن نجيم رحمه الله (٩٧٠ )موصوف داصل تصريح کړې په خپل کتاب الاشباه والنظائرکې ليکي:

التأسيس خيرمن التاكيدفاذادار اللفظ بينهما تعين الحمل على التاسيس ولذاقال اصحابنالوقال لزوجته انت طالق ، طالق ، طالق طلقت ثلاثا فان قال اردت به التاكيدصدقه ديانة لاقضاء" ( ص : ١۴٩مطبع النشروالتوزيح القاهرة ص: ١٣٨ه )

ترجمه : تاسيس ترتاکيدبهتردی کله چي لفظ دتاکيدواتاسيس دواړوپه مينځ کې دائرسي نوپرتاسيس باندي حمل کول پکاردي له دې وجې که چيري خاوندخپلې ښځې ته په خطاب کې ووايي چي تاته طلاق ، طلاق ، طلاق نودافقهاؤ درې طلاقه بللې دي ،خاوندووايي چي زمااراده تاکيدوونودده قول ديانة تسليميږي مګرقضاء دطلاق فيصله کيږي.



## دتکراردالفاظوڅومسئلې

( ١ ) که چيري يوسړی خپلې ښځې ته رجعي طلاق ورکړي ، بياله دې وروسته په عده کې دننه ووايي چي ماتاته طلاق درکړنودوه طلاقه واقع کيږي ( ص : ٣٥٢جلد: ١ (٢ ) که څوک ووايي چي تاته يوطلاق يونوپه دې سره يوطلاق واقع کيږي (٣ ) که څوک خپلې ښځې ته ووايي: تاته طلاق له هغه وروسته وايي چي هوطلاقې نوپه دې اخيرې جمله باندي طلاق نه واقع کيږي ، بلکي يورجعي طلاق واقع کيږي ، په عالمګيري کې دي : لوقال انت طالق واحدة واحدة تقع واحدة ولوقال لهاانت طالق ثم قال لهايامطلقة لاتقع اخرى ( عالمګيری ص: ٣۵ج:١ )

## دظهيريه فتوی

که يوڅوک خپلې ښځې ته داووايي : چي تاته طلاق اوتاته نوپه دې سره دوه طلاقه واقع کيږي ( ولوقال انت طالق وانت تقع ثنتان ص: ٣٥٢ )
ليکن په ظهريه وغيره کې ديوه طلاق دواقع کېدوتصريح موجوده ده اودامفتی به قول دی.

## دښځې مطالبې ( غوښتنې )

(١ ) ښځه ووايي: چي ماته طلاق راکړه ، ماته طلاق راکړه ، ماته طلاق راکړه ، په دې سره خاوندووايي ماتاته طلاق درکړ نودرې مغلظه طلاقونه واقع کيږي خواه دخاوندنيت ددروطلاقونووي يانه.

وامرأة قالت لزوجهاطلقني وطلقني وطلقني فقال الزوج قدطلقتك طلقت ثلاثًا نوى الزوج الثلاث اولم ينو( عالمګيری ص: ٣٥٢ )

(٢ ) دارازکه چيري ښځه دعطف له واوپرته ووايي: چي ماته طلاق راکړه ، درې واره ووايي اوخاوندووايي چي ماتاته طلاق درکړنوکه يې چيري نيت ددروي نودرې واقع کيږي کنې نوديوه واقع کېدل خوښکاره دي ( ايضا )

(۳) که چیري ښځه ووایې چي ماته طلاق راکړه ،خاوندورته ووایې: چي لست لی بامرأة( یعنی ته زمانښځه نه یې ) نوفقهاؤپرته له نیت نه دیوه طلاق حکم کړی دی ،ځکه چي دغه جمله( ته زمانښځه نه یې ) دښځې په جواب کې ده لکه ځرنګه چي په عالمګیري کې تصریح ده:

وامرأة قالت لزوجها طلقنی فقال لها لست لی بامرأة قالوا هذا جواب یقع به الطلاق ولا یحتاج الی النیة ( ص: ۳۵۲ج:۱ )

(۴) که چیري ښځه ووایې: چي ماته طلاق راکړه ،خاوندووایې: ( ته یوه یې ) نوپه دې سره هم یوطلاق واقع کیږي ( فقال لها انت واحدة طلقت واحدة )

(۵) که چیري ښځه ووایې: چي ماته طلاق راکړه ، خاوندووایې: ماوکړل نوپه دې سره هم یوطلاق واقع کیږي ( فقال الزوج قد فعلت طلقت واحدة )

(۲) په یادوسویوپنځومسئلوکې که دخاوندپه جواب کې ښځه ووایې چي نوریې زیات کړه ،خاوندبیا( ماوکړل ) ووایې نودوه طلاقونه واقع کیږي اودارازدرې هم واقع کیږي ( عالمګیري ص: ۳۵۲ج:۱ )

(۷) په محیط کې یوه مسئله دارازذکرسوې ده چي ښځه خاوندته ووایې چي ماته درې طلاقونه راکړه ،خاوندووایې چي ماته بائنه جوړه کړې نودرې طلاقونه واقع کیږي.

اذاقالت المرأة طلقنی ثلاثاً فقال الزوج قد ابنتك فهذا جواب وهی ثلاث کذا فی المحیط.

(۸) لیکن که چیري خاوندصرف ( انت طالق ) تاته طلاق دی ووایې نویوطلاق واقع کیږي په سراج الوهاج کې دي که چیري خاوند د( قد طلقتك ) ( تاته مې طلاق درکړی دی ) لفظ دثلاثا( درو ) په جواب کې ووایې نوپه دې سره درې واقع کیږي ،ځکه دادثلاثا په جواب کې دی کوم چي پرتاکید دلالت کوي لکه ځرنګه چي په عالمګیري کې دي: ولو قال قد طلقتك فهی ثلاث کذا فی السراج الوهاج ( عالمګیری ص: ۳۵۲ج:۱ )



(۹) دارازکه ښځه ووایې: چي ماته دې طلاق راکړی دی ، خاونددرې واره ووایې چي مادرکړی ، درکړی ، درکړی دی ، نودرې واقع کیږي لکه ځرنګه چي په مختصرالخزانه کې دي: فی مختصر الخزانة لو قالت المرأة مرا طلاق کن فقال الزوج کردم ، کردم ، کردم طلقت ثلاثا ( فتاوی مجموع النوادرقلمی ص: ۴۷۰ج:۱ )

**که چیري یوځوک خوله وربنده کړي**

(۱) که چیري یوځوک دطلاق ورکولواراده وکړي اولفظ د( ط ) یې ویلی ووپخپله چوپ سویابل چادده خوله وربنده کړه له هغې وجې یې دطلاق لفظ نسوویلای نوپه داسې صورت کې که یې څه هم نیت دطلاق وي خوطلاق واقع کیږي نه لکه ځرنګه چي له بحرالرائق څخه په عالمګیری کې منقول دي: وان حذف اللام والقاف بأن قال انت طا وسکت او اخذ انسان فمه لایقع وان نوی کذا فی البحر( ص: ۳۵۷ج:۱ )

که چیري لام اوقاف حذف کړي یابل ځوک پرخوله لاس ورونیسي نوطلاق نه واقع کیږي ولوکه یې دطلاق نیت کړی وي.

(۲) که چیري یوځوک پرخوله لاس ورونیسي بیاله هغه وروسته ووایې ( درې ) نواوس درې واقع کیږي په بحرالرائق کې دي : لو اخذ انسان فمه ثم قال ثلاث فثلاث وهو محمول علی ما اذا قال علی الفور عند رفع الید من فمه ( ص: ۵۰۷ج:۱ )

ترجمه: که چیري له خولې خلاصولووروسته ووایې ( درې ) نودرې واقع کیږي

(۳) ښځه ووایې چي ماته طلاق راکړه ،خاونداراده کړې وه چي یوچایې خوله وربنده کړه ،له خولې څخه دلاس ترلیري کولووروسته یې وویل چي دادم ( درکړی مي دی ) نوطلاق واقع کیږي.

فلما رفع یده قال دادم فانها تطلق ص: ۵۰۷ج:۱ )

**یوه قاعده**

په دې سلسله کې دیوې قاعدې په یادساتل پکاردي : اوهغه داچي که چیري ښځه دطلاق غوښتنه په ښکاره اوواضح الفاظوکې وکړي: چي ماته طلاق راکړه

نوددې په جواب کې که خاوندله طلاق سره متعلق کوم لفظ یاجمله استعمال کړي مثلا داووایې چې ماطلاق درکړی دی ، یاتاته طلاق ، یاته طلاق والایې ، یامادرکړی دی ،یاته آزاده یې ، یاماته پرېښې یې اوداسي نورنوپه دې صورتونو کې دښځې مطالبه پوره کېږي اویورجعي طلاق واقع کېږي.

البته په دې کې داتفصیل دی چې که ښځه دیوه مطالبه کوي یاددروخاوندته ددې خبرې اختیاردی چې دهغې مطالبه په یوه پوره کړي یاددروپه ذریعه یایې بلکل پرېږدي هیڅ هم ونه وایې په هرحال اوس هم دطلاق واقع کېدل دخاوندپر خوله موقوف دی.

ددې اصول علامه ابن عابدین رحمه الله په ردالمحتارکې دارازبیان کړی دی:

بل المرادان تسند اللفظ الى مالواسنده اليه الزوج يقع به الطلاق فهذايكون مايصلح لايقاع من يصلح للجواب منها( شامی ص: ۶۲۳ج:۲ )

دارازبل ځای لیکي : اصل ان كل شئ من الزوج طلاق اذاسألته فاجابهابه فاذا وقعت مثله على نفسهابعد ماصارالطلاق بيدهاتطلق فلوقالت طلقني فقال انت حرام اوبائن اوخلية اوبرية تطلق ( شامی ج :۲ ص: ۶۲۳)

ترجمه : اصل دادی چې دښځې له غوښتنې سره سم که خاوندکوم جواب هم ورکړي په هغه سره طلاق واقع کېږي نوکه چیري ښځه په خپل لاس کې دطلاق اختیارواخلي پرخپل ځان یې واقع کوي نوواقع کېږي څرنګه چې که چیري ښځه ووایې ماته طلاق راکړه اوخاوندووایې چې ته حرامه یې ، یابائنه یې ، یاآزاده یې نوطلاق واقع کېږي.

مسئله : که چیري ښځه ووایې: چې ماته دطلاق اختیاردی ته ماته زرطلاقونه راکړه په دې سره خاوندپه غصه سي ووایې چې زرطلاقونه مې درکړې دي نودرې طلاقه واقع کېږي (عزیزالفتاوی اردو )



## داکراه ( زور) په حال کې دطلاق حکم

که څه هم په عامه توګه دجبراواکراه په صورت کې احکام بدلیږي اوپرهغوی باندې هیڅ حکم نه مرتبیږي مګرپه بعضوصورتونوکې جبراواکراه هم معتبریږي اودهغه مطابق فیصله کیږي ، په هغوبعضوصورتونوکې دطلاق مسئله هم داخله ده مثلا یوسړی خاوندمجبورکړي چې ته خپلې ښځې ته طلاق ورکړه کنې داسي اوهاسي به درسره وکړم په دې دمکۍ ( ګوت څنډنه ) له ویرې هغه خپلې ښځې ته طلاق ورکړي نوطلاق واقع کیږي ، په دې شرط چې دطلاق الفاظ په ژبه ووایې ددرمختارملا صاحب لیکلې دي:

ويقع طلاق زوج ولوعبدًا اومكرهافان طلاقه صحيح!

ترجمه : دهرخاوند طلاق که هغه مریيی وي یامجبوره صحیح دی.

پردې علامه شامی رحمه الله تبصره کړې ده چې ( تصح مع الاكراه ( شامی ص: ۵۷۹ج:۲ ) که رجعې ورکړي یابائن دواړه واقع کیږي.

### په ژبه ویل ضروري دي

البته یوشی یادساتئ: چې که چیري یوڅوک پرطلاق مجبورسي مګرهغه په ژبه دطلاق لفظ استعمال نکړي نوپه داسي صورت کې طلاق نه واقع کیږي.

### په زورطلاقنامه لیکل

دارازکه چیري خاوندپرطلاقنامه لیکلوباندې مجبورسي ، په هغه طلاقنامه ولیکي اودستخط هم په وکړي مګرپه ژبه یولفظ هم ونه وایې نومحض په لیکلواودستخط کولوباندې طلاق نه واقع کیږي ترڅوپورې چې په ژبه دطلاق الفاظ ادانکړي علامه ابن عابدین رحمه الله لیکي:

ولواكره على ان يكتب طلاق امرأته فكتب لاتطلق لان الكتابة اقيمت مقام العبارة باعتبارالحاجة ولاحاجة هنا كذافي الخانية ( شامی ص: ۵۷۹ج:۲ )

ترجمه: که چیري خاوند د طلاق پر لیکلو مجبورسي اوله هغه لیکلي واخلي نو طلاق نه واقع کیږي. ځکه لیکل د ضرورت په وخت کې د اظهار د مافي الضمير ذريعه جوړيږي اودلته د دې هيڅ ضرورت نسته.

د بزازيه عبارت هم د دې تاکيد کوي: وفي البزازية اكره على طلاقها فكتب فلانة بنت فلان طالق لم يقع (بحرالرائق ص: ۳۴۲ ج: ۳)

ترجمه: د ښځې پر طلاق باندې خاوند مجبور کړي اوله هغه څخه لیکلي واخلي چې مسماة د فلاني لور ته طلاق نو په دې سره طلاق نه واقع کیږي.

په ردالمحتار کې دي: ان المراد الاكراه على التلفظ بالطلاق (ص: ۵۷۹ ج ۲)

خو که چيري په رضا سره طلاق نامه وليکي اوخاوند گوته پر ولګوي يا دستخط پروکړي نو طلاق واقع کيږي په دې شرط چې طلاقنامه ووايي اوواېي اوروي چې څه یې لیکلي وو، یا که چیري لیکلو والا بل څوک وي نو خاوند به یې ووایي.

**آسانه لار**

خدای دې نه کوي که چیري دیو چا مخې ته داسي حال راسي نو د هغه لپاره آسانه لار داده چې پرکاغذ باندي د طلاق لفظ وليکي او په ژبه د طلاق لفظ ونه وايي که غواړي دستخط دې هم وکړي طلاق نه واقع کیږي.

**دديانتًا اوقضاءً بحث**

په دې باب کې بعضې شيان د ديانت اوقضاء دواړو په نزد معتبر دي اوبعضې وخت صرف ديانتًا اوبعضې وخت صرف د قضاءً حکم کیږي. قضاء اوديانت لکه څرنګه چې د مفهوم په اعتبار جلا، جلا دي د حکم په اعتبار هم د دواړو جلا، جلا حيثيت دی په دې باب کې چې کله دديانتًا لفظ وويل سي نوله هغه څخه مراد داده چې اوس د طلاق معامله د طلاق ورکوونکي پر ديانت ده اود صحيح .غلط . وقوع اونه وقوع ټولومدار د هغه پر نيت دی يعنی اوس هغه اود هغه خدای پوهيږي په دې باندي په فقهي اصطلاح کې تعبير په (فيمابينه وبين الله) سره کيږي.



او د قضاءً مطلب دادی چې يو سړی دري واره د طلاق لفظ استعمال کړي اووايي چې (زمانيت دتاکيد وو) نو ديانتًا د هغه د دې نيت اعتبار کيږي ليکن قاضي به د هغه د نيت بلکل اعتبار نه کوي بلکي د درو طلاقونو حکم به کوي. ځکه د قضاء مدار پر نيت نه بلکي پر ظاهري حال باندي دی.

له دې وجې چې دا مسئله له معاشرې او دخاندان له مصالحو سره تړلې ده. قاضي د معاشرې د سمون ذمواردی، په خلاف د مفتي چې هغه ته داحق نسته چې هغه د تاکيد له نيت سره، سره درې طلاقونه واقع کړي دا اختيار صرف او صرف قاضي ته حاصل دی مګر د حالاتو اوزماني په لحاظ سره اوس مفتي ته هم د تاکيد د نيت اعتبار نه کول، د درو طلاقو فتوی ورکول پکار دي.

علامه شامي رحمه الله ليکلي دي: اى تصح نيته فيمابينه وبين الله تعالى فيفتيه المفتي بعدم الوقوع اما القاضي فلا يصدقه ويقضي عليه بالوقوع لانه خلاف الظاهر بلاقرينة (شامي ص: ۵۹۳ ج: ۲)

ترجمه: مفتي که د هغه د نيت د اعتبار کولو فتوی ورکړي قاضي به یې تصديق نه کوي او د طلاق د واقع کېدو حکم به کوي. ځکه دا د ظاهر خلاف دی او د هغه د خلاف کوم قرينه هم نسته.

**د نشې په حال کې د طلاق د واقع کېدو حکمت**

په دې کې هيڅ شک نسته چې الله تعالی انسان په بېشماره نعمتونو نازولی دی، د باري تعالی له ورکول سويو نعمتونو څخه عقل هم دی که د هغو په بدل کې انسان ټوله زندګي د الله تعالی په دربار کې په سجده پرېوځي نو هم د هغو د لسمي حصې بدله به ادا نکړي، ليکن له دې سره، سره د ټولو شيانو اختيار د وحده لا شريک له په قبضه کې دی انسان ته د خپل ځان اختيار هم نسته حتی چې د خپل يو اندام هم مالک نه دی چې هغه پرې کړي يو بل چا ته يې ورکړي.

اوس تاسو پخپله غور وکړئ چې کله انسان د دې هم قابل نه دی چې هغه په خپل تر کوچني لا کوچنی اندام کې تصرف وکړي. هغه ضائع او برباد کړي نو عقل چې

دومره لوئ نعمت دی دهغه په شرابو ،بنګوضائع کول څومره غټ ظلم دی څو اه دهغه دبربادئ تعلق دڅو دقیقویاساعتونولپاره هم وي.

په هرحال انسان ددې عظیم جرم پربنا د مواخذې اوسختې سزاوړدی همدا وجه ده چې شریعت هم تنبیهًا داسزاورته مقررکړې چې که چیري دنشې په حال کې خپلې ښځې ته طلاق ورکړي اونشه خپل اوج ته رسېدلې هم وي بیاهم طلاق واقع کیږي ،ځکه هغه خوشرعًا مکلف دی اودهغه عقل هغه پخپله غلطۍ سره ضائع کړی دی ، شریعت دهغه ذموارنه دی ، اونه په قانون کې دننه ددې څه ګنجائش سته ،

جرم پرجرم خوهغه داوکړچې مخکې یې شراب ، بنګې وخوړل عقل یې په نشه کې ډوب کړ،بیایې ښځې ته طلاق ورکړنوآیاله دې وروسته هم هغه بې قصوره بلل کیږي اودهغه عمل به صرف نظرګرځول کیږي ، هیڅکله نه ، که چیري یې داسې کړې وي نوجرائم نورلوړیږي اوپه معاشره کې لازیاته بدي پیداکیږي ، ددغومصلحتونوپه نظرکې نیولولپاره شریعت په نشه کې دبدمست طلاق هم معتبراوقابل داعتناء بللی دی ددې لپاره چې ددې په ذریعه دهغه نشه ختمه اوپه آئنده کې دداسې جرائمومخه ونیول سي.

### دنشې په حال کې دطلاق حکم

مخکې یوه خبره په ذهن کې نیول پکاردي : چې دنشې په حال کې که یوسړی خپلې ښځې ته طلاق ورکړي نوشرعًا واقع کیږي لیکن له دې څخه دهرې نشې حال مرادنه دی ،بلکې هرهغه شی کوم چې نشه کوونکی وي اوشریعت دهغه خوړل ، څیښل حرام بللې وي لکه څرنګه چې دشرابوڅیښل ، دبنګوڅکول وغیره شرعًا حرام اوناجائزدي لهذادغوشیانوپه نشه کې ورکول سوی طلاق معتبرسوی دی.

هوبعضې داسې شیان هم سته چې شرعًادهغوئ خوړل حلال وي خودډیر استعمالولوپه وجه له هغوئ څخه هم نشه پیداکیږي لکه څرنګه چې دنصوارونه



کوونکی نصواروکړي یاترعامه اندازه زیات وکړي نوله دې څخه هم نشه راځي بعضوخلکوته له ښوخوړوڅخه هم نشه راځي ، یاد بنګال اوبهارپه علاقه کې یوقسم دوړودانووریجې کیږي د(کودوکی)په نامه مشهوري دې ډیروختونه له هغوئ څخه هم نشه راځي اوتریوڅوساعتونوپورې نشه وي.

دارزابعضې دواوې هم نشه راستوونکې وي لهذادغوشیانوپه استعمال سره که چیري نشه راسي اوپه دې حال کې طلاق ورکړي نوطلاق نه واقع کیږي علامه شامی رحمه الله دنشې دحکم بیان کوي اولیکي : وحکمه انه ان کان یسکره بطریق محرم لایبطل تکلیفه فتلزمه الاحکام وتصح عباراته من الطلاق والعتاق والبیع( شامی ص:٥٨٢ج:٢ )

ترجمه : که چیري نشه له حرام استعمال څخه وي نوپه دې سره هغه ته غیرمکلف نه ویل کیږي اواحکام شرعي پرهغه باندې نافذیږي اودهغه عبارت په طلاق ، عتاق اوبیع کې معتبریږي.

دردالمحتارملاصاحب لیکي : لوزال عقله بالصداع اوبمباح لم یقع(ردالمحتارص: ٥٩٣ج:٢ )

ترجمه : که چیري عقل په کوم تکلیف یامباح شی داستعمال په وجه زائل سي نوپه دې صورت کې طلاق نه واقع کیږي.

### دګونګې طلاق

دګونګې بعضې تصرفات د متعارفه اشاراتوپه ذریعه معتبریږي اوڅرنګه چې هغه هرکارپه اشاره سره کوي له دې وجې نوشریعت هم دګونګې اشاره دتلفظ پرځای ګرځولې ده ،ځکه نودګونګې طلاق هم داشارې په ذریعه معتبریږي په دې شرط چې اشاره متعارفه ( مشهوره ) وي یعنی خلک دهغه په اشاره باندې په ښه توګه پوهیږي یالږ، ترلږه دهغه دطلاق په اشاره پوه سي چې هغه طلاق ورکړدارازدیوه طلاق ،دوه طلاقه تردروطلاقونوپورې اعتبارکیږي ، بیاله ګونګې څخه مورزاده ګونګی مراددی یاکوم چې دیوعارض په وجه تردومره

ورځوپورې ګونګی وي چي خلک دهغه هرکارپه اشاره سره فهموي . شامي تصریح کړې دي : یرید به الذی ولد وهواخرس اوطرأ علیه ذلك دام حتی صارت اشارته مفهومة والا لم تعتبر ( شامی ص: ۵۸۴ج:۲ )

دزیات ګونکي تر طلاق لاندي دبحر الرائق ملاصاحب رحمه الله تشریح کوي:

ای لوکان الزوج اخرس فان الطلاق یقع باشارته لانها صارت مفهومة ( بحر ص: ۲۴۸ج:۳ )

ترجمه: که چیري خاوند ګونګی وي نو طلاق دهغه په اشاره سره واقع کیږي ددې لپاره چي دهغه په اشاره خلک پوهیږي.

دررمختار ملا صاحب رحمه الله لیکي: باشارته المعهودة فانها تکون کعبارة الناطق الخ !

ترجمه: دهغه عادي اشاره دخبرو کوونکي دخبرو په څیر ده.

**دګونګي رجعي طلاق**

دومره خبره ضرورده چي که چیري تردرې دکم اشاره وکړي نو هغه رجعي طلاق شمېرل کیږي خواه یوورکړي یادوه که چیري درې ورکړي نو درې طلاقونه واقع کیږي په شامي کي ددې تصریح ده:

طلاقه المفهوم بالاشارة اذاکان دون الثلاث فهو رجعی کذا فی المضمرات ( شامی ص: ۵۸۴ج:۲ )

**دګونګي دکتابت ( لیک ) حکم**

فقهاؤددې تشریح هم کړې چي دګونګي که چیري لیک زده وي نو بیا دهغه اشاره معتبره نه ده بلکي په لیک طلاق ورکول ضروري دی ، ځکه لیکنه تر اشاره زیاته واضحه ده.او اشاره خو دیو مجبورۍ پربنا معتبره وه کله چي دهغه لیک زده وي نو داشارې څه ضرورت دی ؟ دبحر الرائق ملا صاحب رحمه الله لیکي : وقال بعض المشائخ ان کان یحسن الکتابة لایقع طلاقه بالاشارة لاندفاع الضرورة بما هو ادل علی المراد من الاشارة ( بحر ص: ۲۸۴ج:۳ )



ترجمه : کبارو فقهاؤ رحمهم الله لیکلي دي کوم ګونګی چي لیک کولای سي دهغه طلاق په اشاره سره نه واقع کیږي ، ځکه اوس داشارې ضرورت نه دی پاتي سوی ، ځکه تر اشاره په زیاته واضح طریقه سره مفهوم اداکیږي.

دفتح القدیر ملاصاحب رحمه الله دازیات بهتر بللی دی:

وقال فی فتح القدیر وهو قول حسن ! ( شامی ص: ۵۸۴ج:۳ )

**دلېوني اونابالغ طلاق**

دطلاق دواقع کېدو لپاره چي کوم شرائط دي په هغوئ کي یو شرط دا هم دی چي طلاق ورکوونکی به عاقل ،بالغ وي له دې وجې دلېوني طلاق نه واقع کیږي دارازدکوچنی طلاق ترهغوپورې چي دبلوغ حدته رسېدلی نه وي نه واقع کیږي ، دبلوغ شرعي حدلږ، ترلږه پنځلس کاله ضروري دي یا یې له ذکرڅخه مني راځي هغه که په هره طریقه سره وي بدائع الصنائع لیکلي دي:

فمنها ان یکون عاقلا حقیقة او تقدیرا فلا یقع طلاق المجنون والصبی الذی لایعقل لان العقل شرط اهلیة التصرف ( بدائع ص: ۱۷۹ج:۴ )

دبحر الرائق ملا صاحب رحمه الله لیکي:

اطلق الصبی فشمل العاقل ولومراهقا لفقد اهلیة التصرف ! ( بحر ص: ۲۴۹ج:۳ )

ترجمه: دصبی مطلق ذکر کول عاقل ته هم شامل دي له دې وجې که چیري مراهق هم وي نو طلاق یې نه واقع کیږي ،ځکه مراهق هم دتصرف کولو اهل نه دی.

**دنابالغ دولي طلاق**

په عامه توګه په دې مسئله کي عام خلک په غلطۍ کي لوېږي چي که چیري خاوند نابالغ وي اوښځه بالغه وي یا په کومه وجه سره ښځه له خپل نابالغ خاوند څخه ځان خلاصول غواړي نو دنابالغ خاوند ولي له خپل طرفه طلاق ورکوي حال داچي دا طلاق معتبر نه دی او نه طلاق واقع کیږي په داسي صورت کي جرائم نور متعدي کیږي ،ځکه دنابالغ ښځه خپل ځان طلاق سوی بولي په بل ځای کي واده کوي حال داچي ترڅو پورې طلاق نه وي نو نکاح څرنګه کیږي

بلکي حرام کاري به وي هو که چیري داسي صورت مخې ته راشي او انجلۍ ځان خلاصول غواړي نو ددې صرف یوشکل سته چي انجلۍ په اسلامي دارالقضاء یاشرعي کمېټۍ کې (کوم چي دهندوستان په مختلفوولایتونواوولسوالیوکې قائمې دي اوښه کارکوي) درخواست وکړي دشرعي په اعتبارسره دقاضي دفیصلې مطابق دنکاح فسخ کولای سي.
واضحه دي وي چي دحکومت په عدالتي کاروایې سره دطلاق حاصلولو طریقه شرعًا معتبره نه ده.

## دمعتوه طلاق

معتوه والی هم دلېونتوب یوقسم دی دهغه په عقل کې دننه بې اعتدالي اوبې لاري پیداکیږي ، عقل یې مختل (ګډوډ) په کوم سره چي هوښ اوحواس ځي اوله صحیح اندازفکروعمل څخه انسان محروم وي داسی سړی که چیري ښځې ته طلاق ورکړي نونه واقع کیږي البته له افاقه (پرسدکېدو) وروسته که چیري طلاق ورکړي نوواقع کیږي.

والمعتوه اذا طلق حال العته اماني حال الافاقة فالصحيح انه واقع (طحطاوی علی الدرالمختار !ص: ۱۱۰ج: ۲)

## دسینې دمرض والاطلاق

برسام هم دلېونتوب یوقسم دی په دې کې هم طلاق نه واقع کیږي په طبي اصطلاح کې دادیوخاص مریضۍ نوم دی کومه چي دزخو په شکل کې څرګندیږي اواهسته ، اهسته تردماغ پورې رسیږي علامه شامی رحمه الله لیکي: وفي بعض كتب الطب انه ورم حار يعرض للحجاب الذی من الكبد والامعاء ثم يتصل بالدماغ (ردالمحتارص: ۵۸ج: ۲)

## دغش (دکمزورۍ له وجې دبې هوښه کېدوونکې) طلاق

دغش دپېښېدوپه حال کې څرنګه چي دعقل اودماغ قوتونه معطل کیږي اوقوت مدرکه (تینګوونکی) څه اندازه متاثرکیږي اوقوت متحرکه هم له کاره



لویږي له دې وجې په داسي حال کې که چیري یوسړی خپلې ښځې ته طلاق ورکړي نو دهغه ورکول سوی طلاق معتبرنه دی (شامی ص: ۵۸ج: ۲)

## دبې هوښه طلاق

بې هوښه دچاچي عقل دوېرې یاخطرې له وجې ګډوډسي اوددماغ ګډوډي داسي درجې ته ورسیږي چي دشی امتیازمثلا دنارېنه اوښځې ،مځکې او اسمان په مینځ کې فرق نسي کولای دداسي سړی طلاق هم معتبرنه دی.
دبحرملاصاحب داهم په لېوني کې شمېرلی دی: په فتاوی شامیه کې ددې تشریح ده: ذهب عقله حناء خوفًا الخ !له دې وروسته لیکي:
وهذا هو المراد هنا ولذا جعله في البحر داخلا في المجنون (فتاوی شامیه ص: ۵۸ج: ۲
علامه شامی رحمه الله یوسوال اودهغه جواب نقل کړی ، لیکي: دهغو الفاظو خلاصه داده چي دبې هوښه طلاق نه واقع کیږي.
فان الدهش من اقسام الجنون فلا يقع !(شامی ص: ۵۸۲ج: ۲)
اوبې هوښه هغه چاته هم ویل کیږي کوم چي دعمردډېربنت یامریضۍ یاپه کوم مصیبت کې داخته کېدوپه وجه سره خپل دماغي صلاحیتونه له لاسه ورکړي اوددماغ دګډوډۍ ښکارسي دداسي خلکوقول په دې باب (یعني دطلاق) په باب کې (ترڅوپورې چي په دې مرض مبتلا وي غیر) معتبربلل کیږي.
كذا يقال فيمن اختل عقله لكبر او المرض او المصيبة الخ !

## دخوب په حال کې طلاق

که چیري یوسړی ویده وي دخوب په حال کې خپلې ښځې ته طلاق ورکړي نوطلاق نه واقع کیږي دداسي حال هیڅ اعتبارنسته اوڅرنګه چي دخوب حال غیراختیاري اوغیرارادي وي له دې وجې په طلاق چي داسي اهمه اونازکه مسئله ده کې دداسي وخت قول نه معتبریږي دخوب دوخت دطلاق دواقع

کېدو شرطونه هم نسته په درمختارکې لیکي : والنائم لانتفاء الارادة ولذا لایتصف بصدق وکذب ولاخبرولاانشاء ولوقال اجزته اواوقعته لایقع ( ردالمحتار ص: ۵۸۲ج:۲ )

علامه ابن عابدین رحمه الله دویده قول غیرمعتبربلکې باطل بللی دی ، لیکي :

وکل من طلاق الصبی والنائم وقع باطلا ( ص: ۵۸۸ج:۲ )

ترجمه: دناپوهه کوچنی اوویده طلاق بلکل باطل دی.

علامه ابن عابدین رحمه الله یوځای تشریح کړې ، لیکي:

بخلاف کلام النائم فانه غیرمعتبرعنداحد ! ( شامی ص: ۵۸۸ج:۲ )

ترجمه: دویده خبره دهرچاپه نزدغیرمعتبره ده.

بلکې علامه شامی تردې پورې ویلې دي چې دویده کلام ته کلام ویل کیږي هم نه ، لیکي:

ان کلام النائم لایسمی کلاما لغة وشرعا ( ص: ۵۸۸ج:۲ )

واضحه دي وي چې دابحث دخوب دحالت دی اوکه چیري داسي حالت وي چې حواس خمسه بیداره وي نودهغه طلاق معتبردی ، محض پرکټ باندي پروتې ته ویده نه ویل کیږي.

## دعرف بحث

دفقهاؤپه نزددعرف بحث هم دلوړاهمیت حامل دی ، په ډیروځایونو، ډیرو احکاموکې شریعت دعرف اعتبارکړی دی ، فقهاؤدعرف تعبیرد ( المعروف کمشروط ) په عنوان سره کړی دی البته دومره خبره ضروري دي که چیري په عرف کې دیوشی اشهتاردشرعې خلاف وي یاداعرف له شریعت سره ضدوي نوبیادداسي عرف اعتبارنه کیږي بلکې غیرمعتبراوداعتناء وړنه بلل کیږي په عرف کې به دشریعت هیڅ خلاف خبره نه وي.



## دعرف دغلبې یوڅومسئلې

په دې سلسله کې ددرمختارملاصاحب دالفاظ مستعمله په عنوان سره څو مسئلې بیان کړې دي : اوددغوالفاظ په ذریعه یې بېله نیته هم دطلاق واقع کېدوعلت عرف بللی دی څرنګه چې په عرف کې داسي الفاظ هره ورځ په دې معنی کې مستعمل دي له دې وجې دنیت هیڅ ضرورت نسته .ځکه ډیروختونه عرف هم دنیت قائم مقام کیږي وګورئ:

ومن الالفاظ المستعملة الطلاق یلزمنی ، والحرام یلزمنی وعلی الطلاق وعلی الحرام فیقع بلانیة للعرف ( شامی ص: ۵۹۴ج:۲ )

ترجمه : الفاظ مستعمله دادي : طلاق له ماسره لازم ، یاحرام له ماسره لازم ، یازماذمه طلاق دی ، اوحرام زماذمه ده په دې صورتونوکې دعرف له وجې پرته له نیت نه طلاق واقع یږي.

علامه شامی رحمه الله په خپل کتاب کې پردې تبصره کوي:

ای فیکون صریحا لا کنایة بلا دلیل عدم اشتراط النیة الی اخری !

ترجمه : دغه عرفی الفاظ صریح دي ،ځکه په دوئ کې نیت شرط نه دی له دې وجې دوئ ته کنایه نه ویل کیږي.

دصریح طلاق دواقع کېدوسبب علامه موصوف دارازبیان کړی دی:

وانما کان ماذکره صریحا لانه صارفاشیا فی العرف فی استعماله فی الطلاق الخ !

مخته لیکي: وهذا فی عرف زماننا کذلک یوجب اعتباره صریحا ( شامی ص: ۵۹۴ج:۲ )

ترجمه: په تحقیق سره کوم څه چې ذکرسوهغه صریح دي له دې وجې چې هغه په عرف کې مشهوره دي اودطلاق لپاره یې استعمال کیږي زموږدزمانې عرف همدادی له دې وجې دهغه اعتبارهم واجب صریح دی.

علامه شامی رحمه الله پردې باندي د( انت علی حرام ) نظیرپېش کړی دی چې که څه هم داالفاظ دطلاق بائن لپاره خاص دي په کوم کې چې نیت شرط دی مګردعرف دغلبې په وجه سره پرته له نیت نه طلاق بائن واقع کیږي لیکي:

كما افتى المتاخرون في انت على حرام انه طلاق بائن للعرف بلانية ( ص: ۵۸۴ج:۲ )

ترجمه : لکه څرنګه چي فقهاؤپه انت على حرام سره دبائن طلاق دواقع کېدو فتوی ورکړې ده چي په دې کې دعرف اعتباردی ،دنیت ضرورت نسته.

**ستاطلاق زماپرذمه**

همداوجه ده چي که چیري یوسړی ووایې چي ستاطلاق زماپرذمه یعنی طلاقک علی نوطلاق نه واقع کیږي ددې وجه دابنوول سوې ده : لانه ذاك عندعدم غلبة عرف ! (شامی ص: ۹۵۵ج:۲ )

یعنی په عرف کې دالفظ دطلاق لپاره نه ویل کیږي.

**یوه ضروري خبره**

داپه ذهن کې نیول پکاردي چي کوم الفاظ په عرف کې دطلاق لپاره کاریږي اوپه عرف کې دطلاق لپاره مشهورسوې هم وي خواه دهغوئ غلبه په هره ژبه کې که وي پرته له نیت نه طلاق هم په واقع کیږي اوپردې باندې فتوی ورکول واجب دي لکه څرنګه چي په ردالمحتارکې دي:

صار العرف فاشيا في استعماله في الطلاق لايعرفون من صيغ الطلاق غيره فيجب الافتاء به من غيرنية ( ص : ۵۵۵ج:۲ )

ترجمه: کوم لفظ چي په عرف کې دطلاق لپاره مشهوروي ، له هغه پرته بل لفظ دطلاق لپاره نه استعمالوي پرهغه باندې دطلاق دواقع کېدو فتوی ورکول واجب دي دنیت هیڅ ضرورت نسته.

**ماپرېښي یې**

داجمله هم په عرف کې دطلاق پرځای مستعمله اومتعارفه ده په دې سره طلاق واقع کیږي البته که چیري یوواردا جمله ووایې ( ماپرېښې یې ) نویورجعي طلاق واقع کیږي ،په عده کې دننه خاوندته درجوع اجازه سته اوکه چیري درې واره داجمله ووایې نودرې طلاقونه واقع کیږي اوپرته له حلالې دښځې له څان سره ستاتل جائزنه دي ، په بزازیه کې یې داجزیه په خاص توګه په عرف کې



لیکلې ده علامه شامی رحمه الله لیکي : ويدل على ذلك ماذكره الغازى الخ بخلاف فارسية قوله سرفتك وهو رهاكردم (یعنی ماپرېښې یې ) لانه صار صريحا في العرف ( شامی ص: ۲۳۹ج: ۲ ، بزازیه ض: ۱۹۹ج: ۱ )

فاذا قال رهاكردم اى سرفتك يقع به الرجعى ( شامی ص: ۲۴۸ج:۲ )

البته په ( ماپرېښې ) سره رجعي طلاق واقع کیږي.

**ماته آزاده کړې**

دماته آزاده کړې استعمال هم دصریح طلاق لپاره مشهوردی اوددې په ویلو سره یورجعي طلاق واقع کیږي که چیري یویادوه وار ووایي بیاهم درجعي حکم کیږي لیکن که چیري درې یاتردرې زیات واره ووایي نواوس طلاق مغلظه واقع سواوله حلالې پرته نکاح نه صحیح کیږي.

عوام اکثره په غصه اوناراضۍ کې داسي کلمات وایي اوخوواره ووایي پردې باندې دتوجه ضرورت دی که څه هم په دې جمله سره دطلاق نیت نه وي نوهم فتوی پردې ده چي په دارازویلو سره طلاق پرته له نیت نه واقع کیږي دشامی اوبزازیه مذکوره بیان هم پردې مسئله باندې دلیل دی.

**ته پرماحرامه یې**

په (ته پرماحرامه یې ،یاحرامه سوې ) ویلوسره یوبائن طلاق واقع کیږي خواه دطلاق په نیت یې ویلي وي یایې په بل نیت ویلي وي البته په دې کې دننه صرف دنکاح دنوې کولوضرورت دی.

دحرام دلفظ په ویلوسره دبائن طلاق په واقع کېدوکې که څه هم دمتقدمینو او متاخرینو په مینځ کې دنیت اوعدم نیت په سلسله کې اختلاف دی مګرڅرنګه چي ددې مدارپرعرف دی له دې وجې دنیت ضرورت نسته پرته له نیت نه طلاق واقع کیږي اوپردې باندې نن ، صبافتوی ده علامه شامی رحمه الله لیکي:

والفتوى على انها تبين امرأته من غيرنية ( شامی ص: ۷۷۰ج:۲ )

دبائن طلاق دواقع کېدوفتوی دمتاخرینوپرقول ده.

فقهي په مشهوراومعتبرکتاب بزازيه کې ښکاره موجود دي : قال لها انت علی حرام وتحرامت منه طلاق وقع وان لم ينو( بزازيه ص : ۱۸۸ )

ترجمه: خاوند خپلې ښځې ته وويل چي ته پرما حرامه يې اودده په نزد حرام معنی طلاق وي نو طلاق بائن واقع کيږي که يې دطلاق نيت وي يا نه.

دامام ظهيرالدين له قول څخه دمسئلې زيات تائيد کيږي:

وذکر الامام ظهيرالدين لانقول لاتشترط النية لکن يجعل ناويا عرفا ( ص: ۱۸۸ )

ترجمه: مونږ نه وايو چي نيت شرط دی ليکن تول دعرف په حواله کيږي.

ديوه سوال په خواب کې دالجامع الوجيز ملا صاحب وايي:

التعارف به ايقاع البائن ( ص: ۱۸۹ج:۱ )

ترجمه: مشهوره ده چي بائن واقع کيږي نه رجعي.

علامه ابن عابدين رحمه الله پردې مسئله باندي اوږدبحث کړی دی : او په اخير کې يې مفتی به بائن بېله نيته بللی دی لکه څرنګه چي ليکي: وسيأتي وقوع البائن به بلا نية في زماننا للتعارف الخ!

يو څو ليکې وروسته ليکي : ان المتعارف انما هو ايقاع البائن لاالرجعي الخ وعليه الفتوی کما في البزازية ( شامی ص: ۲۸۴ج:۲ )

يو ځای خپله اخيري فيصله ښيي ،ليکي:

ثم فهل بعد مدة ما سمعي جوابا وهو ان لفظ حرام معناه عدم حل الوطئ ودواعيه الخ لکن الرجعي لاتحرم الوطئ فتعين البائن ( شامی ص: ۲۳۹ج:۲ )

ترجمه: له يو څه مودې وروسته دبائن فلسفه هم ماته معلومه سوه دحرام دلفظ معنی وطی اودواعي دوطي حلال نه کېدل په رجعي سره وطی اودواعي يې نه حراميږي له دې وجې بائن متعين سو.



## زه له تانه بېزاره يم

که چيري يو څوک ووايي ( انا منك خالق او برئ ) يعنی زه له تا څخه جلااو بېزاره يم نو په دې سره دطلاق له نيت سره ،سره طلاق نه واقع کيږي که چيري داووايي (انا منك بائن ،يا انا منك حرام ) نو که يې چيري دطلاق په نيت سره ويلي وي نو پرښځې باندي يو طلاق بائن واقع کيږي ( شامی ص: ۲۱۳ج:۲ )

دحرام له لفظ سره تړلي څو مسئلې د( انت علی حرام ) په لمن کې فقهاء کرامو څخه نوري مسئلې راوړي دي کومې چي له دې قسم سره تړلې دي دهغوئ حکم هم طلاق بائن دی خواه دطلاق نيت وي يا نه لکه څرنګه چي علامه شامی رحمه الله ليکي:

لافرق في ذلك بين محرمة وحرمتك الخ ، احلال المسلمين علی حرام وکل حل علی حرام وانت معي في الحرام ( شامی ص: ۲۲۸ج:۲ )

ترجمه : محرمه ،ياماته حرامه کړې ،يادمسلمانانو حلال پرما حرام ، ياهرحلال پرما حرام او ته له ماسره حرامه او سيږې.

په دې ټولو جملو سره بائن طلاق واقع کيږي هو دخاوند او ميرمنې په رضا سره په عده کې دننه يا له عدې وروسته هم پرته له حلالې نکاح نوې کېدای سي علامه ابن عابدين رحمه الله په بل ځای کې يوه جمله بله هم اضافه کړې ،ليکي:

وقد صرح بذلك اولا بان حلال الله علی حرام بالعربية او بالفارسية لايحتاج الی نية الی قوله وهو صحيح المفتی به للعرف وانه يقع به البائن ( شامی مصری ص: ۴۸۲ج:۲ ) ترجمه: ددې تصريح مخکې سوې چي ( دالله تعالی حلال پرما حرام دي ) خواه په عربي کې وي يا په فارسي کې وي دنيت ضرورت نسته صحيح او مفتی به داخبره ده چي په عرف کې دا طلاق دی او په دې سره بائن طلاق واقع کيږي.

له دې نه دا هم معلوم سو چي په هره ژبه کې هم ددې جملو ترجماني او مفهوم وسي دفتوی په اعتبار دټولو يو حکم دی.

خود بحرالرائق ملا صاحب يو څه جملې نوري اضافه کړې دي ،ليکي:

واناعليك حرام اوحرمت نفسى عليك الخ وفى القنية لوقال انت امرأة حرام ولم يرد الطلاق يقع قضاء وديانة ولوقال حرام كلماء تحرم ( بحرالرائق ص: ۳۰۱ ج: ۳ )

ترجمه: زه پرتاحرام يم ،ياته خپل ځان پرماحرام کړه ، په فتاوى قنيه کې دي چي که خاونداووايي نوښځه حرامه سوه اوپه دې يې دطلاق اراده نه وي بياهم طلاق ديانةً اوقضاء واقع کيږي.

دارازکه يوسړى همداووايي چي ته زرواره پرماحرامه يې نوپه دې سره هم يوبائن طلاق واقع کيږي په درمختارکې تشريح ده : انت على حرام الف مرة تقع واحدة (شامى ص: ۷۲۴ ج: ۲ )

**متعدد(ډيرواره) ښځې ته ويل چي ته پرماحرامه يې**

دذکرسوې عنوان تروضاحت مخکې ځوخبرې په ذهن کې ونيسئ چي له طلاق بائن وروسته دبل بائن طلاق الحاق ناقابل اعتباردی صرف يوواقع کيږي داراز ښځې ته له يوواربائن طلاق ورکولووروسته ( خواه په کوم لفظ سره هم وي په هغه .. ه يوبائن طلاق واقع کيږي ) دوباره طلاق بائن نه واقع کيږي ددې يو کوچنى مثال : ( په ته ماپرماحرامه يې ياسوې اوداسي نوروسره يوبائن طلاق واقع کيږي ) کله چي په يوواررويلوسره بائن طلاق واقع سي نواوس په دغه جمله سره دوهم واريادريم وارطلاق نه واقع کيږي بلکي لغواوبې کټي ګرځي ، خلاصه داچي که خپلې ښځې ته متعددواره ووايې چي ( ته پرماحرامه يې ياسوې ،ياماته حرامه کړې ،ياهرحلا ل شى پرماحرام دى ) اوداسي نوروکلماتوپه ويلوسره پرښځې باندي صرف يوبائن طلاق واقع کيږي نه زيات ، لکه څرنګه چي علامه شامى رحمه الله په درمختارکې د( الصريح يلحق الصريح والبائن ) په لمن کې واضح بحث کړى دى ،ليکي:



ومنهامافى الكافى الحاكم الشهيدالذى هوجمع كلام محمدرحمه الله فى كتبه ظاهرة الرماية حيث قال واذاطلقهاتطليقة بائنة ثم قال لهافى عدتهاانت على حرام اوخلية اوبرية اوبائن اوبتة اوشبه ذلك وهويريدبه الطلاق ممايقع عليهاشئ ( شامى ص: ۲۴۷ ج: ۲ )

ترجمه: حاکم شهيد په کافى کې وايې: چي کله کوم بائن طلاق ورکړي بياپه عدد کې ووايې چي ( ته پرماحرامه يې ،ياخالي يې ، يابريه يې ، يابائن ، يابته يې ، ياله دې قسم څخه نورالفاظ ) په کوموسره چي دهغه طلاق مرادوي نوطلاق نه واقع کيږي.

په بل ځاى کې وايې:

لوكرره لايقع الا الاول لان البائن لايلحق البائن ( ص: ۷۲۵ ج: ۲ )

ترجمه: که چيري په وار،وارهم ووايې نوبل طلاق نه واقع کيږي پرته له هغه اول طلاق نه ،ځکه چي له يوه بائن سره بل بائن نه يوځاى کيږي.

دبحرالرائق ملا صاحب هم په دې تصريح کړې ، ليکي: انت على الف مرة تقع واحدة ( بحرص: ۳۸۹ ج: ۳ )

ترجمه: که زرواره هم ووايې چي ( انت على حرام ) نوبياهم يوطلاق واقع کيږي.

**دشبهې ازاله**

دلته دمذکوره بيان له اجمال څخه داشبه پيداکيږي چي دبائن له بائن سره دنه يوځاى کېدومرادڅه دى ؟ ،ځکه چي بائن طلاق خوله کناياتوڅخه مستفاد کيږي اوپربعضوصريح الفاظوهم دبائن حکم کيږي نوپه يادسوې صورت کې اول مراددى ، که دوهم ؟ مګرتاسوتلوارمه کوئ ددې شبهې دازالې لپاره پخپله علامه ابن عابدين رحمه الله شفاورکوونکى جواب کړى موصوف ليکلي دي:

المرادبالبائن الذى لايلحق هوماكان بلفظ الكنايات ( ص: ۲۴۷ ج: ۲ )

ترجمه : له بائن څخه مرادهغه طلاق دى کوم چي له بائن سره نه يوځاى کيږي اوهغه دکناياتو په لفظ سره وي.

دفتح القديرعبارت رانقل کوي اوليکي:

ان المراد بالبائن الذی لایلحق هوماکان کنایة !
او داتقریبا تولو فقهاؤ اختیار کړی دی لکه څرنګه چي علامه ابن عابدین رحمه الله لیکي :..وتبعه تلمیذه ابن الشحنة فی عقد الفرائد وکذا اصحاب البحر والنهر والمنسح والمقدس والشرنبلالی وغیرهم وهوصریح ( ص: ۲۴۲ج:۲ )
له یادو سویو بیانونو څخه موږ پوه سو چي دشبهې ازاله وسوه او په دې سره داول وارباد سوي طرف هم متعین سو البته په اول صورت کې ددې لحاظ نه دی سوی بلکي هغه عام دی خواه بائن له هغه قسم څخه وي کوم چي په کنایاتو پوري متعلق دی یا له هغه پرته کوم چي له صریح سره متعلق دی لکه څرنګه چي په شامی کې ددې دلیل موجود دی:
ان البائن الموقع اولا اعم من کونه بلفظ الکنایات او بلفظ الصریح المفید للبینونة ( ص: ۲۴۷ج:۲ )
ترجمه: هغه لفظ دکوم چي په اول وار استعمال سره بائن طلاق واقع سي خواه هغه دکنایاتو په توګه وي ( یعنی دکنایاتو په لفظ سره وي ) یادصریح په توګه وي.

### دصریح من الکنایات حکم

په دې سره داخبره هم معلومه سوه چي هغه کنایه الفاظ کوم چي په صریح کې شمېرل کیږي لکه ( انت واحدة واعتدی وغیره ) چونکه دبائن له حکم څخه وتلې دي له دې وجې هغوئ له بائن سره یوځای کیدای سي.
بخلاف الکنایات الرجعیة فانها فی حکم الصریح فیلحق البائن ( شامی ص: ۲۴۸ج:۲ ) ترجمه: په خلاف درجعی طلاق کوم چي له کنایاتو څخه مستفاد دی دصریح په حکم کې وي ،ځکه هغه له بائن سره یوځای کیږي.

### له بائن طلاق وروسته درې صریح طلاق ورکول

له دې څخه دومره خبره واضح کیږي چي که کوم سړی خپلې ښځې ته بائن طلاق ورکړي او بیا په عده کې دننه درې طلاقونه ورکړي مثلا داسي ووایې چي ( ته پرماحرامه یې ) او بیا ووایې چي ( تا ته درې طلاق یا یو طلاق ، دوه طلاقه ، درې



طلاقه، یا و وایې ما درې طلاق درکړل او داسي نور ) نو درې سره واقع کیږي او س محض په نکاح نوي کېدو سره کار نه کیږي بلکي دحلالې ضرورت دی واضحه دې وي چي ددرو صریح طلاقونو حکم که څه هم بائن وي مګر دصریح کېدو په وجه سره ددې اعتبار کیږي او دوئ دصریح په حکم کې کیږي ،له بائن سره یې یوځای کېدل صحیح دي وګورئ:
فاذا ابان امرأته ثم طلقها فی العدة وقع الخ ( ردالمحتار ص: ۲۴۲ج:۲ )
،ځکه له درو صریح طلاقونو سره هم یوځای کیږي او له بائن سره هم.
ظهران منه الطلاق الثلاث فیلحقهما ای یلحق الصریح والبائن ( ص: ۲۴۲ج:۲ )
له دې داخبره ښکاره سوه چي درې طلاقونه له صریح او بائن دواړو سره یوځای کیږي.

### ښځې ته ( ته زما دمور، خور په څیر حرامه یې ) ویل

که چیري یو سړی خپلې ښځې ته ووایې چي ته زما دمور او خور په څیر حرامه یې یا سوې نو یو بائن طلاق واقع کیږي ( که نیت وي یا نه ).
مسئله: که چیري یو سړی ووایې چي ستا طلاق زما پر ذمه دی نو په دې سره طلاق نه واقع کیږي او که چیري ووایې زما پرذمه لازم دی یا واجب دی ، یا فرض دی نو مختاره او مفتی به قول همدا دی چي په دغو کلماتو سره هم طلاق واقع کیږي ،ځکه که چیري سړی طلاق پر خپله ذمه لازم وبولي او په واجب او فرض کې یې داخل کړي نو په دې سره دهغه حکم ثابتیږي نفس طلاق خو واجب نه بلکي حکم یې واجب ، فرض او لازم دی لکه څرنګه چي علامه شامی رحمه الله ددې علت دقاضی الخاصی په قول سره نقل کړی ، لیکلي یې دي:
علل الخاصی الوقوع بقوله لان الطلاق لایکون واجبا ثابتا بل حکمه وحکمه لایجب ولایثبت الا بعد الوقوع ( ص: ۵۸۷ج:۲ )
البته دبحرالرائق ملاصاحب ددې دوقوع مدار پر دوو شیانو اېښی دی یو پر نیت ،بل پر عرف عام باندي یعنی که چیري داکلمات په عرف کې طلاق بلل کیږي

نوله نیت پرته طلاق واقع کیږي او که چیري په عرف کې طلاق نه بلل کیږي بلکي په بله معنی کې هم استعمالیږي نو داوخت پرنیت موقوف کیږي که چیري په دې جملو سره د طلاق نیت وي نو واقع کیږي کنې نه.

وتوقف علی نیة الاان یظهرفیه عرف فاش فیصیرصریحا ( شامی ص: ۵۹۷ج:۲ )

ترجمه: پرنیت موقوف دی او که چیري عرف واضح وي نو طلاق صریح کیږي.

علامه شامی رحمه الله خو پرته له کوم تفصیل څخه د طلاق د واقع کید و قائل دی لیکي: فالصحیح انه یقع فی الکل ( ص: ۵۹۲ج:۲ )

دایې مفتی به بللی دفتاوی خاصی عبارت یې نقل کړې دي علامه شامی رحمه الله لیکي: قال لها طلاقك علی واجب اوقال طلاقك لازم لی یقع بلانیة عندابی حنیفة رحمه الله وهوالمختار وبه قال محمدبن مکاتب وعلیه الفتوی ( ص: ۵۹۷ج:۲ )

ترجمه: ستا طلاق پر ما واجب دی یا وو وایې چي ستا طلاق پر ما لازم دی نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد بېله نیت نه واقع کیږي او پر دې فتوی ده.

### ستاسر او غاړې ته طلاق

په دې سلسله کې مخکې یوه قاعده ملاحظه کړئ هغه دا چي طلاق تجزیه ( نیمی ) کیږي نه دو همه خبره دا چي په عرف کې هر هغه اندام کوم ته چي ویناسوې وي له هغه څخه پوره جسم یا انسان مرادیږي په دې سره هم د طلاق تحقق راځي کله چي د طلاق نسبت دهغه اندام وطرفته وسي لکه چي علامه شامی رحمه الله لیکي: اذاکان التعبیربه عن الکل متعارفا لایلزم شهادة التعبیربه عن الکل عندجمیع الناس بل فی عرف المتکلم ( ص: ۵۹۹ج:۲ )

ترجمه: که چیري داندام تعبیر په پوره جسم سره مشهوروي نو دهغه مشهوره کېدل په ټولو خلګو کې ضروري نه دي بلکي دمتکلم په نزدیې مشهوره کېدل ضروري دي.



دمثال په توګه یوسړی خپلې ښځې ته ووایې ماتاته نیم طلاق درکړیا دربیمه حصه ، یاپاوکم دوه یاپاوکم درې طلاقونه درکړل نوپه دې باب کې ددغوتکرواعتبار په پوره ، پوره سره کیږي اوله نیمی څخه پوره یو طلاق واقع کیږي ، له یونیم ویلوڅخه دوه طلاقونه واقع کیږي اوپه پاوکم دروویلوسره درې طلاقونه واقع کیږي ، ځکه طلاق نیم اوپاوکم کیږي نه بلکي پوره شمېرل کیږي.

الاشباه والنظائر دفقهي اصولو مشهور او معتبر کتاب دی په دې کې یې تر ( بعض مالایتجزی ) لاندې د طلاق ذکرهم کړی دی چي طلاق تجزي ( ټوټې ) کېدل نه قبلوي لهذا د جزپرځای به ټول مرادیږي.

فاذاطلق نصف تطلیقة وقع واحدة اوطلق نصف المرأة طلقت ( الاشباه ص: ۱۲۲ )

یعنی خپلې ښځې ته ویل چي تاته نیم طلاق نو یوپوره طلاق واقع کیږي لکه څرنګه چي ښځه په دغو کلماتو سره مخاطب کړي ستاسر ته طلاق ، غاړې ته طلاق نو په دې سره هم طلاق واقع کیږي په درمختار کې دي:

واذااضاف الطلاق الیها کانت طالق اوالی مایعبربه عنها کالرقبة والعنق والروح والبدن والجسد الخ والفرج والوجه والرأس ( ص: ۵۸۸ )

ترجمه: د طلاق نسبت که دښځې وطرفته یا دهغې داندامو وطرفته وسي نو پوره ښځه ځیني مرادیږي لکه نسبت وغاړې ، بدن ، مخ ، شرمګاه ته ، نو طلاق واقع کیږي.

### ستالاس ، پښې ته طلاق

دارازبعضی داسې اندامونه دکوموپه ویلوسره چي په عرف کې پوره جسم نه مرادیږي نو دداسې اندامو وطرفته د طلاق اضافت بې ګټې اولغوی دی په دې سره طلاق نه واقع کیږي.

ولواضاف الی جزء لایعبربه عن جمیع البدن لایقع ( شامی ص: ۵۰۷ج:۲ )

ترجمه: که چیري دداسي جزء وطرفته نسبت وسي له کوم څخه چي په پوره بدن تعبیرنه کیږي نو طلاق نه واقع کیږي.

هو که چیري د طلاق په نیت سره دهغو اندامو کوم چي لاندي لیکلې دي استعمال وکړي نو په هغوئ سره طلاق واقع کیږي په درمختارکې ددې پوره وضاحت دی:

لایقع لواضافه الی الید الابنیة المجاز والرجل والدبر والشعر والانف والساق والفخذ والظهر والبطن واللسان والاذن والفم والصدر والذقن والسن والریق والعرق وکذا الفتوی والدم جوهرة ( ص: ۲۰۰ج:۲ )

ترجمه : که چیري دلاس وطرفته د طلاق اضافت وکړي نو طلاق نه واقع کیږي هو د مجاز په نیت سره واقع کیږي دارازکه پښې ، مقعدې ، وېښتانو ، ،پوزي ، لینګي ، نس ، ورانه ، شا ، ژبې ،غوږ، خولې ، سینې ، زنې ، ناړو ، ،خولې ، وینې ته مجازانسبت وکړي په دې شرط چي نیت هم ورسره وي نو طلاق واقع کیږي.

څرنګه چي په عرف کي دغواندامو ته جسم نه ویل کیږي ،څکه که کوم سړی ښځي ته ووایې ستالاس ، پښې ،نس وغیره ته طلاق ، نو طلاق نه واقع کیږي هو که چیري ددوئ عرف داسي وي چي ددوئ په ویلو سره پوره انسان مرادیږي اوهغه مشهورهم وي نو طلاق واقع کیږي ، دنیت هم ضرورت نسته علامه شامی رحمه الله لیکي:

لانه لم یشتهربین الناس التعبیر بها عن الکل حتی لواشتهربین قوم وقع !

مخته لیکي: فلواشتهر بذلك فلا حاجة الی نیة المجاز( ص: ۲۰۰ج:۲ )

**تاته په مکه کې طلاق**

که چیري یوسړی خپلې ښځې ته ووایې چي تاته تردلی پورې طلاق یاتاته ترمکې پورې طلاق یا په مکه کې طلاق یا په کورکې طلاق ، یا په لمرکې طلاق یا په سایه کې طلاق وغیره نو په دې جملوسره یورجعي طلاق واقع کیږي ددلی اومکې انتظارنه کیږي ، هو په عده کې دننه رجوع کولای سي ، واضحه دې وي



چي په رجعي طلاق طلاقه سوې له عدې وروسته بائنه ګرځي بیاکه چیري هغه له ځان سره کول غواړي نو دنکاح دنوې کولو ضرورت سته په درمختارکې دي:

من هنا الی الشام واحدة رجعیة انت طالق بمکة اوفی مکة اوفی الدار اوالظل اوالشمس اولثواب کذا یقع للحال ( شامی ص: ۲۰۳ج:۲ )

ترجمه: تاته په مکه کې یاله مکې څخه یا په کور یا په سایه یا په لمرکې داسي پرکړه طلاق نو واقع کیږي.

ویصدق فی الکل دیانة لاقضاءً درمختار.

ترجمه : البته په هرځای کې یې دیانةً تصدیق کیږي خو قضاءً یې تصدیق نه کیږي.

**تاته ترشپې راتلو پورې طلاق**

که چیري خپلې ښځې ته څوک داسي ووایې چي تاته ترشپې راتلو پورې طلاق یادمیاشتې ، کال ، ګرمی ،یخنۍ تر راتلو پورې طلاق نو په دې سره که چیري یې د طلاق نیت وي اوداوختونه یې محض ددې لپاره ذکرکړې نه وي چي په دې وخت کې طلاق واقع سي نوداوخت سمدستي طلاق واقع کیږي اوکه یې چیري نیت د طلاق وومګردغه وختونه یې متعین کړل نو ددغووختونو له تېرېدو وروسته طلاق واقع کیږي اوکه یې چیري د طلاق نیت نه ووبیاهم دوخت تر تیریدووروسته مثلا ترشپې راتلو پورې طلاق ووایې نو دشپې له تیرېدو وروسته طلاق واقع کیږي لکه څرنګه چي علامه ابن عابدین رحمه الله ددغو الفاظ تریادولو وروسته لیکي:

فهو علی ثلثة اوجه امان ینوی الوقوع بعد الوقت المضاف فیقع الطلاق بعد مضیه اوینوی الوقوع ویجعل الوقت للاستدادفیقع للحال اولاتکون له نیة اصلا فیقع بعد الوقت عندنا( شامی ص: ۲۰۴ج:۲ )

ترجمه : ددې درې صورتونه دي اول : داچي د طلاق دواقع کېدو نیت یې دمقرر وخت ترتېرېدو وروسته وونو دوخت له تېرېدو وروسته طلاق واقع کیږي یایې

مرادوقوع وي اوله وخت څخه يې مراداستدادوي نوفوراواقع کيږي که يې چيري هيڅ نيت نه وي نوزموږپه نزدله وخت وروسته طلاق واقع کيږي.

### دزمانې وطرفته دطلاق نسبت

تردې مخته دابنوول کيږي اوپردې باندي په تفصيل سره دلائل ويل کيږي چي طلاق تجزي (توټې) کېدل نه قبلوي دارازدزمانې حال دی چي که چيري يوسړی دزمانې وطرفته دطلاق نسبت وکړي نودزمانې له اول جزسره دطلاق واقع کېدل متحقق کيږي مثلا که چيري څوک داسي ووايې چي تاته راتلوونکی صباطلاق ياکلونه، يالس ورځې وروسته طلاق يايوه مياشت وروسته طلاق نوله متعينه ورخوتيريدوروسته طلاق واقع کيږي يعنی که يې چيري صباطلاق ويلی وي نودصبح صادق (سپېدو) سره طلاق واقع کيږي لکه څرنګه چي په درمختارکې دي: انت طالق غدا اوفي غد يقع عند طلوع الصبح الخ!

له دې وجې علامه شامي رحمه الله داسي ليکي چي: ووجه الوقوع عند طلوعه انه وصفها بالطلاق في جميع الغد فتعين الجزء الاول لعدم المزاحم (شامی ص: ۲۰۲ج: ۲)

دسپېدوسره دطلاق دواقع کېدووجه داده چي ده طلاق له ټول صباسره تړلی دی، له دې وجې نودهغه اول جزء متعين سو، ځکه دهغه کوم جزء مزاحم نسته.

دارازکه چيري ووايې تاته دشعبان په مياشت کې طلاق ياپه فلانۍ مياشت کې اودهغې دمانبام تعين وکړي نوددې مياشتې په راتلوسره طلاق واقع کيږي که چيري ووايې نن، صباطلاق يادذې پرعکس نوپه دې صورت کې داول لفظ اعتبارکيږي اوپه دې وخت کې طلاق واقع کيږي.

اوکه چيري داسي ووايې: چي تاته نن اوصباطلاق ياشپې ته طلاق اوورځې ته، يادروځې په شروع کې يادشپې په شروع کې نوپه دې سره دوه رجعي طلاقونه واقع کيږي، ځکه په داسي ويلوسره دووزمانوته دطلاق نسبت کيږي اوکله چي دوارې زمانې راغلي نودوهم طلاق هم واقع کيږي ددې پوره تفصيل په شامي ص: ۲۰۲جلد۲کې موجوددی.



ليکن که چيري يوسړی ووايې چي تاته ترنکاح مخکې طلاق ياتاته تيرسوی صباطلاق اونکاح يې نن کړې وي نوپه دې دواړوصورتونوکې طلاق نه واقع کيږي په اول کې دطلاق محل نسته اوددوهم هم همداحال دی چي دده ښځه نه وي نوبياويل چي طلاق تيرسوی صبااونکاح نن.

لانه اسند الطلاق الى حالة معهودة منافية لمالكية الطلاق فكان حاصله انكار الطلاق فلغو (شامی ص: ۲۰۷ج: ۲) ترجمه: له دې وجې چي ده دطلاق نسبت ويوحالت معهودته وکړکوم چي له طلاق سره منافی دی نوحاصل يې له طلاق څخه انکاردی له دې وجې يوه بېکاره اوبې ګټې خبره سوه.

### له مرګه وروسته طلاق

که يوسړی ښځې ته ووايې: له مرګه وروسته طلاق يازما، ياستاله مرګه وروسته طلاق نوپه داسي صورت کې طلاق نه واقع کيږي.

لان موته مناف لايقاع الطلاق منه وموتها مناف لوقوعه عليها! (ص: ۲۰۷ج: ۲)

په مرګ دطلاق دواقع کېدوصلاحيت هم نه وي لهذابې صلاحيته وقوع څرنګه کيږي؟

### هره ورځ طلاق

که چيري يوسړی ووايې چي تاته هره ورځ طلا نوپه دې سره يورجعی طلاق واقع کيږي خواه ورځې هرڅومره تيري سي اوخواه دطلاق نيت يې وي يانه.

لوقال انت طالق كل يوم تقع واحدة عند ائمة الثلاث خلافا لزفر رحمه الله (ص: ۲۰۸ج: ۲)

که چيري ووايې چي تاته هره ورځ طلاق نوزموږددرواومامانوپه نزديوواقع کيږي ليکن که چيري داسي ووايې چي په هره ورځ کې دننه، يوطلاق نوپه درو ورځوتيريدوسره پرښځې درې طلاقونه واقع کيږي.

ولوقال في كل يوم طلقت ثلاثا في كل يوم واحدة اجماعا (ص: ۲۰۸ج: ۲)

که چيري داسي ووايې چي هره ورځ تاته درې طلاقه نوهره ورځ يوواقع کيږي پردې اجماع ده.

## دګوتې په اشاره سره دطلاق حکم

دګوتي په اشاره سره هم طلاق واقع کیږي ،څرنګه چي ډیروختونه دشرعي په احکامویاعرف کي دګوتي اشاره هم معتبره اومعتمدبیږي په حدیث شریف کي هم نبی علیه السلام دصحابه کرامورضی الله عنهم په مخکي دمیاشتي تفصیل نبوودګوتي په اشاره سره یې ( الشهرهکذا،الشهرهکذادرې واره وویل ) نومعلومه سوه چي په شرع کي هم ددي اعتبارکیږي لهذا که کوم سړی په درې یاتردي په زیاتوګوتوسره اشاره وکړي ووایي چي تاته دومره طلاقونه نودرې طلاقه واقع کیږي.

فان اشاربثلاث فثلاث اوبثنتین ثنتان اوبواحدة فواحدة ( شامی ص: ۲۱۵ج:۲ )

ترجمه: که چیري په دروسره اشاره وکړي نودرې اوکه په دوونودوه اوکه په یوه سره اشاره وکړي نویوواقع کیږي البته په لاس سره په اشاره کولوکي دګوتو خلاصول شرط دي بندول یې نه دي پکار.

لیکن اشاره خوپه ګوتوسره کیږي مګرداشاري په ځای وېناچي تاته داسي طلاق نوکه یې چیري دطلاق نیت وونودرې طلاقونه واقع کیږي کني یوبائن طلاق واقع کیږي په مخکني صورت کي دنیت ضرورت نسته په درمختارکي تصریح ده: بخلاف مثل هذافانه ان نوی ثلاثًا وقعن والاواحدة!

علامه شامی رحمه الله پردې لیکلي دي: فواحدة بائنة کقوله انت طالق کالف (شامی ص: ۲۱۵)

ددې په خلاف که چیري ددرواراده یې وي نودرې واقع کیږي کني یوبل بائن طلاق واقع کیږي لکه څرنګه چي څوک ووایي ( تاته زرطلاقونه ).

البته که یې چیري په اشاره سره نیت دګوتوعددنه وي بلکي اورغوی مرادوي نودیانة یوبائن طلا ق واقع کیږي خوکه چیري دامعامله قضاء ته وړاندي سي نوهلته داورغوي نیت نه معتبربیږي بلکي ددروګوتوپه اشاره سره



ددروطلاقونوحکم به کیږي اودرې طلاقونه واقع کیږي علامه ابن عابدین رحمه الله وایي:

وان نوی الکف صدق دیانة وقعت علیه واحدة لان الکف واحدة فلایصدق قضاء لوتطلق ثلاثًا لانه اشارالیهاباصابعه الثلاث المنشورة ( شامی ص: ۲۱۵ج:۲ )

ترجمه: که یې چیري مراداورغوی وي نودیانةً منل کیږي اویوواقع کیږي لیکن په قضاء کي نه منل کیږي اودرې واقع کیږي ،ځکه په دې سره یې دده په خپلودروخلاصوګوتوسره اشاره کړې ده.

مسئله: که چیري داووایي: چي تاته طلاق دی اوپه دروګوتوسره اشاره وکړي مګرپه ژبه ونه وایي چي دومره یاداسي اونیت هم ددروطلاقونووي نوپه دې صورت کي یوطلاق واقع کیږي.

په قاضی خان کي هم دامسئله ذکرسوې ده:

بان قال انت طالق واشاربثلاث اصابع ونوی الثلا ث ولم یذکربلسانه فانهاتطلق واحدة ( شامی ص: ۲۱۲ج:۲ )

داووایي: چي تاته طلاق دی اوپه دروګوتوسره اشاره وکړي مګرپه ژبه ونه وایي اونیت هم ددروطلاقونووي نوپه دې صورت کي یوطلاق واقع کیږي.

دارازکه ښځه ووایي چي ماته طلاق راکړه اوصرف ددروګوتواشاره وکړي په ژبه څه ونه وایي نوکه څه هم ددروطلاقونونیت وي مګرپرته دژبې له څه ویلونه طلاق نه واقع کیږي په خانیه کي تصریح ده:

امرأة قالت لزوجهاطلقنی فاشارالیهابثلاث اصابع ونوی ثلاث تطلیقات لاتطلق مالم یتلفظ به ( خانیه ص: ۳۹۷ج:۱ )

## دبائن طلاق دواقع کیدویوبل صورت

تردې ځایه هغه مسائل ذکرسوېه کوموسره چي بائن طلاق واقع کېدی له دې مخکي عرض وسو چي په بعضووختونوکي صریح هم بائن فائده کوي په ذیل کي څومسائل دطلاق له لفظ سره ذکرسومګرڅه الفاظ داسي هم دي کوم چي

دطلاق ترلفظ وروسته ذکرسي نودرجعي پرځای بائن واقع کيږي ،ځکه په رجعي کې دښځې د رجوع اختياروي مګرپه بائن سره نکاح ختميږي پردې بنامعامله سخته اوپېچېده کيږي اوځرنګه چي په الفاظوکې دښځې هم څه اندازه سختي سته له دې وجې بائن ورته وويل سومثلا ښځي ته ووايې چي تاته بائن طلاق ، ډک کورطلاقه ، دشيطان طلاق.

ويقع لقوله انت طالق بائن اوالبتة اوافحش الطلاق اوطلاق الشيطان اوالبدعة اواشرالطلاق اوکالجبل کالالف اوملأ البيت تطليقة شديدة اوطويلة اوعريضة اواشده اواخبثه اواکبره اواعرضه اواطوله اواغلظه اواعظمه واحدة بائنةفي الکل ( درمختارص: ۲۱۸ج:۲ )

ترجمه:( تاته بائن طلاق ، يابدترين طلاق ، يادشيطان طلاق ، يادبدعت طلاق ، بد طلاق ، يادغره غوندي طلاق ، يازرطلاقه ، ياډک کور طلاقونه ، سخت طلاق ، اوږدطلاق ، سرورطلاق ، شديدترين طلاق ، خبيث ترين طلاق ، ترټولولوئ طلاق ، ترټولوسورورطلاق ،ترټولواوږدطلاق ، ترټولوغليظ طلاق ، ترټولوعظيم طلاق ، )په دې ټولوصورتونوکې صرف يوبائن طلاق واقع کيږي

که چيري په دې الفاظوکي له کوم يونه هم ددروطلاقونونيت وکړي نودرې واقع کيږي لکه ځرنګه چي علامه شامی رحمه الله پردې اوږدبحث کړی ليکي:

ظاهرکلامه صحة نية الثلاث في جميع مامرالخ فيجاب بانهم قدعللواصحة نية الثلاث في جميع مامربانه وصفه الطلاق بالبينونة وهي نوعان خفيفة اوغليظة فاذانوی الثانية صح ( ص: ۲۱۸ج:۲ )

ترجمه: له ظاهرکلام څخه په ټولوکې ددرونيت کول صحيح معلوميږي نوجواب يې ورکړی چي ددروطلاقونودنيت صحت په ټول بيان کړل سويوکې مطلوب دي چي هغه طلاق په بائن سره متصف کړي ،ځکه چي بائن په خفيفه اوغليظه دووقسمونوکې منحصردی که چيري ددوهم صورت نيت وي نوصحيح دی.



### تاته زرطلاقونه

که چيري خپلې ښځې ته ووايې چي تاته زرطلاقونه ياڅوواره طلاق نوپه دې سره درې طلاقونه واقع کيږي ښځه مغلظه کيږي هرقسم تعلق ورسره ساتل شرعًا حرام اوناجائزدی فورًا يې جلاکول ضروري دي وګورئ درمختار:

کمالوقال اکثرالطلاق اوانت طالق مرارًا الوفًا اولاقليل ولاکثيرفثلاث هذامختار درمختار!

علامه شامی رحمه الله له بحرالرائق څخه نقل کوي ، ليکي:

لوقال انت طالق مرارًا اتطلق ثلاثًا ان کان مدخولًا بها!

که چيري ووايې چي تاته په وار، وارطلاق نودرې واقع کيږي که چيري ښځه مدخول بهاوي.

مدخول بهاهغې ښځې ته وايي کومه چي خاوندوطی کړې ( کوروالی يې ورسره کړی ) وي.که يې چيري له ښځې سره ترنکاح وروسته وطی نه وي کړې نودرې طلاقونه نه واقع کيږي په يوه طلاق سره بائنه کيږي.

### دکالقاضي ( لکه دقاضي ګڼدو) تصريح

دطلاق په باب کې ددیانة اوقضاء ډېراحتياط پکاردی .له دې وجې فقهاؤدطلاق په بعضی مسئلوکې ښځه دقاضي په څيرشمېرلې ده ، لکه ځرنګه چي اصول دي ( المرأة کالقاضی ) مګر ددې مطلب دانه دی چي ښځه دقاضي په څيرفيصله وکړي بلکې ددې مطلب دادی چي که چيري خاوندډښځې په مخکې درې يايوبائن طلاق واچوي اوبيادخاونداراده داهم وي چي ښځه پرته له حلالې ياصرف دنکاح په نوي کولوسره له ځانه سره کړي ياخاوندله درويابائن څخه انکارکوي اوله ښځې سره هيڅ ثبوت نه وي نوپه دې صورت کې دواړه په ګناه کبيره يازناباندي اخته کيږي ، خاوندله دې وجې په ګناه اخته دی چي دد خوطلاق ورکړبيااز دواجي تعلق پرته له نکاح اوحلالې دقانون خلاف قائمول غواړي اوښځه له دې وجې چي هغه له خاوندسره پرته له نکاح اوحلالې په اوسېدو باندي راضي ده نوپه دې موقع باندي فقهاؤله ګناه څخه دخلاصېدو

لپاره داصورت راایستلی چي ښځه په دې معامله کي دقاضي په څیرده یعنی کله چي ښځې ته داعلم وي خواه هغې پخپله دطلاق الفاظ اورېدلې وي یابل کوم چاهغې ته دطلاق خبرورکړی وي چي خاوندتاته بائن یامغلظه طلاق درکړی دی نواوس پرښځې باندي فرض دي چي خاوندته پخپله دوطی وغیره اجازه ورنه کړي اونه له هغه سره واوسي بلکي بلکل ځیني جلا سي اوکه بې چیري خاوندپه زورله ځان سره کوي نوبیادې ښځه له هغه ځخه ځان وکاږي یادي یوبل صورت اختیارکړي که چیري یوکوشش هم کامیاب نسي نوبیادزناکارۍ ګناه یواځي پرخاوندباندي راځي پرښځې باندي نه راځي په بحرالرائق کې ددې مسئلې تصریح دارازده:

والمرأة کالقاضی اذا سمعته او اخبرها عدل لایحل لها تمکینه الخ !

کله چي ښځه دطلاف الفاظ پخپله واوري یایوعادل سړی خبرورکړي نوداسي خاوندته پرځان باندي قابو( قدرت ) ورکول ددې لپاره جائزنه دي.

په فتاوی بزازیه اواوزجندی وغیره کې خوداتشریح هم ده چي ښځه دي ددې معاملې سمدستي دقاضی په عدالت کې دعوی وکړي که چیري له ښځې سره کوم شاهدنه وي نوله خاوند څخه به قسم اخلي که چیري هغه قسم وکړي نودهغه په حق کې به فیصله کیږي په داسي صورت کې دښځې هیڅ ګناه نسته.

وذکر فی البزازیة وذکر اوزجندی انها ترفع الامر الی القاضی فانه یکن لها بینة تحلفه فان حلف فالاثم علیه
( بحرالرائق ص: ۳۵۷ج:۲ )

ترجمه: په داسي صورت کې به ښځه خپله معامله دقاضی په مخ کي پیشوي که چیري بې کوم شاهدنه وي نوخاوندته به قسم ورکول کیږي که چیري هغه قسم وکړي نوپرښځې باندي کومه ګناه نسته.

**طلاق ورکړي بيا انکاروکړي**

واضحه دې وي چي پرداسي موقع باندي دخپل ځان وژل یادخاونددوژلو سازش شریعت حرام بللې دي ، که چیري یوسړی له طلاق ورکولوانکارکوي چي



ماطلاق نه دی ورکړی اوله ښځې سره کوم شاهدهم نه وي نوخاوندته به قسم ورکول کیږي که بې چیري قسم واخست نوانکاربې معتبریږي ( البینة علی المدعی والیمین علی من انکر ) ،ځکه په دې صورت کې خاوندمنکراوښځه مدعیه ده اوشاهدموجودنه دی.

دارازښځه ووایې چي فلانی ماته بائن طلاق یادرې طلاقونه راکړې دي اوخاوندله طلاق ورکولوبلکل انکارکوي نودلته به هم خاوندته قسم ورکول کیږي ،دشاهدپه صورت کې به فیصله دښځې په حق کي کیږي ،له عدې وروسته دوهم ځای واده کولای سي اوکه چیري قاضی صاحب دشرعی شاهدی دنه شتون په وجه ښځه خاوندته وسپاري کوم چي درې طلاقونه ورکړې وي نودښځې لپاره که بې پخپله اورېدلې یاکوم معتمد یامعتبرسړی خبرورکړی وي جائزنه دی چي هغه له دې خاوندسره واوسي ، ترخپله وسه پورې به له هغه څخه دجلا اوسېدوکوشش کوي لکه څرنګه چي پورته دامسئله تېره سوه دارازمسئلې ډېرې پېښېږي داهل علم اومخوروکلې والاوو( چي په دې مسئله پوهیږي ) دې طرفته توجه کول ضروري دی ددې لپاره چي ددغه قسم مسائل دتصفیه لپاره شرعي کمېټۍ قائمه کړي یا دکومې شرعی دارالقضاء په ذریعه سره داسي مسائل حل کړي ، چي معاشره دداسي قسم ناپاکه جرائموپاکه سي واضحه دې وي چي که چیري دوه ثقه سړي هم دخاونددطلاق ورکول واوري اوشاهدي ورکړي چي موږداسي پخپله واورېدل نوبیادخاوندانکارمعتبرنه دی

**تنبيه** : ښځې اوخاوندته هم دتوجه کولوضرورت دی ،ځکه که څه هم داسلام اوعدالت اسلامیه فیصله په شرعي شاهدانویاقسم باندي کیږي مګرددې هیڅکله دامطلب نه دی چي انسان له دې څخه ناروافائده پورته اوکوچنی قسم واخلي په دنیاکې دیوڅوورځودلذت ( خوند ) لپاره تېول ژوندبربادکړي

په یادساتئ: چي دذرې ، ذرې حال الله تعالی ته معلوم دی ، په دنیاکې په دوکه ، فریب کامیابه کېدل کمال نه دی کوم خلک چي پردې قسم جرأت کوي که

چیري دهغوئ دنسل مطالعه وسي نو معلومه به سي چي دهغوله اخلاقي حیثیت څخه به په راروان نسل کې وقارباقي پاتي نه وي ،یورپ ددې قسم فحاشي دنتیجو ترخه ځکلې دي ، له دې وجې نو انسان ته په دې معامله کې ډېراحتیاط کول پکاردي ،کامیابی په اصل کې داخیرت ده ، طلاق ورکول بیاانکارخوبه په دنیاکې دزناکاري اوحرام وبال وی او په اخیرت کې به هم ذلیل اورسواوي اوصرف دومره نه بلکې داحرام کاري اوزناکاري پرآئنده نسل هم اثرپرېباسي اوداسي کول دمعاشرې لپاره هم یوبدښکاربدوونکی داغ دی هرانسان ته دآینده نسل پوره ، پوره حفاظت کول پکاردي بایدداهم کار دخپلو جذباتو اواحساساتو لپاره قربان نکړي.

## خوښخوته طلاق

تراوسه پورې دطلاق سلسله صرف دیوې ښځې وه اوکه چیري دسړی دوې ښځې یاتردووزیاتې وي اوهغه پرته له کوم تعین څخه طلاق ورکړي نوشرعًا دواقع کېدوڅه صورت دی ؟ آیاپردې ټولوښځوواقع کیږي یاصرف پریوه یادوو؟ ایاپه صریح اوبائن کې کوم فرق هم سته ؟آیادواړو یوحکم دی ؟
دصریح حکم خودادی چي که چیري پرته له دې چي دکومې یوې طرفته اضافت وکړي خاوندووایي ښځې ته یوطلاق اودهغه دوې ،درې ښځې وي نویوطلاق واقع کیږي کومې یوې ته چي غواړي خاونددې اختیارکړي لکه څرنګه چي علامه شامی رحمه الله لیکلي:

بخلاف الصریح نحوامرأته طالق وله اکثرمن واحدة فلاتقع الاواحدة الخ !

ترجمه: په خلاف دصریح لکه چي ووایي ده ښځې ته طلاق اودده تریوه زیاتې ښځې وي نوصرف یوطلاق واقع کیږي.
لیکن په اوزجندی کې دطلاق دواقع کېدوتشریح په داډول دیوه سوال په ځواب کې فرمایي:

انه لایقع الاعلی واحدة ( شامی ص: ۲۴۰ ج: ۲ )



یعنی صرف پریوه ښځه واقع کیږي.
په خلاف ددې چي دده دوې ښځې وي اودواړې په یوډول نه یوډول مشهورې وي خاوندووایي چي ښځې ته طلاق نواوس خاوندته اختیاردی پرکومه چي غواړې طلاق دې واقع کړي داجزیه په قاضی خان کې موجوده ده:

امرأته طالق وله امرأتان معروفتان له ان یصرف الطلاق الی ایتهماشاء ( شامی ص: ۲۳۰ ج: ۲ )

یوې ته طلاق ورکړي اودده دوې مشهورې ښځې وي نوهغه ته داحق دی چي کومې یوې ته طلاق ورکوي وردې کړي.
اوکه چیري داووایي چي ټولوته طلاق دکومې یوې نوم وانخلي اونه دیوې وصف متعین کړي نوکه چیري څلورښځې وي نوپرڅلوروسره یو، یوطلاق واقع کیږي اوکه چیري درې وي نوهم داحکم دی البته په دووکې خاوندته اختیاردی ، که څه هم په دې کې اختلاف دی تردې چي مفتی به اومختارقول داچي پرټولو واقع کیږي محقق ابن همام رحمه الله داظاهره کړي ، لیکي:

واختارالمحقق ابن الهمام انه یقع علی الکل لاستغراقه وهذاهوالظاهر! (شامی ص: ۲۳۱ ج: ۲ )

محقق ابن همام رحمه الله وایي: چي پرټولوواقع کیږي ،ځکه چي هغه ټولې په خپل طلاق کې رانغښتي دي.
علامه شامی رحمه الله هم دمحقق یادسوې تحقیق ته ترجیح ورکړې اوقبول کړی یې دی ،لیکي:

وکان فیه ترجیح ابن الهمام اظهر( ص: ۲۳۱)

که چیري یوسړی خپلوڅلوروښځوته داسي ووایي: چي ستاسوپه مینځ کې یوطلاق ، نوپرهرې یوې باندې یو ،یورجعی طلاق واقع کیږي داراز( ستاسو په مینځ کې دوه ،درې طلاقونه یاڅلورطلاقونه ) په داسي صورت کې هم پرهرې یوې باندې یوطلاق واقع کیږي په دې شرط چي پرهرې یوې باندې یې دجلا ، جلا تقسیم نیت نه وي کنې حکم بدلیږي علامه شامی رحمه الله دیوه طلاق واقع کېدووجه ښیي:

وجه وقوع الواحدة فی هذا الصوران بعض الطلقة طلقة کما مر ( ص: ۲۳۱ ج: ۲ )

اوکه چیري خپلو څلوروښځوته داسي ووایې: چي تاسوته پنځه طلاقه یاشپږ طلاقه یااووه طلاق یاته طلاق نو په دغوصورتونوکې پرهره یوه دوه طلاقونه واقع کیږي.

ولوقال بینکن خمس تطلیقات یقع علی کل واحدة طلاقتان هکذا الی ثمان تطلیقة ( ص: ۲۳۲ ج: ۲ )

لیکن که چیري تراتوزیات ووایې مثلا نه طلاقه یالس الخ نو په دې صورتونو کې یقیني پرهره یوه باندي درې طلاقونه واقع کیږي.

فان زاد علیها طلقت کل واحدة ثلاثًا ( ص: ۲۳۲ ج: ۲ )

که چیري خپلو دوو مدخول بهاښځوته ووایې: چي امرأتی طالق، امرأتی طالق نو پر یوې طلاق واقع کیږي البته خاوند ته اختیاردی.

ولومدخولتین فله ایقاع الطلاق علی احدهما در مختار!

## دښځې نوم نه اخستل

په مخکې کې ددې وضاحت سوی دی چي دطلاق دواقع کېدولپاره اضافت یعنی دښځې وطرفته نسبت کول هم شرط دي پرته له دې دطلاق واقع کېدل مبهم کیږي له دې وجې نه معتبریږي ،البته په ځیني ځایونوکې صریح اضافت کیږي اوپه بعضوکې په معنوی اضافت سره هم کارکیږي له معنوی اضافت څخه مرادداسي اسباب اوقرائن دي دکوموپربناچي ویل کیږي چي هغه دښځې وطرفته مضاف دی که څه هم ښکاره یې دهغه التزام کړی نه وي ، دارازدښځې نوم یاهغه چي ښځه په مشهوره وي نه ذکرکول هم دطلاق له واقع کېدوڅخه مانع دی ډیروختونه قرائني داسي وي له کوموڅخه چي خاماخاله ښځې پرته بل څوک نه اخستل لهذاکه چیري یوسړی داسي ووایې چي:

امرأتی طالق ولم یسم وله معروفة طلقت امرأته در مختار!

علامه شامی رحمه الله لیکلي دي: داخودنامه نه اخستلوحال دی ، که چیري له نامه سره ووایې چي زینب ته طلاق نو په طریقه اولی سره طلاق واقع کیږي.



امالوسماهاباسمهافکذابالاولی ( شامی ص: ۲۳۲ ج: ۲ )

که چیري دهغې نوم واخلي نوهم طلاق واقع کیږي.

مسئله: اوکه چیري داسي ووایې: چي دفلانی لورفلانۍ ته طلاق نو په دې سره هم طلاق واقع کیږي که یې دطلاق نیت وي یانه ، په درمختارکې ددې تصریح ده: ولوقال فلانة بنت فلان طالق ثم قال اردت امرأة اخری اجنبیة بذلك الاسم والنسب لایصدق ویقع علی امرأته (شامی ص: ۲۳۲ ج: ۲ )

ترجمه: که چیري ووایې چي دفلانی لورفلانۍ ته طلاق نوبیاووایې چي زما په دې نامه اونسب سره اراده بله پردۍ ښځه وه نودده داراداې تصدیق نه کیږي اودهغه پرښځې باندي طلاق واقع کیږي.

اوکه چیري داسي ووایې: چي رحیمیه ته طلاق اوله دې څخه دده مرادبله دهمسایه ښځه دکومې چي نوم رحیمه ده وي نودادقبول ورنه ده بلکي دهغه پرښځه طلاق واقع کیږي که د هغه دښځې نوم رحیمه ووکه چیري دهغه دوې ښځې وي رحیمه اوکریمه نواوس پردواړوطلاق واقع کیږي.

علامه شامی رحمه الله داسي تصریح کړې ده:

وکذالوقال زینب طالق وهواسم امرأته ثم قال اردت غیرامرأة لایصدق ویقع علیهماان کانتاز وجتین له (شامی ص: ۲۳۲ ج: ۲ )

ترجمه: همداسي ده که چیري ووایې چي زینب ته طلاق کوم چي دهغه دښځې نوم دی بیاووایې چي زمامرادله خپلې ښځې علاوه بله یوه وه نودده تصدیق نه کیږي اوپردواړوطلاق راځي که چیري دده په نکاح کې دوې ښځې وي.

دارازکه چیري دښځې نوم وانخلي مګردهغې نسبت وموریاخوریادهغې دزوئ وطرفته وکړي مثلا ووایې: چي دزید مورته طلاق اوزید دهغې زوئ وي نو په دې صورتونوکې طلاق واقع کیږي ، داعذریې نه قبلیږي چي دښځې نوم خومې نه دی اخستی نوولي واقع کیږي لکه څرنګه چي بعضی حضراتوجوازهم لیکلي دی داسي قسم تاویلات کوي علامه شامی رحمه الله لیکي:

وكذالونسبهاالى امهااواختهااوولدهاوهى كذلك ( ص: ۲۳۲ج: ۲ )

### که چیري دښځې نوم ( طالق ) وي

که چیري دیوچادښځې نوم طالق وي اوهغه هغې ته طالق ووایې: نوکه یې چیري دطلاق نیت وي نوواقع کیږي کنې نه واقع کیږي دلته دصریح لفظ له ویلوسره ، سره دنیت ضرورت له دې وجې دی چې دده دښځې نوم طالق دی که چیري یې نوم طالق نه وي نوبیادنیت ضرورت نه سته اوطلاق واقع کیږي.

كان اسمهاطالق اوحرة فناداهاان نوى الطلاق اوالعتاق وقعاوالالا درمختار !

### دغې سپي ته طلاق

که چیري یوسړی خپلې ښځې ته ووایې چې دې سپي ته طلاق نوطلاق واقع کیږي دلته دنیت ضرورت هم نسته ،ځکه داښیې چې دنامه اخستلو هیڅ ضرورت نسته ،دلته اشاره موجوده ده لهذادهغې تعین کیږي: قال لامرأته هذه كلبة طلاق طلقت( درمختار )

علامه شامی رحمه الله لیکلي دي: لاتعتبرالصفة والتسمية مع الاشارة ( ص: ۲۳۲ج: ۲ )
له اشارې سره دنامه اوصفت یادولواعتبارنه کیږي.
مطلب دادی چې که چیري یوڅوک دخپلې ښځې وطرفته اشاره وکړي داسې ووایې چې دې ته طلاق مګرله اشارې سره دکومې بلې ښځې نوم واخلي ددې لپاره چې دطلاق نه واقع کېدوته حېله جوړه کړي پردې مسئله ده چې که چیري اشاره وکړي نوبیادبلې ښځې دنامه اخستلوهیڅ اعتبارنسته.

### دې ړندې ته طلاق

دارازدلته هم طلاق واقع کیږي که چیري خپلې ښځې ته اشاره وکړي ،ووایې چې دې ړندې ته طلاق حال داوي چې دښځې دواړې سترګې روغې وي مګراشاره به یې منل کیږي ، دطلاق واقع کېدوحکم به کیږي.
كمالوكان له امرأة بصيرة فقال امرأته هذه العمياء طالق واشارالى البصيرة تطلق (ص: ۲۳۳ج: ۲ )



مسئله : که چیري یوسړی دخپلې ښځې وطرفته اشاره وکړي ،ووایې چې ای زینب تاته طلاق ( زینب دهغه دښځې نوم وي ) په وروسته کې معلوم سي چې هغه له بلې ښځې سره ناسته وه( دکومې وطرفته چې یې اشاره کړې وه ) زید په خپل ګمان کې خپله ښځه بللې وه نودزید پرښځه زینب باندې طلاق واقع کیږي ،ځکه دنامه اخستلو په وجه اشاره باطله سوه.

شخصاظن ان امرأته عمرة فقال ياعمرة انت طالق ولم يشيرالى شخصهافاذا الشخص غيرامرأته تطلق ( ص: ۲۳۲ج: ۲ )
ترجمه : چاګمان وکړچې دده ښځه فلانۍ ده نووي ویل چې فلانۍ تاته طلاق اواشاره دهغې وطرفته ونکړې په وروسته کې هغه دده له ښځې پرته بله ښځه ثابته سې نودده ښځه طلاقه سوه.

### تاته په څلورمذهبه طلاق

یوڅوک خپلې ښځې ته ووایې چې تاته په څلورمذهبه طلاق نوعلامه شامي رحمه الله درجعي طلاق پرواقع کېدوباندې داتفاق لیکي:
ولاشبهة فى كونه رجعيًالابائنالاتفاق المذاهب كلهاعلى وقوع الى جمعى بانت طالق ( ص: ۲۴۴ج: ۲ )
ترجمه : ددې په رجعي واقع کېدوکې هیڅ شبه نسته بائن نه کیږي ولې چې په (تاته طلاق ) ویلوباندې ټول مذهبونه درجعي طلاق دواقع کېدوقائل دي.

### دیهودوپرمذهب طلاق

دارازپه دې سره هم رجعي طلاق واقع کیږي که چیري داسې ووایې چې تاته دیهود ، نصارى پرمذهب طلاق لکه څرنګه چې علامه ابن عابدین رحمه الله لیکي:
وكذاانت طالق على مذهب اليهوالنصارى كماافتى به خيرالرمل ( ص: ۲۳۳ج: ۲ ) ثاني وكذاانت طالق لايردك قاض ولاعالم اوانت طالق تحلل الخنازير وتحرمى على فيقع بالكل طلقت رجعية ( شاميه ( ص: ۲۳۳ج: ۲ )

**دفقهاؤپرقول طلاق**

که چیري داووایي چي تاته دفقهاؤپرقول طلاق وغیره نوقضاءً طلاق واقع کیږي

انت طالق في قول الفقهاء وكذلك قول القضاء او المسلمين او القرآن فتطلق قضاءً لاديانة الا بالنية ( ص: ۲۳۳ج:۲ )

ترجمه: تاته دفقهاؤپرقول طلاق یادمسلمانانودقاضي یاقرآنکریم دحکم مطابق تاته طلاق نوقضاء طلاقیږي البته دیانةً پرته له نیت نه طلاق نه واقع کیږي.

**ددنیابنځوته طلاق**

ددنیاياعالم وبنځوته په طلاق ویلوسره پربنځې باندي طلاق نه واقع کیږي اودادامام ابویوسف رحمه الله قول دی اوفتوی هم پرهمدې قول ده لکه څرنګه چي ددرمختارپه دې عبارت کې دي:

نساء الدنيا والعالم طوالق لم تطلق امرأته!

علامه شامی رحمه الله لیکي:

وقال ابويوسف رحمه الله لايعتق عبده وقال محمد رحمه الله يعتق وعلى هذا الخلاف الطلاق والفتوى على قول ابي يوسف رحمه الله ( شامی ص: ۲۳۳ج:۲ )

ددنیایاعالم بنځوته په طلاق ویلوسره دامام ابویوسف رحمه الله په نزددهغه دبنځې طلاق نه راځي ،دهغه مریبی نه آزادیږي دامام محمدرحمه الله په نزدآزادیږي په طلاق کې هم همدااختلاف دی اوفتوی دامام ابویوسف رحمه الله پرقول ده.

لیکن که چیري دعالم یادنیاپرځای بنځې ته داووایي:

نساء هذه البلدة اوهذه القرية طالق وفيها امرأته طلقت (فتاوی خانیه ص: ۳۹۲ج:۱ )

ترجمه: ددې کلي یاښارښځوته طلاق اوپه هغه کې دده ښځه هم وي نوپربنځې یې طلاق واقع کیږي.



په دې سره هم پربنځې باندي طلاق واقع کیږي که چیري خاوندووایي چي: نساء المحلة والدار والبيت طوالق ( درمختار )

ترجمه: ددې محلې ، مکان یاکوربنځوته طلاق نوپربنځې یې طلاق واقع کیږي که څه هم په دوئ کې پرهرې یوې وي.

**په دوستانوبه مجلس کي طلاق**

که چیري یوسړی ددوستانوپه مینځ کې داقسم واخلي چي کوم سړی که له دې وروسته خبره وکړه دهغه ښځې ته طلاق اوپخپله یې خبرې کولې نوفقهاؤتصریح کړې ده چي دهغه پربنځې باندي طلاق واقع کیږي ،ځکه چي دی خوهم په همدې مجلس کې داخل دی علامه شامی رحمه الله لیکي:

اشار بهذا ان دخول الحالف ههنا في عموم كلامه الخ وفي التحرير ان دخوله قول الجمهور( شامی ص: ۲۳۵ج: ۲ )

دېته اشاره موجوده ده چي قسم کوونکی پخپله په عموم کلام کې داخل دی په تحریرکې دجمهوروقول نقل سوی دی.

**له یوه طلاق وروسته خاموشي**

که چیري (تاته طلاق ووایي ) خاموش سي اوداخاموشي دساکښلولپاره وه بیاله دې وروسته ووایې درې نودرې طلاقونه واقع کیږي که یې چیري په قصده خاموشي اختیارکړې وي نویوطلاق واقع کیږي دارازکه یې چیري تاته طلاق وویل چي یوچاپوښتنه څیني وکړه چي څوطلاقونه دې ورکړل دی فوراً ووایي درې نودرې طلاقونه واقع کیږي.

رجل قال لامرأته انت طالق وسكت ثم قال ثلاثًا ان كان سكوته لانقطاع النفس تطلق ثلاثًا وان لم يكن لانقطاع النفس تقع واحدة ( خانیه ص: ۴۰۰ج:۱ )

ترجمه: یوسړی خپلې ښځې ته ووایې چي تاته طلاق اوخاموش سي بیاووایې درې که چیري یې خاموشي دساه اخستلولپاره وي نودرې واقع کیږي اوکه یې چیري خاموشي دساه اخستلولپاره نه وي نویوواقع کیږي.

قال لامرأته انت طالق وسکت فقیل له کم فقال ثلاثًا قال ابویوسف رحمه الله تطلق ثلاثًا ( خانیه ص: ۴۰۱ ج ۱: )

### دطلاق لپاره دمور اوپلار حکم کول

په مقدمه کې ددې پوره تفصیل تیرسوی دی چې طلاق دالله تعالی په نزد ابغض المباحات دی ،طلاق ورکول کوم نېک کارنه دی اونه په دې کې نېک نامي سته ، هغه خو دیو مجبورۍ او هغه هم دشدیدې مجبورۍ سودا ده.

لهذا که چیري مور اوپلار ددې کارلپاره پرسړی زوراچوي یاحکم ورکړي چې ښځې ته طلاق ورکړه نوپه دې صورت کې پراولادضروري نه دی چې دمور او پلار دحکم تعمیل ( پرځای )کړي دامرپه امتثال نه کولو نه ګنهګاریږي ،ځکه :

لاطاعة لمخلوق فی معصیة الخالق !

ترجمه: دمخلوق په فرمانبردارۍ کې دخالق نافرماني نه ده روا.

اودلته دمعصیت صدورکیږي لهذا عمل نه کول ضروري دی.

هو که چیري په دې کې دښځې قصوروي ،هغه نافرمانه وي ، په ژبنداري کې پوره ماهره وي ، خاوندزهیروي ، حقوق یې نه اداکوي ، اوازدواجي تعلق ورانوي ، یاپه ناجائزه روابطواوحرام کارۍ کې مبتلاوي نوپه دې وخت کې دمور اوپلارامرمنل پکاربلکې ضروري دي په اشعة اللمعات کې دي:

ان کان الحق فی جانب الوالدین فطاعتهما واجب الخ !

ترجمه : که چیري مور اوپلارحق په جانب وي نوبیایې اطاعت ( امرمنل ) ضروري دی یعنی ښځې ته طلاق ورکول واجب دي.

### که مې چیري وساتلې نومورمې وساتله

که چیري داسي ووایې چې که مې چیري وساتلې نومورمې وساتله نوپه دې سره نه ظهارکیږي اونه طلاق واقع کیږي البته داسي کول لویه ګناه ده له دې څخه ځان ساتل پکاردي دظهارتفصیل په خپل ځای کې ان شاء الله تعالی راځي.



### دښځې مخامخ کېدل شرط نه دي

اول په دې خبره پوه سئ چې کله شریعت دطلاق استعمال ناخوښه بللی دی خو که چیري دطلاق اسباب اوعلل موجودسي نوبیاپه دې صورت کې اجازه هم دده اوډیرځله داسي هم کیږي چې خاوندطلاق ورکړي ښځه موجوده نه وي نودارازهم طلاق واقع کیږي هغه که رجعي وي یابائن یامغلظ واقع کیږي ،ځکه دطلاق دواقع کېدلپاره صرف محل یعنی ښځه درلودل شرط دی دهغې وجود یادهغې مخامخ کېدل شرط نه دی لهذادښځې په نه شتون کې هم ورکول سوی طلاق معتبراودنفاذقابل بلل کیږي.

### تاته طلاق ووایې درې لیکې وکاږي ۱۱۱

دامسئله مخکې هم تېره سوې ده چې تاته طلاق ووایې په دروګوتوسره اشاره وکړي اوووایې چې زمامراددرې وونودرې طلاقونه واقع کیږي لکه څرنګه چې دبحرالرائق ملا صاحب رحمه الله لیکلې دي:

انت طالق هکذا واشار بثلاث اصابع فهی ثلاث ( بحرص: ۲۸۲ج: ۲ )

داراز( تاته طلاق ) الفاظ ویل ،درې لیکې پرمځکه کښل اوووایې چې له دې درولیکوڅخه زمامرادطلاق دی نواوس یې پرښځې باندې درې طلاقونه واقع کیږي اوپرته له حلالې یې نکاح نه ورسره صحیح کیږي.

### طلاق یې ورکړ مګرعددیې هیرو و

که چیري یوسړی خپلې ښځې ته په غصه.کې طلاق ورکړي دغصې په حال کې خوطلاق واقع کیږي لکه څرنګه چې یې مخکې بحث تیرسومګرپه دې وخت کې یې عدد یادنه دی چې څومې ورکړی نواوس پرغالب ګمان حکم کیږي که یې چیري غالب ګمان درې وونودحلالې ضرورت دی اوکه یې چیري دیوه یادوویقین یاغالب ګمان وي نوپرخپل زړه دې اطمینان وکړي اوکوم عددچې یې په زړه کې راځي یووي یادوه په هغه دې عمل وکړي یعنی رجعي واقع کیږي رجوع کول کافي دي.

## طلاق مې درکړی وویامې درکړویل

طلاق مې درکړی وویامې درکړپه ویلو سره هم طلاق واقع کیږي که چیري داسي دري واره ووایې نودرې مغلظ طلاقونه واقع کیږي اوخالي دنکاح نوې کېدل بېله حلالې نه کافي کیږي دفقهاؤمشهوره قاعده ده: لان الانشاء فی الماضی انشاء فی الحال الخ (در مختار)

په ماضی کې انشاء انشاء په حال کې کیږي.

## ښځې ته په ګوته اشاره کول

که چیري ښځه دطلاق غوښتنه وکړي اوخاوند دطلاق ورکولو په نیت یابېله کوم نیت نه محض په دروګوتو سره اشاره وکړي په ژبه څه هم ونه وایې نوپه داسي کولو سره یوطلاق هم نه واقع کیږي که څه هم دخاوندنیت درې طلاقونه وي ،څکه چي دلته یواځي نیت کافي کیږي نه بلکي تلفظ (په ژبه ویل) هم شرط دي بلکي ضروري دي لکه څرنګه چي په قاضی خان کي دي:

امرأة قالت لزوجها طلقنی فاشار الیها بثلاثة اصابع ونوی به ثلاث تطلیقات لاتطلق مالم یلفظ به (ص: ۳۹۷ج:۲)

ترجمه: ښځې خاوندته وویل چي ماته طلاق راکړه هغه په جواب کې په دروګوتواشاره ورته وکړي په دې سره ددروطلاقونونیت وکړي نوترڅوپورې چي یې په ژبه طلاق نه وي ویلی نه واقع کیږي.

## دښځې نوم بدلول ، طلاق ورکول

که چیري دښځې نوم په قصدیاهېره سره بدل کړي اودزینب پرځای عمره نوم واخلي نوپه دې صورت کې قضاءً طلاق واقع کیږي البته په دیانة کې نه واقع کیږي.

سئل عمن اراد ان یقول زینب طالق فجری علی لسانه عمرة علی انهما الطلاق فقال فی القضاء تطلق التی سمی وفیما بینه وبین الله تعالی لاتطلق واحدة منهما کذا فی الشامی (ص: ۴۲۱ ج:۲).



ترجمه: که چیري یوسړی اراده وکړي چي په ژبه ووایې چي زینب ته طلاق مګرپرژبه یې دزینب پرځای عمره ته طلاق جاري سونوقضاء طلاق واقع کیږي مګردیانةً پریوه هم طلاق نه واقع کیږي.

## دښځې پرځای دخوښینې نوم اخستل

که چیري یوڅوک داحیله وکړي چي دښځې پرځای دخوښینې نوم واخلي ،طلاق ورکړي نوپرښځې بېې طلاق نه واقع کیږي.

## ته زمانښځه (نه یې) ویل

که چیري دښځې پرطلاق غوښتنه باندي خاوندووایې چي ته زمانښځه نه یې نوفقهاؤداجواب ورکول پرطلاق واقع کېدوحمل کړی دی اوپرته له نیت نه یې دیوه طلاق واقع کېدوحکم کړی دی لکه څرنګه چي په قاضی خان کې ددې تصریح ده: امرأة قالت لزوجها طلقنی فقال لست لی بامرأة قالوا هذا جواب یقع به الطلاق ولایحتاج الی النیة (قاضی ص: ۳۹۷ج:۱)

ترجمه: ښځه له خاوندڅخه دطلاق غوښتنه وکړي نوخاوندپه جواب کې ورته ووایې چي ته زمانښځه نه یې نوپه دې جواب سره طلاق واقع کیږي اودنیت ضرورت نسته.

## ته یوه یې ویل

که چیري ښځه دطلاق لپاره ووایې اوخاونددهغې په جواب کې (انت واحدة) ووایې نوپه دې سرهم بېله نیت نه یوطلاق واقع کیږي (قاضی خان ص: ۳۹۷ج: ۱)

## ته زماموربې ویل

ښځې ته که کوم سړی په غصه کې یاپه کوم بل حالت کې ووایې چي ته زماموربې نوپه دې سره طلاق نه واقع کیږي البته داسي ویل ډیره لویه ګناه ده داسي کول هیڅکله پکارنه دي په عالمګیری کې تصریح ده:

ولوقال لها انت امی لایکون مظاهرًا وینبغی ان یکون مکروها (ص: ۵۱۲ج:۲)

ترجمه: که چیري ښځې ته ووایې چې ته زماموربې نوپه دې سره ظهارنه راځي اونه په دې سره طلاق واقع کیږي خوداسي ویل بد دي.

په مبسوط کې دي: ان قال هذه امی الخ فهی امرأته ( ص: ۱۴۰ ج: ۲ )

په شامی درمختارکې هم داسي تصریح ده چې طلاق خونه واقع کیږي البته داسي ویل مناسب نه دي.

دارازښځې ته په ته زمالور، عمه ، خالا ویلوسره هم طلاق نه واقع کیږي په مبسوط کې دنه واقع کیدوتشریح ده : ولوقال لامرأته هذه ابنتی فهوصادق فی ذلک ولایقع علیهاشئ (ص: ۱۴۰ ج: ۲)

که چیري یوڅوک ووایې چې دازمالورده نوهغه په خپل قول کې رښتینی اوپرښځه یې هیڅ هم نه واقع کیږي.

وان قال هذه امی اوابنتی من نسب اورضاع اوقال هی عمی اوخالتی الخ فانه یسئل عن ذلک فان ثبت علیه فرق بینهما وان قال کذبت اوتوهمت فهی امرأته ( ص: ۱۴۰ ج: ۲)

ترجمه: اوکه چیري ووایې: چې دازمامور، یازماحقیقي یارضاعی لوریاعمه ،یاخالا ده نوپلټنه به کیږي که چیري ثابته سي نوددواړوپه مینځ کې به جلاوالی راولي لیکن که چیري خاوندووایې چې ماغلط ویل ماته هسي وهم راپېښ سوی وونودده ښځه ده.

## پرطلاق آمده یې ویل

دطلاق دواقع کېدولپاره اضافت ، انشاء اوایقاع طلاق هم ضروري دي په ( آماده یې ،یادلره طلاق درکوم ، دطلاق تیارکوم ، یاپه نژدې کې طلاق درکوم ، وغیره) جملویاپه داسي هره جمله چې په هغې کې دآئنده ( راتلوونکې ) معنی اووعده وي په ویلو طلاق نه واقع کیږي.
،ځکه په دې کې دطلاق واقع کېدل نه وي بلکې محض وعده ده اودطلاق دوعدې اعتبارنه کیږي بلکې داسي ویل لغودي لیکن که څه هم په داسي ویلوسره طلاق خونه واقع کیږي خومناسب هم نه دي.



لایقع الطلاق الابلفظ اودلیل قصدبه الانشاء ( بدائع ص: ۲۱۰۴ ج: ۲ )

ترجمه: طلاق په داسي لفظ یادلیل سره واقع کیږي په کوم سره چې انشاء (هغه شی کوم چې تراوسه لاپیدا سوی نه دی ) قصدسوې وي .

الاخبار بالطلاق والاقرار به لایکون طلاقاً الا اذاقصدبه الانشاء !

دطلاق په خبرورکولو یادهغه په اقرارکولوسره طلاق نه واقع کیږي ترڅوپورې چې دانشاء اراده نه وي ( مخکنی حواله )

## آیاخاموش (چوپ ) کېدل رضاده

که چیري یوسړی په یوکوم مجلس کې چاته داتلقین ( ښوونه ) کوي چې ستاښځه داسي ده همېشه تاپرېشانه کوي نوهغې ته طلاق ورکړه ، معامله صفاکړه اوهغه سړی چوپ وي ،هیڅ نه وایې نومحض په داسي چوپ کېدوسره طلاق نه واقع کیږي یا انجلۍ ته په مجلس کې یوهلک ووایې چې ستا خاوندتاته طلاق درکول غواړي ، قبول دې دی ؟ انجلۍ ووایې چې هواوهلک په دې مجلس کې چوپ وي خالي اورېدنه کوي ، هیڅ هم نه وایې ، نوپه دې سره هم طلاق نه واقع کیږي ،ځکه طلاق ورکول یانه ورکول دخاوندحق دی ، نوروته بې ځایه مداخله هیڅ اثرنلري اودخاوندچوپ کېدل رضامندي نه ده دفقهې په کتابونوکې ددې تشریح موجوده ده.

## دښځې په اړه داویل چې طلاق یې منلی

که چیري په غصه کې دیوپه سوال باندې یاپرته دچاله تعارض دښځې په اړه یوسړی ووایې چې طلاق یې منلی دی نوپه دې سره یورجعي طلاق واقع کیږي اوپه عده کې دننه رجوع ورته کولای سي.

## ښځې ته ویل چې ستازوئ ته زرطلاقه

که چیري خاونددښځې دطلاق غوښتلوپه جواب کې داسي ووایې چې ستازوئ ته زرطلاقونه دي په دې سره طلاق نه واقع کیږي ،ځکه خاوندمحتمل کلام کړی دی لکه څرنګه چې قاضی خان مسئله په داسي ډول بیان کړې ده:

امرأة قالت لزوجها طلقني ثلاثًا فقال الزوج: ابنك هزار طلاق لاتطلق امرأته لانه كلام محتمل ( ص: ۳۹۹ ج: ۱ ) ترجمه: ښځه خاوندته ووايې چي ماته درې طلاقونه راکړه ،خاوند په جواب کې ورته ووايې چي ستازوئ ته زرطلاقونه دي په دې سره پرښځې باندي طلاق نه واقع کیږي ،ځکه چي داکلام محتمل دی یعنی دنورومعنااو واحتمال هم پکي سته.

## دطلاق یوخاص صورت

که چیري یو سړی یوطلاق دوه طلاق بائن طلاق ووایې نوپه دې صورت کې که یې چیري په دریم لفظ ( بائن طلاق ) سره مرادجلا ددروطلاقونوورکولونیت نه وو بلکې دطلاق صفت بیانول یې مقصودوونودیانة یې دنیت تصدیق کیږي لیکن که چیري معامله کومې اسلامي درالقاضاء ته ورسیږي نوهلته ددروطلاقونودواقع کیدوحکم ورکول کیږي او ښځه مغلظه بائنه کیږي ،ځکه په قضاء کې دنیت هیڅ اعتبارنه کیږي په فتاوی عالمگیري کي دي:

رجل قال لامرأة طالق انت، طالق انت، بائن فقال عنيت بالاولى الطلاق والثانية والثالثة افهامها صدق ديانة وفي القضاء طلقت ثلاثًا ( عالمگیری ص: ۳۳۳ ج: ۱ )

ترجمه: که چیري خاوند خپلې ښځې ته ووایې چي تاته طلاق ، تاته طلاق ، بائن بیا ووایې چي له اولني څخه مرادطلاق دی دوهم اودریم دپوهاوي لپاره دی نودیانة یې تصدیق کیږي مګرپه قضاء کې ددروحکم پرکیږي.

## هندوستان ته طلاق

که چیري هندوستانی خپلې پاکستانی ښځې ته ووایې چي پاکستان ته طلاق یاهندوستان ته طلاق نوپه دې سره پرښځې باندي طلاق نه واقع کیږي په دې شرط چي حال دلالت پرونکړي یادطلاق مذاکره نه وي لکه څرنګه چي په بزازیه کې دي:

له امرأة هندية فقال هندوستان رادادم طلاق ولم يجرمايدل على ارادة لايقع ( بزازیه حاشیه هندیه ص: ۱۷۲ ج: ۱ )



## ښځې ته ویل چي ستاله ماسره نکاح نه ده سوې

که چیري یوسړی خواه په غصه کې یاپرته له غصې ووایې چي ستاله ماسره نکاح نه ده سوې اوپه واقع کې ددې خلاف وي یعنی نکاح سوې وي نوپه دې سره هم طلاق نه واقع کیږي لکه څرنګه چي په عالمګیري کې دنه واقع کېدوتصریح ده:

وان قال لم اتزوجك ونوى الطلاق لايقع كذافي البدائع ( عالمگیری مصری ص: ۳۱۰ ج: ۱ )

ترجمه: که چیري یوڅوک ووایې چي له ماسره ستانکاح نه ده سوې اومرادیې طلاق وي نوطلاق نه واقع کیږي.

## په زړه ،زړه کې دطلاق فکرکول

کوم سړی چي په زړه کې دطلاق فکرواخلي چي ماخپلې ښځې ته طلاق ورکړی اوپه ژبه هیڅ ونه وایي خبره محض په زړه کې وي یاپه زړه کې دائنده لپاره دا ووایې چي ضروربه طلاق ورکوم نودزړه په هیڅ عمل سره طلاق نه واقع کیږي ،ځکه چي ترڅوپورې یې چي په ژبه دطلاق اظهارنه وي کړی نودطلاق حکم نه کیږي لان مجرد النية في المعاملات غيرمعتبر ( بحرالرائق ص: ۵۸ ج: ۳ ) په معاملاتوکې صرف نیت داعتبارقابل نه دی.

## په زړه کې دافهمول چي طلاق واقع سو

که چیري داوفهموي چي ماپه زړه کې خوطلاق ورکړی دی لهذاطلاق واقع سودخلګوپه مخکې یادښځې په مخکې دهغه په ژبه تذکره وکړي چي ماخوخپلې ښځې ته طلاق ورکړیاتاته مې طلاق درکړی نوپه دارازخیالاتوسره طلا ق نه واقع کیږي ، البته که چیري دامعامله دارالقضاء ته ورسیږي نوهلته پراوهامواوګمانونوباندي اعتبارنه کیږي مګردخاونداقرارپه وجه سره قضاءً طلاق واقع کیږي البته دیانةً له ښځې سره دښځې اوخاوندمعامله جائزاوصحیح ده . لکه څرنګه چي په الاشباه والنظائرکې ددې اصل تشریح ده:

ولواقربطلاق زوجة ظانًا الوقوع بافتاء المفتي فتبين عدمه لم يقع ( مصری ص: ۱۹۴ )

ترجمه : که چیري دمفتی په فتوی باندي دښځې په طلاق اقرارپرګمان وکړي اوفتوی دهغه خلاف وخیژي نوطلاق نه واقع کیږي.

اوحموي دلم یقع پرحاشیه باندي لیکي چي : لم یقع ای دیانة اما قضاءً فیقع لاقراره به ( ص: ۱۹۴)

دیانة نه واقع کیږي قضاء داقرارپه وجه واقع کیږي.

اوکه چیري دښځې په مخکې داسي ووایي یاهغې ته په کومه معتبره ذریعه خبرورکول سي چي خاوند طلاق درکړی دی نوپه دې وخت کې دښځې حیثیت دقاضی کیږي یعنی طلاق واقع کیږي اودښځې لپاره داروادي چي هغه پخپله له نارینه سره واوسي کمافی تنقیح الحامدیة.

المرأة کالقاضی ومثله فی البحرو ردالمحتار الخ!

دا بحث مخکې په تفصیل سره تېرسوی دی.

په دې سره دامسئله هم معلومه سوه چي یوسړی خپلې ښځې ته طلاق ورکړ اوله کوم مفتی څخه دمسئلې پوښتنه وکړي دمسئلې ترمعلومېدومخکې یادسوی سړی په خپل ګمان سره دطلاق دواقع کېدو یادونه له خپلورشته داروياله کوم بل شخص سره وکړي په اتفاق سره دمفتی فتوی دنه واقع کېدووخیژي نودلته هم دقضاء اودیانت فرق کیږي.

دارازیومفتی فتوی ورکړي اوپه اتفاق سره هغه فتوی کوم لوئ مفتی ته ورسیږي ،غلطه ثابته سي نوپه داسي ځای کې هم دطلاق دواقع کېدوحکم نه کیږي که څه هم هغه ددې په ژبه سره دتېرلوپه مخکې تذکره کړې وي ( عزیز الفتاوی ص: ۲۹۰ ،باب الطلاق )

**ښځې ته ویل چي تاته اختیاردی چیري چي غواړې اوسه**

خاوند خپلې ښځې ته داسي ووایې چي تاته اختیاردی چیري چي غواړې اوسه په داسي صورت کې که یې چیري دطلاق نیت نه وي نوطلاق نه واقع کیږي اوازدواجي تعلقات پرخپل ځای پاتي دي.



**دخپلې انجلۍ طلاق له ماڅخه واخله**

په دې سره هم چي دخپلې انجلۍ طلاق زماله لورې واخله طلاق نه واقع کیږي دا الفاظ دطلاق پرواقع کېدوباندي دلالت نه کوي دارازکه چیري داسي ووایې چي له کوم بل چاسره نکاح وکړه نوهم طلاق نه واقع کیږي.

**ښځې ته (زمادلورپه څېرېې یازمادرضاعي خورپه څېرېې)ویل**

که چیري زیددغصې په حال کې دطلا ق په نیت خپلې ښځې ته ووایې چي ته زمادلورپه څېرېې یا له ماسره دتی رودوونکې په څېرېې نودزیدپرښځې باندي یوبائن طلاق واقع کیږي پرته له نکاح نوې کولوڅخه یې له هغې سره اوسېدل روانه دي.

**بل چاته دطلاق لپاره ویل**

کوم سړی بل چاته ووایې چي ته هغې ته ووایه چي تاته طلاق دی نوپه سمدستي توګه طلاق واقع کیږي دهغه دورته ویلوانتظارنه کیږي بلکې اوس خودهغه ورتلل ضروري هم نه دي ښېله ورته ویلوطلاق واقع کیږي لکه څرنګه چي په قاضی خان کې مسئله موجوده ده:

ولوقال لغیره قل لهاانهاطالق طلقت للحال ( قاضی خان ص: ۲۹۸ج: )

کوم بل چاته ووایې چي هغې ته ووایه چي تاته طلاق دی نوسمدستي طلاق واقع کیږي.

**درجعي طلاق یوبل صورت**

که چیري خاوندښځې ته ووایې چي تاته طلاق خودخنزیرلپاره حلال اوزمالپاره حرام نوپه داسي الفاظوسره طلاق رجعي واقع کیږي عوام خصوصًا بې تعلیمه خلګ په بې فکرۍ کې داسي قسم الفاظ په کثرت سره استعمالوي په دې سره طلاق واقع کیږي مګرداسي الفاظو استعمالول مناسب نه دي ،ځکه په دې کې دانسان لوئ توهین دی ،که چیري یې دطلاق ورکولواراده وي نوشریعت دهغه لپاره الفاظ اودادایني طریقې ښوولې دي ، صرف ( تاته طلاق دی ) هم کافي

وو. دارازخاوندووايې چي تاته داسي طلاق چي نه يې قاضي اونه يې عالم ردکړې وي نوپه دې سره رجعي واقع کيږي علامه شامي رحمه الله له فتاوى خيريه څخه نقل کوي . ليکي: وافتى في الخيرية بانه رجعي ان قوله وتحرمي على ان كان للحال فخالف الشروع لانها لاتحرم الا بعد انقضاء العدة وان كان للاستقبال فصحيح ولاينافي الرجعة وكذلك افتى بالرجعي في قولهم انت طالق لايردك قاضي ولاعالم الخ ( شامي ص: ۲۲۰ج:۲ )

ترجمه: په خيريه کې دي چي دارجعي طلاق دی ،ځکه چي له ( ته پرما حرامه يې ) څخه مرادحال وي نوصحيح نه دی ،ځکه هغه له عدې تيريدوروسته حراميږي اوکه چيري مراداستقبال وي نوصحيح دی اودرجعت منافی نه دی درازپه ( تاته داسي طلاق دکوم چي نه قاضي اونه عالم ردکړی وي ) سره رجعي طلاق واقع کيږي.

**دخط اوکتابت په ذريعه دطلاق حکم**

تراوسه پورې له بيان سويوخبروڅخه داخبره ښه واضحه سوه چي که چيري خاونددښځې په مخکې دطلاق دهغوالفاظوتذکره وکړي دکوموچي اوس يادونه وسوه نوپه لازمي توګه دهغوئ هغه حکم کيږي دکوم چي تقاضاکوي دیادسوي بحث په ضمن کې داخبره هم ذکرکيږي چي دخط اوکتابت په ذريعه هم طلاق معتبردی اودهغه نافذول بېله شکه کيږي ،ځکه په طلاق کې تلفظ اوتکلم شرط نه دی لکه څرنګه چي په مخکې کي هم دابحث تيرسوی دی لکه چي دبدائع الصنائع ملاصاحب رحمه الله ددې مسئلې ښه وضاحت کړی موصوف ليکي: وكذا التكلم بالطلاق ليس بشرط فيقع الطلاق بالكتابة المستبينة وبالاشارة المفهومة من الاخرس لان الكتابة المستبينة تقوم مقام اللفظ ( ص: ۱۷۹۲ج:۲ )

ترجمه: دارازدطلاق په لفظ سره تکلم دطلاق لپاره شرط نه دی لهذا په واضح تحرير( ليکلو ) سره اودګونګي په خلاصه اشاره سره هم واقع کيږي ،ځکه واضح تحريردلفظ پرځای ولاړدی.



،ځکه شرعًا دمکتوب هم هغه حکم دی کوم چي دملفوظ ( ويل سوي دی ) که څه هم په بعضی ځايونوکې ددوئ په مينځ کې دخصوصي اسبابوپه وجه سره اختلاف پيداکيږي خوپه مجموعي اعتبارسره شريعت کتابت هم معتبرکړی دی اوصرف دطلاق په معامله کې نه بلکي په نوروامورکې هم شريعت کتابت معتبربللی دی اودهغه حکم يې هم کړی دی لکه څرنګه چي په بيع ، شرا.قرض وغيره معاملوکې ددې نظيرموجوددی اوس هم موږپه دې ذيل کې دکتابت دطلاق دهغوصورتونوبيان کووکوم چي په شريعت کې معتبراودتوجه قابل وي البته کتابت ته هرځای شريعت بنيادي درجه نه ده ورکړې بلکي په بعضوځايونو کې وکالة معتبريږي اوپه بعضوځايونوکې اصالة لکه څرنګه چي داکراه ( زور ) په مسئله کې چي که چيري په يوسړي باندي په زورسره طلاق وليکل سي حال داچي هغه سړی پرطلاق ورکولوراضی نه وي اونه په ژبه کوم څه ووايي نوهلته دکتابت اعتبارنه کيږي اوطلاق نه واقع کيږي.

خوبعضی داسي ځايونه هم راځي چي هلته کتابت ضروري بلل سوی دی لکه دګونګي طلاق کله چي هغه په ليک کولای سي هلته صرف اشاره نه کافي کيږي بلکي کتابت اوتحريرضروري دي اوپه دې وخت کې تحريرمعتبريږي ددې وجې پربناددطلاق په معامله کې کتابت دلوئ اهميت حامل دی فقهاؤدهغه اهميت دفقهې په کتابونوکې دکتابت دطلاق په مستقل عنوان سره باب قائم کړی دی اوپرهغه باندي يې بحث کړی دی.

**دخط په ذريعه دطلاق خوصورتونه**

مخکې بحث تيرسوی دی چي دخط په ذريعه هم طلاق معتبريږي اودطلاق ټول صورتونه دخط په ذريعه هم واقع کيږي ،هغه که رجعي وي يابائن ياطلاق مغلظ وي البته دخطونونوعيت مختلف کيږي بعضي خطونه داسي هم وي چي په هغوئ کې محض ليکل کافي نه وي بلکي دطلاق دواقع کېدواونه واقع کېدومدارپرنيت باندي وي لکه څرنګه چي کوم شخص خط وليکي اوله

ليکلوڅخه يې اصلي مقصد طلاق ورکول نه وي اونه يې طلاق مستقل عنوان
وي بلکي دخط په ضمن کې يې دطلاق ذکرهم کړی وي په داسي صورت کې
دطلاق دواقع کېدولپاره دنيت ضرورت هم سته لکه چي په ردالمحتارکې ددې
تصريح ده.

وان كانت مستبينة لكنها غير مرسومة ان نوى الطلاق يقع والالا ( شامی ص: ۵۸۹ج:۲ )

که چيري خط واضح وي ليکن مرسوم ( علامه دار ) نه وي نو که نيت ورسره وي
بيا طلاق واقع کيږي کني نه واقع کيږي.

خو که چيري په خط کې دطلاق مستقل عنوان وي او خط بلکل واضح وي نو په
داسي صوزت کې دنيت ضرورت نسته لکه څرنګه چي واضح ده:

وان كانت مرسومة يقع الطلاق نوى اولم ينو ( شامی ص: ۵۸۹ج:۲ )

که چيري دطلاق عنوان وي نو دنيت او عدم نيت اعتبار نه کيږي.

دخط يو داصورت داهم دی کوم چي له هرقيد او بندڅخه آزادوي په دې صورت
کې دنيت هيڅ ضرورت نسته ،پرته له نيت نه طلاق واقع کيږي اوهغه داچي
دخط په شروع کې يې ليکلې وي چي تاته مې طلاق درکړی يا يو طلاق مې
درکړنو چي څرنګه چي خط پای ته ورسيږي په دې وخت طلاق واقع کيږي.

امان ارسل الطلاق بان كتب امابعد فانت طالق فكما كتب هذا يقع الطلاق ( شامی ص: ۲۸۹ج:۲
) ترجمه: که چيري په مراسله طلاق کې داوليکي چي امابعد تاته طلاق نو دخط
له پوره کولو سره طلاق واقع کيږي.

هو که چيري يې داطلاق په کوم شرط مشروط کړی وي نو بيا حکم بدليږي
مثلاً داشرط ولکوي چي کله داخطبه درورسيږي نو تاته طلاق نو په دې صورت
کې دښځي دطلاق واقع کېدولپاره دخط رسول ضروري دي چي کله وروروسيږي
نو طلاق واقع کيږي خواه ښځه يې ووايې يانه دخط ويل نه په دې کې ضروري
دي اونه په پورته مسئله کې بلکي پرته له ويلو طلاق واقع کيږي لهذا که چيري
په لارکي ډاګ ياد کوم قاصد په ذريعه خط روان کړي اوهغه ضائع سي او په هغه



کې دننه دطلاق وقوع پر وصولولو معلق وه نو په داسي صورتونو کې طلاق نه
واقع کيږي ،ځکه خط ښځي ته تررسېدومخکې ضائع سو لکه څرنګه چي يې
پوره تفصيل په خلاصة الفتاوى کې دی:

وان علق طلاقها بمجئ الكتاب بان كتب اذا جاءك كتابي فانت طالق فجاءها الكتاب فقرأته اولم تقرأ يقع الطلاق
كذا في الخلاصة ( شامی ص: ۵۸۹ج:۲ )

ترجمه: که چيري طلاق دخط پررسېدو باندي موقوف وي مثلا ليکلې يې وي
چي کله تاته زما خط ورسيږي نو تاته طلاق نو چي خط وروروسيږي دخط
ويلو او نه ويلو په دواړو صورتونو کې طلاق واقع کيږي.

يو صورت داهم دی چي دخط رسېدل دانجلۍ پر ځای دهغې پلارته وصولول وي
نو که چيري هغه ته ورسيږي هغه يې ووايې ،يا يې ونه وايې ټکري ،ټکري يې
کړي وي غورځوي ( که چيري دانجلۍ پلار داسي وي چي دانجلۍ په هره معامله
کې داخل وي دهغې پرمال او ځان قابض او متصرف وي ) نو په دې صورت کې
هم طلاق واقع کيږي ،ځکه په دې وخت کې پلارته دخط رسېدل داسي دي لکه
انجلۍ ته.

ولو وصل الى ابيها فمزقه ولم يدفعه اليها فان كان متصرفا في جميع امورها فوصل اليه في بلدها وقع وان لم يكن كذلك
فلا مالم يصل اليها ( شامی ص: ۵۸۹ج:۲ )

که چيري دهغه خط پلارته ورسيږي هغه يې څيري کړي او انجلۍ ته يې ونه
سپاري په داسي صورت کې چي پلار دانجلۍ په ټولو معاملاتو کې دخيل وي
اودهغې انجلۍ داوسېدو په ځای کې خط وروروسيږي نو طلاق واقع کيږي که
چيري دانجلۍ په ټولو معاملو کې داخل نه وي نو بيا نه واقع کيږي ترڅو پوري
چي خط انجلۍ ته رسېدلی نه وي.

که چيري پلار دخط درسېدو خبر انجلۍ ته ورکړي او څيري سوی خط هم هغې ته
وسپاري په داسي صورت کې که چيري خط داسي وي چي له څيرېدو سره ،سره
ويل کيږي مفهوم يې فهمول کيږي نو طلاق واقع کيږي او که چيري داسي څيري

وي چي هيڅ معنی يې نه فهميږي اوپه پوه کې نه راځي نوپه داسي صورت کې طلاق نه واقع کيږي علامه شامی رحمه الله دپوره مسائلوتشريح په دغو الفاظوکې کړې ده:

واخبرها بوصوله اليه ودفعه اليه ممزقًا ان امکن فهمه وقرآءته وقع والافلا ( شامی ص: ۵۸۹ج:۲ )

يوصورت داهم دی چي په خط کې دطلاق له يادولووروسته په اخيرکې هغه خراب کړي يابل چاته دخرابولوحکم وکړي نوپه دې دواړوصورتونوکې دخط په رسېدوسره طلاق واقع کيږي ،ځکه چي دطلاق دلفظ په ليکلوسره طلاق واقع سودښځې ويل شرط نه دي لکه څرنګه چي په تاتارخانيه کې موجوددي:

وفی التاتارخانية کتب فی قرطاس اذا اتاك کتابی هذا فانت طالق ثم نسخه فی آخر او امرغيره بنسخه الخ طلقت ثنتين قضاءً وان اقرانهما کتابا وفی الديانة تقع واحدة ( شامی ص: ۵۸۹ج:۲ )

ترجمه: پرکاغذوليکي چي زمادخط په رسېدوتاته طلاق دی بياهغه خراب کړي يابل چاته دخرابولوحکم وکړي نوقضاءً دوه طلاقونه واقع کيږي ، که چيري ددواړودکتابت اقرارکوي اوديانةً يوواقع کيږي.

اوکه چيري هغه سړی پخپله وليکي يا يې په بل چاوليکي اوکاتب ته داووايې چي زماښځې ته طلاق وليکه نودا اقرارمعتبريږي اوطلاق واقع کيږي.

ولوقال للکاتب اکتب طلاق امرأتی کان اقرارًا بالطلاق وان لم يکتب ( شامی ص:۵۰۱ج:۲ )

که چيري هغه کاتب ته ووايې چي زماښځې ته طلاق وليکه نودا اقراردطلاق زباني مماثل دی که يې چيري کاتب ونه ليکي نوهم طلاق واقع کيږي.

اوکه چيري کاتب ته ووايې چي وليکه هغه يې وليکي اودخاوندپه مخکې مضمون ووايې ورواېې ورويي هم اوخاونديې له هغه واخلي پرهغه باندي دګوتې نشان ولګوي يادستخط پروکړي نودادهغه پررضادلالت کوي چي هغه دطلاق ورکولوپه اراده داسي ويلې لهذاطلاق واقع کيږي په دې شرط چي خاونددااقرارهم وکړي چي داخط زمادی اوکه چيري انکاروکړي نوطلاق نه واقع کيږي.



ولواستکتب من آخر کتابًا بطلاقها وقرأه علی الزوج فاخذه الزوج وختمه وعنونه وبعث به اليها فاتاها وقع ان اقر الزوج انه کتابه ( شامی ص: ۵۸۹ج:۲ )

که په کوم بل چاطلاق وليکي هغه يې خاوندته ورواوروي خاونديې ځيني واخلي مهرپرولګوي ياتصديق دستخط پروکړي دطلاق عنوان پرخط ولګوي بيايې ښځې ته ورواستوي اوس که چيري خاونددخپل خط کېدواقراروکړي نوطلاق واقع کيږي ددې لپاره اقرارضروري دی.

داقرارفائده داده چي په تحريرکې دننه يکسانيت ( يورنګ والی ) کيږي په تحريرکې ترډيره حده پورې ملاوول کيږي ، له دې وجې اقرارکول ضروري دی چي په کومه دوکه کې ونه لويږي.

اقراردهرهغه خط لپاره ضروري دی کوم چي په خپل قلم سره ليکل سوی وي يايې په کوم بل چاليکلی وي يايې املاکړی وي ، په هرصورت کې دطلاق دواقع کېدولپاره ضروري دي چي اقراروکړي چي دازماخط دی يامادديې املاکړې ده اوکه چيري ددې اقرارنه کوي بلکې انکارکوي نوطلاق نه واقع کيږي.

هوکه چيري دخاوندپرانکارباندي بينه ( شاهدان ) قائم سي ، داثابته کړي چي داخط دده دی نوبيادده انکاردقبول وړنه دی ،طلاق واقع کيږي ، اوس دخاوند په انکارسره هيڅ فرق نه کيږي لکه څرنګه چي شامی ددې ښه وضاحت کړی دی:

وان لم يقر انه کتابه ولم تقم بينة لکنه وصف الامر علی وجهه لاتطلق قضاءً ولاديانة وکذاکل کتاب لم يکتبه بخطه ولم يمله بنفسه لايقع الطلاق مالم يقر انه کتابه ( شامی ص: ۵۸۹ج:۲ )

ترجمه : که چيري دخپل خط اقرارنه کوي ياپه دليل ثابت نکړل سي نومعامله خاوندته سپارل کيږي قضاءً طلاق واقع کيږي اوديانةً نه واقع کيږي دارازپه هرتحريرسره کوم چي په خپل قلم نه وي ليکل سوی يايې دهغه املاپخپله نه وي کړې ، طلاق پرته له اقرارڅخه نه واقع کيږي.

Scanned with CamScanner

## دانکاریوصورت

دانکارداصورت داعتبارونه دی چي په خط کې دطلاق دعنوان ترليکلو وروسته خاونددا ووايي چي ماد طلاق ورکولو په نيت نه دی ليکلی بلکي محض ددي اندازي دلګولولپاره مي ليکلی چي زماخط څرنګه کيږي نواوس داعذر دقبول وړنه دی بلکي طلاق واقع کيږي اوداخبره دتحريرپه دې صورت کي معتبريږي په کوم کې چي يې په صفاواوصريح الفاظوکي طلاق ليکلی وي په داسي صورت کې دنيت هم ضرورت نسته کني دمسئلې صورت بدليږي.

ولايحتاج الى النية فى المستبين المرسوم ولايصدق فى القضاء انه عنى تجربة الخط ( ردالمحتار )

په واضح اوښکاره خط کې دنيت ضرورت نسته قضاء داخبره نه منل کيږي چي هغه دخپل خط ياتحريرمشق ياتجربه کوله.

## دکتابت يوخاص صورت

دکتاب يوداصورت هم ممکن دی چي دکاغذپرځای پرکومه تخته يادېوال کوم داسي شی وليکي چي دهغه ويل اوفهمول آسانه وي اومفهوم يې واضح وي په داسي صورت کې دداسي ليکلوهم اعتبارکيږي اوطلاق واقع کيږي ،ځکه چي په کتابت کې اصل دمفهوم وضاحت دی اوهغه له کاغذپرته له دېواله وغيره څخه هم حاصليږي لکه څرنګه چي علامه ابن عابدين رحمه الله ليکي:

فالمستبينة مايكتب على الصحيفة والحائط والارض على وجه يمكن فهمه وقراته ( شامی ص: ۵۸۹ج: ۲ )

ترجمه: واضح کتابت پرکاغذ، مځکه دېوال باندي هم منل کيږي که چيري دهغه ويل اوفهمول ممکن وو.

هوکه چيري کتابت ياتحريرداسي وي چي نه ويل کيږي اونه له هغه څخه معنی فهمول کيږي نومخکي ذکرسوچي داسي کتابت قابل دقبول نه دی اوپه دې سره دطلاق دوقوع حکم نه کيږي لکه چي پراوبوباندي يې وليکي ياپې پرداسي شی وليکي چي معنی يې نه معلوميږي نوهغه کالعدم دی اوپه هغه سره طلاق نه



واقع کيږي لکه څرنګه چي دکتابت په تقسيم کې علامه شامی رحمه الله ليکي:

وغيرمستبينة مايكتب على الهواء والماء وشئ لايمكن فهمه وقرأته ففى غيرالمستبينة لايقع الطلاق وان نوى
( شامی ص: ۵۸۹ ج: ۲ )

ناواضح کتابت لکه پراوبواوهواباندي ياپرداسي شی باندي چي معنی يې نه معلوميږي په هغه سره طلاق نه واقع کيږي که يې څه هم نيت دطلاق کړی وي.

په داسي تحريرسره که يې نيت دطلاق هم وي بياهم طلاق نه واقع کيږي لکه څرنګه چي دشامی له عبارت څخه ښکاريږي.

## په کتابت کې داستثناء (بېلولو) حکم

که چيري يوسړی دطلاق لفظ وليکي ،په ژبه ان شاء الله تعالى ووايي ياپه ژبه دطلاق استعمال وکړي اوپه کتابت اوليک کې استثناء وکړي نوآياپه دواړو صورتونوکې طلاق واقع کيږي ؟کله چي استثناء موجوده وي ، علامه شامي رحمه الله ددې سوال په جواب کې دترددااظهارکړی دی اووايي: چي داسي روايت مي ترنظرنه دی تېرسوی البته ددواړوقسمونواستثناء صحيح کېدل پکاردي اوس دصحت مطلب دادی چي په دواړوصورتونوکې په يوه سره هم طلاق نه واقع کيږي لکه څرنګه چي له عبارت څخه همداښکاريږي:

وفى الهندية كتب الطلاق واستثنى بلسانه اوطلق بلسانه واستثنى بالكتابة هل يصح لاروایة لهذه المسئلة

وينبغى ان يصح كذافى الظهيرية ( شامی ص: ۵۹۰ج: ۲ )

ترجمه: طلاق وليکي ،په ژبه استثناء وکړي ياپه ژبه طلاق ووايي اوپه ليک سره استثناء وکړي نوپه داسي صورت کې کوم روايت مخي ته نه دی راغلی ليکن داستثناء صحيح کېدل مناسب معلوميږي.

## دغيرمدخول بهادطلاق حکم

تراوسه پوري چي کوم مسائل اومباحث ذکرسودهغوئ تولوتعلق له هغو ميرمنوسره ووکومي چي مدخول بهاوي وي اوس دلته دغيرمدخول بها څومسائلې ذکرکيږي غيرمدخول بهاهغوميرمنوته ويل کيږي کوموته چي له

خاوندسره له نکاح وروسته دکوروالي نوبت نه وي رسېدلی اونه يې له هغوئ سره خلوت صحيحه سوی وي دداسي ښځواحکام هم له مدخول بهاسره څه اندازه مختلف دي ، لکه څرنګه چي دمهر(ولور ) په معامله کې ددواړوحکم بېل ،بېل وویعنی که یوڅوک داسي ښځې ته طلاق ورکوي له کومې سره چي همبستري نه وي سوې یاموقع نه وي ورته برابره سوې اونه دخلوت صحيح موقع ورته مساعده سوې وي نونيم مهرلازمیږی ،پوره نه دارازدطلاق مسئلې يې هم څه اندازه مختلفې دي ( اوهغې ته طلاق ورکول هم صحيح دي ) بعض حضرات ددې غلط فهمی ښکارسوې دي چي داسي ښځې ته طلاق ورکول صحيح نه دي اوبعض داحال دی چي دايې هم دمدخول بهاپه حکم کې شاملې کړې دي حال داچي ددواړوپه احکامواوحقوقوکې په کافي اندازه فرق سته ، ،څکه دمدخول بهاپه حق کې یوطلاق صريح رجعی بلل کيږي مګرغيرمدخول بهاپه یوه طلاق سره بائنه کيږي ، هغې ته دزیاتوطلاقونودورکولوضرورت نه وي اودهغې په حق کې درجعی طلاق هیڅ سوال نه پیداکيږي همداوجه ده چي یوطلاق دغير مدخول بهاپه حق کې دبائن طلاق په حکم کي دی هودرې هم واقع کيږي که چیري درې جلا ،جلا طلاقونه ورکول سي نودرې واقع کيږي لکه څرنګه چي ددې حکم لاندي په تفصيل سره راځي.

## دغيرمدخول بهالپاره ددروطلاقونوحکم

داسي ښځې ته له کومې سره چي له نکاح وروسته تراوسه پوري دوطی وارنه وې راغلی اونه خلوت صحيحه ورسره سوی وي درې طلاقونه په یوه وخت و..کړی نوهغه واقع کيږي لکه څرنګه چي په درمختارکې په صراحت سره ليکلې دي: قال لزوجته غيرالمدخول بهاانت طالق ثلاثًا وقعن لماتقرر انه متى ذكرالعددكان الوقوع به ( شامی ص: ۲۲۵ج: ۲ )

ترجمه : خپلې غيرمدخول بهاښځې تهووايې چي تاته درې طلاقه نودرې سره واقع کيږي. ځکه چي دعددله ذکرسره احکام دعددهم جاري کيږي.



پردې باندي علامه ابن عابدين رحمه الله له فتح القديرڅخه نقل کوي چي ددروطلاقونودنه واقع کېدوقائلين دارازوايي:

وفى الفتح وبه اندفع قول الحسن البصرى وعطاء وجابربن زيدانه يقع عليها واحدة الخ ونص محمدرحمه الله قال اذاطلق الرجل امرأته ثلاثاجميعافقدخالف السنة واثم وان دخل بهااولم يدخل سواء بلغناذلك عن رسول الله صلى الله عليه وسلم وعن على رضى الله عنه وابن مسعودرضى الله عنه وابن عباس رضى الله عنهما وغيرهم رضوان الله عليهم اجمعين ( شامی ص: ۲۳۵ج: ۲ )

په دې سره دحسن بصری ، عطاء ،جابربن زيدرحمهم الله دارازدفقهاؤهغه خبره رديږي چي په دې سره یوطلاق واقع کيږي اوامام محمدرحمه الله ښکاره ويلې دي چي کله خاوندخپلې ښځې ته درې طلاقونه ورکړي نودسنت دمخالفت اوګناه مرتکب سوخواه له ښځې سره يې جماع کړې وي ،یانه ددواړويو حکم دی همداخبره له رسول صلی الله عليه وسلم ، ،علی ، ابن مسعود، اوابن عباس رضی الله عنهم څخه معلومه سوې ده.

دمذکوره لاندواووجوپه رڼاکې داخبره واضح کيږي چي کوم حضرات ديوه طلاق دواقع کېدوقائل دي دهغوئ رأيه صحيح نه ده ، اودهغوئ مسلک داجماع دمخالفت له وجې داعتبارقابل نه ده اوس موږ دغيرمدخول بهادحلالې خبره کوو ،څکه چي پردې موقع باندي لويو ،لويوحضراتولغزکړی دی هغه دخپل مطلق اجتهادپربنيادباندي پرغلطه لاره روان دي اونن .صبا روښن خيال حضرات هم پردې خبره زورکوي چي له کومې ښځې سره وطی نه وي سوې دهغې دحلالې څه سوال پيداکيږي.

مخکې موږ دحلالې پرمشروعيت باندي کافي بحث کړی ، اوهغه موپه پوره توګه په نقلي اوعقلي دلائلوسره ثابته کړې ده چي له حلالې څخه صرف درحم پاکوالی اوساتنه دنطفې مقصودنه ده په دې کې دننه دخاوندغيرت اوحميت ته هم چېلنج ورکول کيږي اودهغه دحماقت سزاهم ده لهذاکوم حضرات چي داقسم خبرې کوي هغوئ دعلم په اعتبارکوره دي ، په عقلي اعتبارسره هم پاخه اوفهم

رسيدوونکي نه معلوميږي داصحيح ده چي په غيرمدخول بهاکي وطي نه دي راغلي مکردحلالي علت په پوره توکه ثابت دی علامه ابن الهمام رحمه الله پردي ښه بحث کړی دی اودهغوحضراتويې ښه په زوررد کړی دی کوم چي پرته له حلالي نکاح جائزه بولي علامه شامی رحمه الله دموصوف بيان داسي قلمبند کړی دی:

وقد بالغ ابن الهمام في رده حيث قال في آخر باب الرجعة لافرق في ذلك اى اشتراط المحلل بين كون المطلقة مدخولا بها اولا الصريح اطلاق النص وقد وقع في بعض الكتب ان غير المدخول بها تحل بلازوج وهوزلة عظيمة مصادمة للنص والاجماع لايحل لمسلم راه ان يعقله فضلا عن ان يعتبره لان في نقله اشاعته وعند ذلك يتفتح باب الشيطان في تخفيف الامرفيه ولايخفى ان امثلة ممالايسوغ الاجتهاد فيه لفوات شرطه من عدم مخالفة الكتاب والاجماع نعوذ بالله تعالى من الزيغ والضلال والامرفيه من ضروريات الدين لايبعد اكفار مخالفه ( شامی مطبع عثمانيه ص: ٢٢٥ج:٢ )

ترجمه: ابن همام رحمه الله ددي خبرې په سختۍ سره ترديد کړی دی ،څرنګه چي درجعت په اخيرکې ليکي: چي ښځه که مدخوله وي ياغيرمدخوله ددواړولپاره دحلالي په شرط کېدوکې هيڅ فرق نسته ،ځکه چي نص مطلق دی په بعض کتابونوکې چي کوم داليکلي چي غيرمدخوله پرته له حلالي په نکاح کي راځي داصريح ښوييدل دي کوم چي دنص اواجماع ماتول دي هيڅ مسلمان ته دداسي خبرې کول ښايي نه پرځای ددې چي معتبره دي کړي په دې کې داجتهاداجازه نسته ،ځکه په داسي اجتهادکې دکتاب الله اواجماع له مخالفت څخه ځان ساتنه مشکله ده الله تعالی دې له داسي ګمراهۍ اوکج روۍ څخه موږ وساتي ، په داسي خبروکې سختي کول ددين له ضرورياتو څخه دي ددې دمخالف کافر کېدل هم ليري نه دي.

علامه شامی رحمه الله له مذکوره بيان څخه پرغيرمدخول بهاباندي ښه رڼا اچولې ده اوددلائلوپه زوريې ددې خبرې اثبات کړی دی چي دداسي بې ځايه جرأت پرکوونکې باندي دکفرفتوی هم لګېدای سي ،ځکه ددې لپاره خويوازي



دنص ترديدکافی وو خوله احاديثواواجماع امت څخه هم دهغوئ ترديددهغوئ اشاعت لره زيات واضح کوونکې دي ،ځکه چي حلاله شرعی حکم دی اوعقلي مصالح داخبره ښکاره کوي چي دغيرمدخول بهالپاره هم حلاله کول ضروري دي اوپه کې دې دشريعت تحفظ دی.

## په جلا ،جلا توګه ددرېيوطلاقونوحکم

که چيري ښځه غيرمدخوله وه اوپه جلا ،جلالفظونوکې درې طلاقونه ورکړي نوپه دې صورت کي حکم دادی چي د داسي جلا ،جلا طلاق ورکولوپه وجه سره ښځه په اول طلاق بائنه وګرځېده اوپاته دوه طلاقونه لغوکيږي ليکن که چيري درې طلاقونه په يوه لفظ سره ورکړي لکه چي داسي ووايې: انت طالق ثلاثًا ! نوددې حکم بدل دی اودرې سره طلاقونه واقع کيږي دجلا ،جلا مثال دادی: چي تاته يوطلاق ،دوه طلاقه ، درې طلاقه ، په يوه لفظ سره دطلاق ورکولوپه هکله په شامی کې تصريح ده:

لوقال لغيرالمدخول بها انت طالق ثلاثًا طلقت ثلاثًا ( شامی ص: ٢٢٧ج:٢ )

ترجمه: که چيري غيرمدخول بهاته داسي ووايې چي تاته درې طلاقونه نودرې واقع کيږي.

په درمختارکې دمتفرق (جلا ، جلا ) تصريح:

وان فرق بوصف اوخبراوجمل اوغيره (بانت بالاولى لاالى عدة) درمختار!

که له وصف ، خبر، جملي ،عطف اوبل کوم اندازپرته متفرق طلاق ورکړي نوپه اول طلاق سره ښځه بائنه ګرځي په دې کې دعددهيڅ ضرورت نسته.

دارازکه چيري خاوند داسي ووايې چيّ تاته په جلا ،جلا توګه درې طلاقونه نوهم ښځه په يوه طلاق بائنه سوه اوباقي پاتي دوه طلاقونه لغوکيږي لکه څرنګه چي په درمختارکې دي: وكذاانت طالق ثلاثًا متفرقات تقع واحدة ( شامی ص: ٢٢٢ج:٢ )

ترجمه: دارازپه تاته په جلا ،جلاتوګه درې طلاقونه ويلوسره يوواقع کيږي.

### دښځې نوم اخستل ،درې طلاقونه ورکول

که چیرې خاوند دخپلې ښځې نوم واخلي ووایې : انت طالق یافاطمة یازینب ثلاثا وقعن ( شامی ص: ۲۲۷ج:۲ )

هو په اصل کې بحث دمتصل عدد دی په طلاق کې دمتصل عدد اعتبار کیږي که چیرې دعدد او معدود په مینځ کې کوم قسم فصل (جلاوالی ) وکړي نو دغه عدد اعتبار نه کیږي لکه څرنګه چې ددرمختار له عبارت څخه همداسې ښکاري:

والطلاق یقع بعدد قرن به لابه نفسه عند ذکر العدد (در مختار)

ترجمه : طلاق په داسې عدد سره واقع کیږي کوم چې له معدود سره متصل (پیوست ) وي صرف دعدد په ذکر سره طلاق نه واقع کیږي ، مګر په اول کې د دننه بې چونکه دزینب یافاطمه پخپله دښځې نوم اخستی دی او دصریح اضافت قائم مقام دی له دې وجې فقهاؤ نامه ته فصل نه دی ویلې بلکې ددرو طلاقونو واقع کېدو حکم یې کړی دی په خلاف دخاونددې قول ( انت طالق اشهدوا ثلاثا فواحدة ) یعنی تاته طلاق خلګ دې شاهد وي نو له دروڅخه یو واقع کیږي ،ځکه په دې صورت کې په شهداء سره دفصل ( جلاوالی ) دقابل اعتبار کېدو په وجه عدد لغو وبلل سوا و په انت طالق سره یو بائن طلاق واقع سو.

### دکنایاتو بحث

دطلاق صریح او دغه دټول بحث له فارغیدو وروسته دکنایاتو بحث شروع کیږي دطلاق په بحث کې دصریح طلاق ډیر اهمیت دی ،ځکه دخپل صراحت او وضاحت په وجه دطلاق په مسائلو کې کافي واضح دی له دې وجې دپوره باب مغز صریح طلاق دی.

یادساتئ چې کنات دزندګی په هرباب کې داهمیت درلودونکې دي دطلاق په باب کې خوبیادهغوئ له اهمیت څخه څرنګه انکاروسي ؟ لکه چې فقهاؤ کنایاتو ته هم لوئ اهم مقام ورکړی دی او دغه هرجزء او کل یې په ډیر احتیاط او اهتمام سره بیان کړی دی پرپوره بحث له نظر کولو وروسته داویل بې



ځایه نه دي چې دطلاق په باب کې کنایاتو ته پرنورو ټولوبابونو زیات اهمیت او فوقیت حاصل دی لکه څرنګه چې دبیان له طرز څخه معلومیږي.

### یو ځو ضروري خبرې

دکنایې طلاق تر وضاحت مخکې مو ډیر ضروري وبلل چې ستاسو په مخکې له دغه باب سره تړلې یو ځو ضروري خبرې دقانون په توګه ذکر کړو ، ددې لپاره چې دراتلوونکو مباحثو په پوهېدو کې سختي مخې ته رانسي اوله خبره داعرض کیږي چې په کنایه کې دننه دطلاق دواقع کېدو لپاره نیت شرط دی که څه هم په بعضې ځایونو کې له نیت پرته هم دالفاظو دصراحت یادعرف ددلالت له وجې طلاق محقق ( ثابتیږي ) بیاهم دطلاق نیت ته په دې باب کې بنیادي حیثیت حاصل دی.لکه څرنګه چې ددې تائید له حدیث شریف څخه کیږي ،ځکه چې کنایه له خپل مستور المعنی (دمعنی له پټیدو ) سره غیرمتعین هم ده لهذا ددې دوضاحت او معنی دتعین لپاره دنیت کول ضروري دي ، اوله دې وجې هم چې دالفاظ کنایه معنی او مراد مختلف احتمالات لري بیادمتکلم دمراد او منشاء کلام په یورخ کې راوړل او دغه دصحیح اړخ دمعلومولو لپاره هم دنیت کېدل ضروري دي ددې لپاره چې معلومه سي چې دمتکلم له دغه لفظ څخه څه مراد دي ؟ پردې باندې دبحرالرائق دملاصاحب رحمه الله تحقیق دادی:

لاتطلق بالکنایات الابنیة اودلالة الحال ، ای لاتطلق بالکنایات قضاء الاباحدی هذین لانها غیرموضوعة للطلاق (ص: ۲۹۸ج:۳ )

ترجمه: په کنایاتو سره طلاق نه واقع کیږي مګر په نیت اودلالت حال سره یعنی قضاء طلاق نه واقع کیږي مګر په دغو دواړو کې له هریوه څخه طلاق ممکن دی له دې وجې چې کنایات دطلاق لپاره وضع سوې نه دي.

دبدائع ملا صاحب رحمه الله لیکي:

ولاخلاف انه لایقع الطلاق بشيء من الفاظ الکنایات الابنیة ( بدائع ص: ۱۸۰ج:۴ )

دامتفق علیه مسئله ده چي په الفاظ کنایه سره پرته له نیت نه طلاق نه واقع کیږي.

## دکنایه حکم

دالفاظو په حقیقت باندي له پوهېدو وروسته دهغوئ پرحکم باندي په غورکولو سره معلومیږي چي په الفاظ کنایه سره یوبائن طلاق واقع کیږي اوکه چیري ددروطلاقونو نیت وکړي نودرې هم واقع کیږي لکه څرنګه چي محقق ابن نجیم مصری په خپل مشهورکتاب بحرالرائق کي لیکلي دي:

اي في غيرالالفاظ ومافي معناها تقع واحدة بائنة اوثلاث بالنية ولاتصح نية الثنتين ( بحرص: ۳۰۰ج: ۳ )

له دروالفاظو یاکوم چي ددې دروپه معنی وي له دې پرته په کنایاتوسره یوبائن طلاق واقع کیږي اوددروپه نیت سره درې ، ددوونیت نه صحیح کیږي لغوه دی.

په یوه بل ځای کي لیکي:

الحاصل ان الكنايات كلهاتصح فيهانية الثلاث ( ص: ۳۰۰ج: ۳ )

خلاصه داچي په ټولوکنایاتوکي ددرونیت صحیح دی.

دکنایه چي څومره الفاظ دي په هغوئ کي چي دطلاق له معنی سره ، سره کوم چي دطلاق لپاره وضع سوي دي له طلاق پرته دبلي معنی احتمال هم سته همداوجه ده چي دالفاظو له استعمالوونکي څخه دهغه دنیت په باره کي هم پوښتنه کیږي چي له دې څخه دهغه مراد څه وو که چیري یې مراد دطلاق نیت وي نودطلاق معنی متعین کیږي اوکه چیري هغه وایي چي زمانیت طلاق نه وو نوطلاق نه واقع کیږي.

مګربعض الفاظ کنایه حکم په بعضی حالاتوکي بدلیږي اوپرته له نیت نه هم دطلاق حکم کیږي لکه څرنګه به چي له راتلوونکوتفصیلاتوڅخه معلومه سي.

له تحقیق اوپلټنې وروسته ابتداء دوه صورتونه دي یوصورت خوهغه دی دکوم چي الفاظ متعین دي که چیري یې دغوالفاظ استعمال وکړنودې ته کنایه ویل کیږي دوهم صورت دادی چي الفاظ خومتعین نه وي خوداسي معنی ځیني



پیداکیږي چي که چیري یې استعمالوونکی دطلاق په نیت ووایي نوطلاق واقع کیږي دبدائع ملا صاحب رحمه الله پردې باندي ښه بحث کړی موصوف لیکي:

اماالنوع الاول فهوكل لفظ مستعمل في الطلاق ويستعمل في غيره نحوقوله انت بائن ،انت على حرام ، برية ،بتة ، امرك بيدك ، اختارى ، اعتدى ، استبرى رحمك ، انت واحدة خليت سبيلك ، سرحتك ،حبلك على غاربك ،فارقتك ، خالعتك ولم يذكرالعوض ، لاسبيل عليك ، لاملك لى عليك ، لانكاح لى عليك ، انت حرة ،قومي ، اخرجي ،اعزبي ، انطلقي ، انتقلي ، تقنعي ،استترى ،تزوجي ابتغي الازواج ، الحقي الاهل ، ونحوذلك هذاالنوع من الالفاظ الكنايات لان الكناية في اللغة اسم لفظ استترالمراد منه عندالسامع وهذه الالفاظ مستترالمرادعندالسامع !

( بدائع ص: ۱۸۰۳ج: ۴ )

داهغه الفاظ دي له کوم څخه چي تعبیرپه کنایه کیږي اوپه دې ټولوالفاظوسره بائن طلاق واقع کیږي څرنګه چي په هریوه کي دننه له طلاق سره ، سره دبلي معنی احتمال هم سته له دې وجې نودصحیح مرادتعین دمتکلم پرنیت باندي موقوف دی اوپرته دنیت له تعین نه هیڅ فیصله نه کیږي.

## دمختلف الاحتمال مثال

څرنګه چي په الفاظ کنایه کي له طلاق پرته هم احتمال سته له دې وجې نودطلاق دواقع کیدولپاره نیت ضروري بلل سوی دی مثلا دبائن معنی جلاوالی دی نواوس له نکاح څخه جلاوالی هم مرادیږي اوله خیراوشرڅخه جلاوالی هم مرادیږي لهذااول الذکرپرنیت باندي دطلاق حکم کیږي اوپرته له نیت څخه دبلي معنی احتمال هم ثاتیږي دبدائع ملا صاحب فرمایلي دي:

فان قوله بائن يحتمل البينونة عن النكاح ويحتمل البينونة عن الخيروالشر وحرام يحتمل حرمة الاستمتاع ويحتمل حرمة البيع والقتل والاكل ونحوذلك ( ص: ۱۸۰۳ج: ۴ )

## دنیت ضرورت

دبدائع ملاصاحب رحمه الله وایي: چي څرنګه په کنایه کي مقصدواضح نه دی بلکي پټ دی له دې وجې نودنیت اړتیاسته:

واذااحتملت هذه الالفاظ الطلاق وغيرالطلاق فقداستترالمرادمنهاعندالسامع فافتقرت الى النية لتعين المراد!

( ص: ۱۸۰۵ایضا )

## داما‌م شافعي رحمه الله اختلاف

په دې کنایه الفاظوکې له دوئ څخه صرف درې الفاظ داسي دي په کوموکي چي امام شافعي رحمه الله دبائن طلاق پرځای صریح وایې اوپه پاتي نوروټولو الفاظوکي اتفاق دی دبدائع ملاصاحب دغه درې الفاظ راښيې اووایې:

ولاخلاف في هذه الجملة الا في ثلثة وهي قوله سرحتك وفارقتك وانت واحدة فقال اصحابنا قوله سرحتك وفارقتك من الكنايات لايقع الطلاق بهما الا بالنية كسائر الكنايات وقال الشافعي رحمه الله هما صريحان لايفتقران الى النية كسائرالالفاظ الصريحة بدائع ايضا.

دارازامام شافعي رحمه الله انت واحدة دطلاق په باب کې نه شاملوي اوزموږ په نزد داهم دکنایه په څیردی .

## ددلالت حال بحث

دکنایاتوپه باب کې ددلالت حال هم لوئ اهمت دی که څه هم دکنایاتوپه الفاظوکي نیت ضروري دی مګرپه دلالت حال سره هم دطلاق فیصله کیږي ګواکي دلالت حال دنیت قائم مقام دی ددلالت حال خلاصه داده چي دغه الفاظ کنایه دخاونداوښځي په مینځ کې په داسي حال کې استعمال کړل سي چي په هغه حال کې له طلاق پرته بله هیڅ معنی نه مرادیږي ،ځکه په دې وخت کې پرحال باندي فیصله کیږي په داسي موقع کې که چیري خاوند دطلاق له نیت نه انکاروکړي نودهغه انکاردقبول ورنه دی ،ځکه دنیت معامله پټه ده کومه چي له دلالت حال څخه فروترده البته دلالت حال یوه ظاهري علامه ده په هغه سره ددې خبرې فیصله په اسانۍ سره کیږي ددلالت حال په وضاحت کولوکې دبحرالرائق ملاصاحب لیکي:

لاتطلق بها الا بالنية او دلالة الحال، لاتطلق بالکنايات قضاءً الا باحدی هذين لانها غيرموضوعة للطلاق !



( بحرص: ۲۹۸ج: ۳ )

په دې پسې لیکي: المراد بدلالة الحال الحالة الظاهرة المفيدة المقصودة ( ص: ۲۹۸ج: ۲ )

په درمختارکې دي: لان مع الدلالة لايصدق قضاءً في نفي النية لانها اقوى لكونها ظاهرة والنية باطنة!

( شامی ص: ۲۴۱ج: ۲ )

## ددلالت حال تقسیم

حالات پردرې قسمه دي ، یوخوعام معتدل حال دی ،دوهم دغصې اوغضب ، دریيم دطلاق دتذکرې ( یادوني ) حال دطلاق په معامله کې ددلالت حال اطلاق صرف پردوهم اودریيم باندي کیږي پراول نه کیږي بیاپه دې کې لکه څرنګه چي په کنایاتوکې داسې الفاظ سته په کوموکې چي دپوچ ویلواوښکنځلواحتمال سته لهذادلته صرف دغضب اوغصې په حال کې په دغوالفاظوسره دلالت پرطلاق نه راځي هوکه خارجي احتمال نه وي نوبیادطلاق حکم کیږي ددلالت حال په هکله په شامي کې دي: الغضب والمذاکرة (ص: ۲۴۱ج: ۲ )

والدلالة مذاکرة الطلاق والغضب ( ص: ۳۱۱ج ۳ )

## دحالاتوتفصیل

### ـــ ۱ : درضاحالت

په دې حال کې که خاوندچیرې الفاظ کنایات استعمال کړي نوپه دې کې نیت ضروري بلل سوی دی پرته له نیت نه دطلاق وقوع نه راځي په درمختارکې دي:

ففي حالة الرضاء ای غيرالغضب والمذاکرة تتوقف الاقسام على نية ( ص: ۲۴۰ج: ۲ )

### ـــ ۲ : دغضب (خواشینی )حالت

په دې حال کې که خاوندکنایات استعمال کړي نوتفصیل دادی چي که خاونداومېرمن دواړه دغصې په حالت کې وي پرهغه باندي ښځه غصه وکړي وایې چي ښه دی ما پرېږده ، یاطلاق راکړه ، یاددې په څیرکومه بله خبره وکړي اوپه غصه کې خاوندورته ووایي چي ته مې پرې اینښې یې څه وغیره ، اخرجی ،اذهبی ، نوویل سوې دي چي پرته له نیت څخه طلاق نه واقع کیږي ،ځکه

دغصې په حال کې دطلاق له احتمال سره ،سره دبنکنځلواوبدو ،ردوويلوهم قوي احتمال سته لهذاله نيت پرته دمراد معلومېدل ممکن نه دي لکه څرنګه چې له نقشې څخه به ظاهرسي.

**۳ـ دمذاکرې ( دطلاق يادونې ) حالت**

دېيم حالت دطلاق دمذاکرې دی تفصيل يې دادی چې دخاونداوښځې په مينځ کې دطلاق يادونه کيږي اوپرداسې موقع باندې خاوندد کنايه الفاظ ووايې نوپه دې سره هم پرته له نيت څخه طلاق نه واقع کيږي.

**دالفاظوقسمونه**

اوس دحالاتوله تفصيل وروسته دالفاظ کنايه تفصيل اوتقسيم هم وګورئ ، الفاظ کنايه هم پردرې قسمه دي ، دلاندې نقشې له په غورکتلووروسته درې سره حالات سره له حکم ښکاريږي.

| د حالاتو نوعيت | رد وجواب | سبب وجواب | صرف جواب |
|---|---|---|---|
| درضا حالت | اخرجي ،قومي ،وغيره نمبر-۱ نيت ضروري | خلية ،برية وغيره نمبر-۲ نيت ضروري | اعتدی ،استبری رحمک واحدة نيت ضروري |
| دغضب حالت | نيت ضروري | نيت ضروري | پرته له نيت نه وقوع |
| دمذاکره حالت | طلاق نيت ضروري دی | پرته له نيت نه وقوع | وقوع پرته له نيت نه |



(۱) اخرجي ، قومي ، اعربي ، انطلقي ، تقنعي ، تخمري ، استتري ، انتقلي ، تزوجي ، ابتغي الازواج ، الحقني باهلک ، الخ ، داهغه الفاظ دي په کوموکې چې په درېٍ سره حالاتوکې نيت ضروري دی لکه څرنګه چې له نقشې څخه ښکاريږي.

(۲) انت بائن ، علی حرام ، خلية ،برية ،امرک بيدک ، داهغه الفاظ دی په کوموکې چې دحالت رضااوغضب په وخت کې نيت ضروری دی البته دمذاکره طلاق په وخت کې پرته له نيت څخه طلاق واقع کيږي.

**يوه شبه اودهغې جواب**

دلته يوه شبه پيداکيږي چې الفاظ کنايه دنيت تقاضاکوي اوپرته له نيت څخه طلاق نه په واقع کيږي نوخالی دمجلس په اختلاف سره په الفاظ کنايه کې ولې اختلاف پيداکيږي ؟چې په بعضې ځايونوکې پرته له نيت څخه طلاق واقع کيږي ( لکه څرنګه چې دکنايه له نقشې څخه ښکاري ) دد دې لنډغوندې جواب دادی چې په کناياتوکې دننه دطلاق اوعدم طلاق دواړواحتمال مساوي سته اوهغه بل جانب ته ترجيح ورکول ګواکې دطلاق دواقع کيدولپاره بنيادې علت داحتمال اوابهام ختم کول دي لهذاخبره صفاسوه چې داعلت هغه وخت راځي چې دمعلول ( وقوع طلاق ) وجوديقيني سي اوڅرنګه چې بعض مجلسونه په کوموکې چې مذاکره دطلاق يابعض کنايه الفاظ داسې دي چې محض دمجلس په بدليدوسره په هغه کې دننه داصلاحيت پيداکيږي چې هغه دنيت پرځای ودريږي لهذانوهلته نفس مجلس ياهغه الفاظ کوم چې په مجلس کې استعمال سوې وي دطلاق دواقع کېدولپاره کافي بلل کيږي ،دنيت ضرورت نه پاتيږي ، غرض داچې که چيرې دطلاق دواقع کېدواونه واقع کيدوپرعلت باندې غوروسي نودشبهې ګنجائش هم نه پاتې کيږي اومسئله روښانه مخې ته راځي.

**دځونوروکناياتوتصريح**

دکنایه دبحث په لمن کي محقق علاء الدین صاحب بدائع څونورالفاظ ذکرکړي دي : که چیري ددغوالفاظوداستعمالوونکي نیت دطلاق ورکولووي نوطلاق واقع کیږي کنی نه ، علامه موصوف ددریم قسم په لمن کې په کوم کې چي نیت ضروري دی لیکي:

وکذلک لوقال وهبتک لاهلک الخ وکذا اذاقال وهبتک لابیک اولامک اولازواجک ( ص: ۱۸۰۸ج: ۴)

ترجمه: ماته خپل اهل ته بخښلې یې ، یامې ته خپل پلار، موریابل خاوندته بخښلې یې.

اوس ددې پوره تفصیل په بحرالرائق کي وګورئ: له یادوسویوالفاظوڅخه که چیري دطلاق نیت وي نوطلاق واقع کیږي کنې نه واقع کیږي دارازبعضی الفاظ داسي دي چي دهغوئ په استعمال سره طلاق نه واقع کیږي که یې څه هم دطلاق نیت کړی هم وي ،ځکه عادة دهغوئ استعمال له طلاق پرته په غیرکې وي لکه چي دبحرملاصاحب تحقیق کړی دی موصوف لیکلي دي:

وخرج عنه مالوقال وهبتک لاجانب فانه لیس بکنایة والاخ والاخت والعمة والخالة من الاجانب هنافلایقع وان نوی ( بحر ص: ۳۰۱ج: ۳ )

خلاصه داچي که چیري یوڅوک خپلې ښځې ته ووایې: چي وهبتک لاختک الخ په دې سره طلاق نه واقع کیږي اوفقهاؤداپه کنایه کي شمېرلی نه دی داراز: وهبتک بعض طلاقک (تاته مې دطلاق بعضی حصه بخښلې ده ) جمله هم له کنایاتوڅخه خارج ده ، له نیت سره ، سره طلاق نه واقع کیږي لکه څرنګه چي ښکاره ده: لوقال بعض طلاقک فانه لیس بکتابة الخ ( بحر الرائق ج: ۳ص: ۳۰۱)

په معراج کي دازیاتونه ده: چي ماستاطلاق ستالپاره مباح کړی دی اوپه ذخیره کي دي : تاته ستانفس هبه دی په جمله سره طلاق نه واقع کیږي هوکه چیري دطلاق نیت وونویابیابائن طلاق واقع کیږي.



په لاندي جملوسره هم که چیري دطلاق نیت نه وي نوطلاق نه واقع کیږي مثلا داووایي: لست لی بامرأة ، ماانابزوجک الخ ته زماښځه نه یې ، زه ستاخاوندنه یم یادیوپوښتنه کوونکې (چي آیاستاښځه سته ؟ )په جواب کې ووایي چي نه زماښځه نه ده اوس که چیري یې دطلاق په نیت ووایې نوطلاق واقع کیږي کنې نه واقع کیږي لکه چي دبدائع ملاصاحب رحمه الله ددغوالفاظوله یادولو وروسته لیکلي چي: فان قال اردت الکذب یصدق الخ وان قال نویت الطلاق یقع الطلاق ( بدائع ص: ۱۸۰۹ج: بدائع )

که چیري ووایې چي مادادروغ ویلې وونودخاوندخبره منل کیږي اوکه یې چیري داسي وویل چي زمانیت دطلاق وونوطلاق واقع کیږي.

لیکن که چیري داووایې چي مانکاح نه ده کړې یاپه خدای قسم ته زماښځه نه یې نوله نیت سره ،سره طلاق نه واقع کیږي ددپه لمن کي څونورې جملې ملاحظه کړئ چي دطلاق له نیت سره ، سره ، په هغوئ باندي دطلاق واقع کېدو تحقق نه راځي ، دبحرالرائق ملاصاحب رحمه الله په دې باره کې چي کوم تحقیق پیش کړی هغه دقارئینولپاره هدیه ده : ودخل فی کلامه ماانت لی بامرأة وماانالک بزوج ولانکاح بینی وبینک الخ!

په داخبره کې ( تازماښځه نه یې ، زه ستاخاوندنه یم ، زمااوستاپه مینځ کې نکاح نه ده سوې ) داخل دي.

البته په دې کې دننه دطلا ق نیت داعتمادقابل دی په لاندي الفاظوکې له نیت سره ،سره طلاق نه واقع کیږي.

وخرج عنه لم اتزوجک اولم یکن بینننانکاح ووالله ماانت لی بامرأة الخ لاحاجة لی فیک ففی هذه الالفاظ لایقع وان نوی عندالکل ( بحرالرائق ص: ۳۰۵ج: ۳ )

ماله تاسره نکاح نه ده کړې ، زمااوستاترمینځ نکاح نه ده سوې ، په خدای قسم ته زماښځه نه یې ، تاته زماضرورت نسته ، په دې الفاظوسره طلاق نه واقع کیږي که څه هم دهغه نیت هم وي.

## يوقانون

په کناياتو او د طلاق د وقوع په سلسله کي دنيت او حالاتو مدار رسائل کيږي لکه څرنګه چي په مخکني ټکوکي دکناياتوله وضاحت څخه تاسوته په ښه توګه معلوم سوله دي سره دفقهاء کرامو دکناياتوپه جاج اخستلو دکوم ضرورت چي په مختلفوژبوکي هم دهغوئ داصطلاح اوعرف مطابق مخې ته راځي يوه ضابطه اوقانون ښوولی په کوم سره چي هرد علم خاوندددي خبرې فيصله کولای سي چي داله کناياتوڅخه دی يانه ددې لپاره چي په اسانی سره دطلاق په باره کي دطلاق دوقوع اونه وقوع لپاره دنيت اوحالاتوپه مدار بللوسره حکم معلوميږي په دې سلسله کي مورږستاسوپه مخکي دمحقق علاء الدين ابن ابی بکرالکاسانی تحقيق پيشوو: موصوف پردې اصل باندې يوه مسئله منطبق کړې اوليکلې يې دي:

لان الاعراض عن الطلاق يقتضی ترك التصرف فيه والصفح هوالاعراض فلايحتمل الطلاق ولاتصح نيته كذاكل لفظ لايحتمل الطلاق لايقع به الطلاق وان نوى مثله قوله وان نوى مثله قوله بارك الله عليك اوقال لها اطعمينى اواسقينى الخ (بدائع الصنائع ص: ۱۸۱۱ج: ۴)

له طلاق څخه ځان ساتنه دتصرف دپرېښوولو تقاضاکوي اوصفح اعراض دی له دې وجې دطلاق داحتمال نه کېدوپه صورت کې په نيت سره هيڅ نه کيږي داراز هرهغه لفظ کوم چي دطلاق احتمال نه لري په هغه سره طلاق نه کيږي که څه هم نيت ورسره وي لکه بارك الله عليك ويل.

له دې څخه معلومه سوه چي په کوم لفظ کې دطلاق احتمال نه وي په هغه کې نيت کول هم لغوبلل کيږي اوطلاق نه واقع کيږي.

### په کناياتوکې ددروطلاقونونيت هم معتبردی

مخکې هم ضمناداخبره تيره سوې ده چي په کناياتوکې په کوموچي بائن طلاق واقع کيږي ددروطلاقونونيت معتبردی اوپه هغه سره مغلظ طلاق واقع کيږي که چيري خاوندښځه په خپله نکاح کې بېرته ساتل غواړي نوپرته له حلالې يې



ددوهم وارنکاح هيڅ صورت نسته ، دطلاق له تقسيم سره محقق صاحب بدائع الصنائع ددروطلاقونودنيت داعتبارثبوت په حديث سره پېش کړی دی ،ليکي:

ولونوى فى شئ من الكنايات التى هى بوائن ان يكون ثلاثا مثل قوله انت بائن ، اوانت على حرام اوغيرذلك يكون ثلاثا (بدائع الصنائع ص: ۱۸۱۱ج: ۴)

دکوم دليل يادونه چي سوې ده هغه دادی:

والدليل عليه ماروى ان ركانة رضى الله عنه طلق امرأته البتة فاستحلفه رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال ماأردت ثلاثا فلولم يكن اللفظ محتملا للثلاث لم يكن للاستحلاف معنًى (بدائع ص: ۱۸۱۱ج: ۴)

ترجمه: دليل دادی: چي کله رکانه رضی الله عنه خپلې ښځې ته په (بتة) سره طلاق ورکړی وونورسول الله صلى الله عليه وسلم هغه ته قسم ورکړنوهغه وويل چي زماپه دې سره درې طلاقونه مرادنه ووNوکه چيري دغه لفظ ددرواحتمال درلودلای نودقسم ورکولوته هيڅ حاجت نه وو.

### درې الفاظ مستثني دي

البته دبائن طلاق له حکم څخه درې الفاظ مستثنی دي ،په هغوئ سره رجعی طلاق واقع کيږي له دې وجې دهغوئ حيثيت دصريح دی ، همداوجه ده چي دهغوئ لپاره ددروطلاقونونيت کول هم غيرمعتبربلل سوی دی لکه څرنګه چي علامه علاء الدين رحمه الله پردې باندي دغه تحقيق کړی دی:

ولونوى بقوله اعتدى استبرى رحمكِ وانت واحدة ثلاثا لم تصح لان هذه الالفاظ فى حكم الصريح (بدائع الصنائع ص: ۱۸۱۲ج: ۴) وكذالونوى بهااثنتين لايصح لماقلنابل اولى لان الاثنتين عددمحض (بدائع ص: ۱۸۱۲ج: ۴)

### دطلاق دترتيب حکم

له يادسوې روايت څخه ددې خبرې پوره وضاحت کيږي چي صريح طلاق په رجعی کې دننه ددووطلاقونودنيت يادوه طلاقونه صريح په ژبه سره دورکولو هيڅ فائده نسته ،ځکه دصريح طلاق په باب کې ددووعددمعتبرنه بلل کيږي له دې وجې که چيري په صريح طلاق کې ددووطلاقونونيت وکړي ياپه ژبه دوه

صریح طلاقونه ورکړي نو په دې سره دوه طلاقونه نه واقع کیږي بلکې یو رجعی طلاق واقع کیږي دعلامه شامی رحمه الله عبارت وګورئ:

وحاصله انه اذانوی الواحدة اوالثنتین لاتقع الا واحدة ( شامی ص: ۲۴۲ج: ۲ )

غرض داچې یو مراد اخستل یا دوه صرف یو واقع کیږي اوپه عده کې دننه د رجوع حق سته دغه دوه په آئنده کې شمیرل کیږي ،نتیجه یې داچې که چیرې بیا یو طلاق په هروخت کې ورکړي نو ښځه په درې مغلظ طلاقونو سره بائنه کیږي ، ،څکه په دې باب کې دیوه ،دوو ،دروطلاقونو عدد د سلسلې اعتبار کیږي اوځرنګه چې خاوند ته خپلې ښځې ته تردروطلاقونو ورکولو پورې حق سته ، له دې وجې نو که چیرې دوه طلاقونه ورکړي نو صرف دیوه طلاق اختیار ورته پاته دی اوکه چیرې یو طلاق ورکړي نو ددوو طلاقونو اختیار ورته پاتې دی ، بیا له حلالې پرته هیڅ صورت نسته داتفصیل ان شاء الله تعالی په آئنده کې راروان دی.

## ښځې ته دطلاق اختیار سپارل

وښځې ته دطلاق دتفویض ( سپارلو ) بحث هم په دې باب کې ډیر اهمیت لري ، مخکې پردې باندې تفصیلي بیان سوی دی چې دطلاق اختیار صرف نارینه ته دی ښځې ته نه دی او حقیقت دادی چې دا اختیار نارینه ته ورکول په معاشره کې پرښځو باندې دالله تعالی لوئ فضل دی کنې په دې سره دمعصیت داسي دروازه خلاصیده دکوم چې به موږ تصورهم نه وو کړی آیا تاسو دیورپ ښځو ته دطلاق داختیار ورکولو له وجې چې کوم ناوړه حالات څرګند سوي له هغوئ څخه ناخبره یاست ( کوم چې داخیرت هیڅ تصور نلري ،دایمان اویقین له لاروڅخه غافله دي ، له حقیقت څخه لیرې دی ، عقل اوفهم یې هم کوره دي ، دنارینه اوښځې له اومیرمن دزندګۍ په ټولو معلاملاتوکې بې برخې دي ، نن ښځوته هم دطلاق اختیارکوم چې دفطرت خلاف دی ورکول غواړي ، لنډه داچې دا اختیار



اودطلاق حق نارینه ته دی البته بعضی شیان داسي هم معمول دي بلکې په قانوني سطح ددې یووزن اومقام هم دی ، خواه ددنیادارجوړېدوقانون یاددنیا جوړولودوالاهغه داچې خپل اختیاراوخپل حق په قانوني توګه بل ته سپارل اوهغه ددې مالک جوړول دزندګۍ په معاملاتوکې داپه کثرت سره لیدل کیږي ، دطلاق په باب کې هم دداسي قسم شرعي قانون موجوددی چې خاونددخپل طلاق حق خپلې ښځې ته په قانوني حدودوکې دننه وسپاري اودارازدخپل طلاق مالک ښځه هم جوړولای سي ، دنارینه پرځای چې کله ښځې ته دطلاق ورکولو اختیاراودهغه حق ورکول سي نوهغه پرخپل ځان اندې طلاق واقع کولای سي دغه اختیار سپارلو ته په شریعت کې تفویض ویل کیږي په دې تفویض سره ښځې ته دومره حق ورکول کیږي څومره چې دنارینه دورکولو اراده وه.

## دتفویض یوخاص صورت

په دې کې شک نسته چې اسلام ښځې هم دنارینه په څیرپه هرقسم نعمتونو باندې نازولې دي اودهغوئ دحقونوبې پوره ،پوره حفاظت کړی ، دهغوئ لپاره یې دترتیب سوې قانون حکمونه جاري کړي ، هغوئ یې دظالمانو له پنجوڅخه خلاصې کړې ، اوپه انساني سطح دزندګۍ تېرولو اختیاراودهغوئ دشان مطابق یې هغوئ ته هرقسم آزادي ورکړې ، غرض داچې په اسلام کې دښځودټولو حقونو رعایت اوحفاظت دی ، دزندګۍ په معاملاتوکې هم اسلام دښځودټولو مشکلاتو خاطر اومؤثرحل کړی دی ، دطلاق په باب کې هم که څه هم داحق اودطلاق اختیارنارینه اوصرف نارینه ته دی مګرله دې سره ،سره که چیرې دنارینه له لورې پرښځوباندې ظلم اوزیاتی کیږي اوله هغوئ سره ظالمانه چلندکیږي دهغوئ حقونه دادانیې پرځای پامال کیږي ، نودهغوئ لپاره شریعت پرنارینوباندې لوئ نظرساتلی ،بلکې که چیرې مذکوره ظلم اوزیاتی اودحقونودحفاظت نه کولوقوي اندېښنه وي نوښځوته داهم اختیاری چې

هغوئ له نارینوڅخه دطلاق اختیارپه خپل لاس کې واخلي ددې لپاره چې په راتلونکي کې له هغوئ حضراتوڅخه نجات پیداکړي ،البته ددې اختیارپه حاصلولوکي هم دنارینه اجازه شرط ده ،ځکه حق خوپه هرحال نارینه ته دی هوله اجازې وروسته داحق دښځې په اختیارکې راځي ، اوضرورت پرموقع باندې ښځه ددې اختیاراستعمال کولای سي ، دارازدهغوئ مشکلات په اسانۍ سره لیرې کیږي ، دطلاق واقع کېدواختیاردنارینه له لاسه کښل ښځې ته یې اختیار ورسپارل خواه دااختیارپه ژبه وي یادلیک په شکل وي ، البته په تحریري شکل کي کېدل بهتردي لکه څرنګه چې دواده پرموقع قبول نامه مرتبیږي له خاوندڅخه پرشرائطودستخط اخستل کیږي ناوسه ښځه ددې اختیارا ستعمال کولای سي ، خصوصاپه دې زمانه کې کله چې پرښځوباندې لوئ ،لوئ ظلمونه کیږي ، اوهغوئ له سختو،سختومصائبوسره مخ کیږي ، اودهغوئ دحقوق پایماله کېدل خودبیان ورنه دي ، ښځې داسي نارینه کوم چې دخپل کمینه ( ناکاره ) فن له مخې ظالمانه برخوردکوي دطلاق دتحریرداختیارپه خپل لاس کې پراخستلومجبوره کوي.

که چیري په شرعی حدودکې دننه له خاوندڅخه داسي تحریرحاصل کړي نوشرعًا په دې کې هیڅ قباحت نسته ،بلکه په داسي ځایونوکي دښځودسهولت یوه لارشرعی عدالت هم دی چې هلته دعوی وکړي نکاح فسخ کولای سي اودارازدغه امرنورهم مضبوط اومستحکم کیږي اودداسي مسائلودحل شریعت په ډیراهتمام سره پیش کړی دی ، اوددې ذمواری داهل ښاراومحلې ته هم راجع کیږي چې هغه دداسي حرکاتو کوم چې دمعاشرې مستقبل (آئنده ) داغ داره کوي مخنیوی وکړي اودغه معاملات په خپلوکې پخپله حل کړي.

### په نکاح کې شرط

که چیري دنکاح ترلوپه وخت دښځې اولیاء له خاوندڅخه داسي شرط واخلي یایې په ولیکي نوپه دې سره په نکاح کې هیڅ فرق نه راځي ،نکاح صحیح کیږي



البته په دې کې دننه هم دشرعي دحدودورعایت ضروري دی په درمختارکې دفروعوتربحث لاندې دامسئله هم نقل کوې:

نکحہاعلی ان امرهابیدهاصح ( درمختار )

البته علامه شامی رحمه الله دااختیاردطلاق دشرط په ابتداء کې دښځې له لورې ضروري بللی دی ، پرنارینه صرف ددې شرط قبلول دي ، کنی که چیري ددې ابتدادنارینه له لورې وي ( چې ماپه دې شرط له تاسره نکاح کړې چې ستادطلاق ټولې معاملې ستاپه لاس کې دي ) نوداشرط باطلیږي ، نه ښځې ته دااختیارپیداکیږي اونه طلاق واقع کیږي ، البته نکاح صحیح کیږي دموصوف عبارت داسي دي:

مقیدبمااذاابتدأت المرأة فقالت زوجت نفسی منك علی ان امری بیدی اطلق نفسی کلما ارید اوعلی انی طالق فقال الزوج قبلت امالوبدأالزوج لاتطلق ولایصح الامربیدها( شامی ص: ۲۲۷ج:۲ )

ترجمه : قیدهغه وخت صحیح کیږي کله چې دښځې له لورې داشرط په ابتداء کې ولګول سي چې زه په دې شرط نکاح درسره کوم چې زمامعامله به ماته سپارل کیږي ، زه چې کله وغواړم چې طلاق راکړه نوراکوې به یې ، خاوندووایې چې ماقبول کړل ، لیکن دخاوندپه ابتداء کې دشرط په قبلیدوسره طلاق نه واقع کیږي اونه ښځې ته په ابتداء کي دطلاق په اختیارسپارلوسره طلاق واقع کیږي.

### یوڅوضروري خبرې

موږترتفصیل کولومخکې دامناسب وبلله چې له دې باب سره متعلق دطلاق دواقع کېدوپه سلسله کې هغه شرائط چې فقهاؤضروري بللي دي واضح کوو، ددې لپاره چې دتفویض ( سپارلو) مسائل په اسانۍ سره حل سي ، اوله خبره داچې دطلاق داختیارسپارلوعلم دښځې لپاره ضروري دی (یعنی ښځه به په سپارلوخبره وي ) ،هغه که خاونددااختیارسپارلوپخپله اطلاع ورکړې وي یاپه ذریعه دیوقاصدترښځې پورې رسیدلی وی ، یایې کوم وکیل جوړکړی وي هریو

صورت جائزدی په عالمګیری کې دښځې خبرېدل په داسي طریقه بیان سوې دي
: ولوخبرهافلم تسمع اوکانت غائبة فلها الخيار في مجلس علمها ( عالمګیری ص: ۳۸۸ج:۱ )
ترجمه : که چیري هغې ته اختیاروركړي خوهغه يې وانه وري یاغائبه وي نواختیارهغه وخت ورته دی کله چي ددې سپارلودې ته علم وسي.
البته که چیري ښځه پرهغه باندي دخبرېدونفې کوي اوخاوندیې اثبات کوي ددې لپاره چي اختیارساقط سي نودلته دښځې دقول اعتبارکیږي.
ولوقال الزوج علمت في مجلس القول وانكرت المرأة فالقول لها كذا في المحيط (عالمګیری ص: ۳۸۸ج:۱
دوهمه خبره داچي : په کوم مجلس کې دااختیارسپارل سوی وي په دې مجلس کې دښځې قول ( خبره ) کول هم ضروري دي کني دمجلس په بدلیدویادیوداسي وضعیت په اظهارسره له کوم ځخه چي دښځې دنه قبلولوپته لګیږي نواختیارباطلیږي.
لانها لوقامت عنه اواخذت في عمل اخر بطل خيارها ( بحرالرائق ص: ۳۱۱ج: ۳ )
ښځه دطلاق داختیارسپارلوپرځای ولاړه سي یاپه بل کوم کارشروع وکړي نواختیارباطلیږي.
په عالمګیری کي دي: فلها ان تطلق نفسها مادامت في مجلسها ذلك ( ص: ۳۸۷ج:۱ )
هغې ته دخپل ځان اختیاردی چي هغه خپله په دې مجلس کي ترهغوپورې ځان ته طلاق اخستلای سي چي دخیارمجلس باقي وي.
له مجلس ځخه عام مجلس نه دی مراد ، بلکي هرهغه ځای مراددی چیري چي خاوند ،اوښځه داختیاردمسئلې په هکله خبرې کوي ګواکي چي ښځې ته په کومه طریقه داختیاراطلاع وررسیږي ترهغوپورې دخیارمجلس باقي دی.
د مجلس اصطلاحي معنی مرادنه ده ،دمجلس له بدلیدوځخه دښځې مجلس مراددی ، دخاوندله مجلس ځخه جلاکېدل یاپه کومه طریقه دناراضایې اظهار کول دښځې پراختیارباندي هیڅ اثرنه غورځوي ،ځکه چي دلته دښځې اعرض مراددی نه دنارینه.



وكذا اذا قام هو من المجلس فالامر في يدها مادامت في مجلسها ( ص: ۳۸۲ج:۱ )
ترجمه: که چیري نارینه له مجلس ځخه ولاړسي نومعامله ترهغوپورې دښځې په لاس کې ده ترڅوچي داپه مجلس کي ناسته وي.
له دې سره ،سره ، خاوندته داحق هم نسته چي له دې اختیارځخه رجوع وکړي یاښځه د اختیارله استعمالولوځخه منع کړي.
وليس للزوج ان يرجع في ذلك ولا ينهاها عما جعل اليها ( عالمګیری ص: ۳۸۲ج:۱ )
دریمه خبره داچي : که چیري ددې اختیارلپاره خاوندځه موده معلومه کړي نوترهغه وخته پورې ښځې ته دقبلېدوحق اواختیارسته ،له معلومې مودې تېریدووروسته اختیارساقطیږي ، دبحرملا صاحب لیکي:
ولوقال جعلت لها ان تطلق نفسها اليوم اعتبر مجلس في هذا اليوم فلومضى اليوم ثم علمت خرج الامر من يدها !
ترجمه: که چیري خاوندووایې چي نن ورځ تاته دځان طلاقولواختیاردی نوددې ورځې مجلس معتبردی که چیري نن ورځ تیره سي بیاخبره سي نواختیار دهغې له لاسه وځي ( بحرالرائق ص: ۳۱۱ج: ۳ )
دعلامه ابن عابدین رحمه الله تحقیق هم ملاحظه کړئ : واما المؤقت بشهرمثلا فلا يبطل بذلك مادام الوقت باقيا ( شامی ص: ۲۵۴ج: ۲ )
یوه میاشت مؤقت اختیارترهغوپورې وي ترڅوچي میاشت تیریږي.
ځلورمه خبزه داچي : دتفویض ( سپارلو ) لپاره کوم الفاظ متعین دي له هغوئ ځخه لفظ داختیارهم دی ، لیکن صرف ( اختاری ) ویل کافي نه دی ، بلکي د( نفس ) یادهغه قائم مقام ذکرکول هم ضروري دي ، البته په خاوندیامېرمن کې چي دکوم یوه په کلام کې ددې ذکروسي کافي بلل کیږي ، دفتاوی په مشهورکتاب فتاوی هندیه کې ددې تصریح ده:
وفي المحيط لابد من ذكر النفس او التطليقة او الاختيار في احد الكلامين لوقوع الطلاق ( ص: ۳۸۸ج ۱ )

پنځمه خبره داچي: دتفويض په طلاق کنايه کې هم دطلاق نيت ضروري دی ، که چيري خاوند دطلاق نيت نه وي کړی نو طلاق نه واقع کيږي.

ثم لابدمن النية في قوله اختاري فان اختارت نفسها في قوله اختاري كانت واحدة بائنة ( عالمگيری ص: ٣٨٨ج:١ )

ترجمه: داختاري ويلو په وخت کې نيت ضروری دی که چيري ښځه اختيارقبول کړي نو يو بائن طلاق واقع کيږي.

شپږمه خبره داچي: دطلاق له اختيارڅخه ښځې ته صرف دومره اندازه اخيتار ورکول کيږي څومره چي دې ته ورکول سوی وي ، داسي نه چي اختياردیوه طلاق وي او استعمال ددوو ،دريیو طلاقونووي.

اوومه خبره داچي: له اختيارورکولووروسته خاوندته له اختيارڅخه درجوع کولوحق نسته اونه هغه داباطلولای سي ، تردې مخکې ددي دليل تيرسوی دی ، البته يوصورت دجوازدادی چي خاوندله اختيارورروسته ښځې ته څه رقم (پيسې ) ورکړي ،رضايې کړي چي ښځه له خپل اختيارکارولوڅخه راوګرځوي اوطلاق واقع نسي ، دبحرالرائق ملاصاحب رحمه الله ليکي:

لوخيرهاثم جعل لهاشيئًالتختاره فاختارته لم يقع ( بحرص: ٣١١ج: ٣ )

البته فقهاؤداسي حرکت په رشوت کي شمارلی دی ليکي:

ولايجب المال لانه رشوة كذا في فتح القديرص: ٣١١ايضا )

دمال په دارازوعده اخستلوکې ممکن ده چي بيايې ورنکړي ، له دې وجې چي دارشوت دی دمذکوره بيانونوله وضاحت وروسته موږدتفويض دمسائلو دتفصيل وطرفته رجوع کووله قارئين حضراتوڅخه درخواست دی چي ددې باب راتلوونکې مسئلې هم دمذکوره خبروپه څيرضرورو ګوري.

**دتفويض ( طلاق سپارلو) څوصورتونه**



داختيارسپارلوفقهاؤدرې شکلونه ليکلې دي ، اودهريوه داستعمال طريقه جلاده ، په دوئ چې هريوهم وکارول سي نوښځې ته دطلاق اختيارثابتيږي ، ددرمختارملا صاحب ددې طريقوداسي بيان کړی دی:

وانواعه ثلاثة: تفويض وتوكيل ورسالة ( درمختار )

اوس ددې تفصيل دمحقق ابن عابدين له قلم څخه ملاحظه کړئ: موصوف دتفويض اوتوکيل په هکله ليکي:

المرادبالتفويض عليك الطلاق ( شامی ص: ٢٥٣ج:٢ )

دتفويض مطلب دادی چي دطلاق ذمواري ستاپرسرده ، که څه هم ددې اختيار دسپارلودرې شکلونه دي خودتفويض طريقه په خپلودووطريقوسره عامه اوډيره استعماليږي لکه چي ددې عامېدواشاره دشامی له عبارت څخه معلو ميږي: وحاصله ان التفويض اعم الخ ( شامی ص: ٢٥٣ج:٢ )

اوفقهاؤچي دتفويض په صورت کې کوم مخصوص الفاظ ذکرکړې دي هغه درې دي ( تخير ،والامربيدک ، مشية )

**داختاري تفصيل**

مخکې خوموږدتفويض پراولنی صورت بحث کووله کوم څخه چي فقهاء په اختاري سره تعبيرکوي په اردوياپه کومه بله ژبه کې ددې اختيارتعبيردهغوئ په معنی اواصطلاح سره معتبريږي اوشرعًا دطلاق په باب کې هم ددې اعتبارکيږي ، دمثال په توګه خاوندخپلې ښځې ته ووايې چي ( اختاری نفسک ) يعنی ته په خپل اختياريې ،ياستانفس ستاپه اختيارکي دی ، نوپه دې سره ګواکي خاوند دخپل طلاق اختيارښځې ته وسپاری ، ښځې ته اختياردی چي په همدې مجلس کي دااختيارا استعمالوي يايې ردوي البته دښځې لپاره دمجلس بدليدل مثلا هغه له مجلسه ولاړه سي ياله کوم بل چاسره خبرې وکړي يابل کوم داسي کاروکړي له کوم څخه چي داختياربې رغبتي ښکاريږي دااتول اختيارباطلوي ،دتفويض څه صورتونه له کنايه سره متعلق دي کوموته چي

تفویض کنایه ویل کیږي په هغوئ کې داختیارسپارلوپه وخت کې دطلاق نیت هم ضروري دی اوپه هغوئ سره یوبائن طلاق واقع کیږي په بحرالرائق کې دي:

ولم تصح فیه نیة الثلاث ( بحر ص:۳۱۱ج:۳ )

یعنی په دې کې ددرونیت نه صحیح کیږي.

په تفویض کنایه سره دیوه بائن طلاق دواقع کېدودلیل هم په بحرالرائق کې موجود دی: وانما وقع به البائن لانه ینبئ عن الاستخلاص والصفا من ذلك الملك وهی بالبینونة

( بحرالرائق ص:۳۱۱ج:۳ )

یعنی په دې سره بائن طلاق واقع کیږي له دې وجې چې خاوندښځې ته دخلاصېدویاله خپل ملکیت څخه دهغې دایستلوخبرورکوي په کوم سره چې جلاوالی ممکن دی.

دتفویض بعضی الفاظ له صریح سره یوځای کیږي اودهغوئ حکم هم دصریح وي اوپرته له نیت نه یورجعی طلاق په واقع کیږي ، دتفویض هغه صورت په کوم سره چې بائن طلاق راتلی هغه (اختاری اوامرک بیدک ) دی دبائن طلاق په سلسله کې دابن عابدین رحمه الله عبارت داسي دي: ولایصح ایقاع الرجعی به لانه تفویض بلفظ الکنایة والواقع بها البائن ( شامی ص: ۲۵۷ج:۲ )

یعنی په دې سره رجعی طلاق نه واقع کیږي له دې وجې چې داتفویض کنایه دی ، په دې سره بائن طلاق واقع کیږي.

البته له اختاری سره دنفس یادهغه قائم مقام الفاظ ذکرکول ضروري دي هغه که دخاوندپه کلام کې وي یادښځې په جواب کې ،محض په اختاری سره دطلاق اختیارنه راځي اونه طلاق په واقع کیږي

په عالمګیری کې له محیط څخه نقل سوې دي:

وفی المحیط لابد من ذکر النفس او التطلیقة او الاختیارة فی احد الکلامین لوقوع الطلاق بان قال الزوج اختاری نفسك اوقالت المرأة اخترت نفسی ( عالمګیری ص: ۳۸۸ج:۱)



اوپه دې سره داختیارنه ثابتیدواوطلاق نه واقع کیدوترټولولویه وجه داده چې په محض اختیاری سره نه داختیاروطرفته ښوونه کیږي اونه دطلاق وطرفته اشاره ،ځکه چې دامجمل لفظ دی ددي دطلاق له اختیارپرته دبلې معنی احتمال هم سته له دې وجې دیوداسي قرینې ضرورت سته کومه چې دطلاق پرواقع کېدوباندي دلالت کوي.

## ضروري تنبیه

له تربحث لاندي مسئلې سره تړلې یوه ضروري تنبیه مناسبه معلومیږي ، اوهغه داچې دخاوندیاښځې په کلام کې دنفس ذکر( اختاری نفسک اواخترت نفسی ) ضروری دی ، لکه څرنګه چې اوس هم موږتاسوته وښوول چې دنفس ذکرپه خاوند ،ښځه کې دیوه په کلام کې ویل ضروري دي : مطلب یې داچې نفس یادهغه په څیرکوم لفظ استعمالول دطلاق دواقع کیدولپاره کافي بلل کیږي ، دنفس خاص کېدل شرط نه دی محض دمعنی دپراخوالې له کبله موهغه ذکرکړی دی ، لکه څرنګه چې دعلامه شامی رحمه الله له تصریح څخه معلومیږي:

وافادان ذکر النفس لیس شرطا بخصوصیة بل هی او مایقوم مقامها( شامی ص: ۲۵۸ج:۲ )

پردې باندي محقق موصوف اوږدبحث کړی دی اودنفس قائم مقام یې څو مخصوص اومتعین الفاظ ذکرکړې دي ،دمسئلې پېچېده والی یې هم ختم کړی اوله هغه سره یې احسان دآکړی چې پردې مسئله باندي یې دماغ سوځلی اودهغه هم معنی الفاظ یې هم انتخاب کړي ، فجزاهم الله خیرالجزاء محقق مخصوص الفاظ داسي ذکرکوي:

والحاصل ان المفسر ثمانیة الفاظ النفس ، والاختیارة ، والتطلیقة والتکرار وابی وامی ، واهلی والازواج ویزاد تاسع وهوالعدد فی کلامه فلوقال اختاری ثلاثا فقالت اخترت یقع الثلاث ( شامی ص: ۲۵۹ج:۲ )

تفویض کنایه ویل کیږي په هغوئ کې داختیارسپارلوپه وخت کې دطلاق نیت هم ضروري دی اوپه هغوئ سره یوبائن طلاق واقع کیږي په بحرالرائق کي دي:

ولم تصح فیه نیة الثلاث ( بحر ص:۳۱۱ج:۳ )

یعنی په دې کې ددرونیت نه صحیح کیږي.

په تفویض کنایه سره دیوه بائن طلاق دواقع کېدودلیل هم په بحرالرائق کې موجوددی: وانماوقع به البائن لانه ینبئ عن الاستخلاص والصفامن ذلك الملك وهی بالبینونة

( بحرالرائق ص:۳۱۱ج:۳ )

یعنی په دې سره بائن طلاق واقع کیږي له دې وجې چې خاوندښځې ته دخلاصېدویاله خپل ملکیت څخه دهغې دایستلوخبرورکوي په کوم سره چې جلاوالی ممکن دی.

دتفویض بعضی الفاظ له صریح سره یوځای کیږي اودهغوئ حکم هم دصریح وي اوپرته له نیت نه یورجعی طلاق په واقع کیږي ، دتفویض هغه صورت په کوم سره چې بائن طلاق راتلی هغه (اختاری اوامرک بیدک ) دی دبائن طلاق په سلسله کې دابن عابدین رحمه الله عبارت داسي دي: ولایصح ایقاع الرجعی به لانه تفویض بلفظ الکنایة والواقع بهاالبائن ( شامی ص: ۷۵۷ج:۲ )

یعنی په دې سره رجعی طلاق نه واقع کیږي له دې وجې چې داتفویض کنایه دی ، په دې سره بائن طلاق واقع کیږي.

البته له اختاری سره دنفس یادهغه قائم مقام الفاظ ذکرکول ضروري دي هغه که دخاوندپه کلام کي وي یادښځې په جواب کي ،محض په اختاری سره دطلاق اختیارنه راځي اونه طلاق په واقع کیږي.

په عالمګیری کي له محیط څخه نقل سوې دي:

وفی المحیط لابدمن ذکرالنفس اوالتطلیقة اوالاختیارة فی احدالکلامین لوقوع الطلاق بان قال الزوج اختاری نفسك اوقالت المرأة اخترت نفسی ( عالمګیری ص: ۳۸۸ج:۱ )



اوپه دې سره داختیارنه ثابتیدواوطلاق نه واقع کیدوترتولولویه وجه داده چې په محض اختیاری سره نه داختیاروطرفته ښوونه کیږي اونه دطلاق وطرفته اشاره ،ځکه چې دامجمل لفظ دی ددې دطلاق له اختیارپرته دبلې معنی احتمال هم سته له دې وجې دیوداسې قرینې ضرورت سته کومه چې دطلاق پرواقع کېدوباندي دلالت کوي.

## ضروري تنبیه

له تربحث لاندې مسئلې سره تړلې یوه ضروري تنبیه مناسبه معلومیږي ، اوهغه داچې دخاوندیاښځې په کلام کې دنفس ذکر( اختاری نفسک اواخترت نفسی ) ضروری دی ، لکه څرنګه چې اوس هم موږتاسوته وښوول چې دنفس ذکرپه خاوند ،ښځه کې دیوه په کلام کې ویل ضروري دي : مطلب یې داچې نفس یادهغه په ځیرکوم لفظ استعمالول دطلاق دواقع کیدولپاره کافي بلل کیږي ، دنفس خاص کېدل شرط نه دی محض دمعنی دپراخوالې له کبله موهغه ذکرکړی دی ، لکه څرنګه چې دعلامه شامی رحمه الله له تصریح څخه معلومیږي:

وافادان ذکرالنفس لیس شرطابخصوصیة بل هی اومایقوم مقامها( شامی ص: ۷۵۸ج:۲ )

پردې باندي محقق موصوف اوږدبحث کړی دی اودنفس قائم مقام یې څو مخصوص اومتعین الفاظ ذکرکړې دي ،دمسئلې پېچېده والی یې هم ختم کړی اوله هغه سره یې احسان داکړی چې پردې مسئله باندي یې دماغ سوځلی اودهغه هم معنی الفاظ یې هم انتخاب کړي ، فجزاهم الله خیرالجزاء محقق مخصوص الفاظ داسي ذکرکوي:

والحاصل ان المفسرثمانیة الفاظ النفس ، والاختیارة ، والتطلیقة والتکرار وابی وامی ، واهلی والازواج ویزادتاسع وهوالعدد فی کلامه فلوقال اختاری ثلاثافقالت اخترت یقع الثلاث ( شامی ص: ۷۵۹ج:۲ )

پردغواتوباندي هم اضافه ممکنه ده ، نوددغه کلام په اعدادکې که چيري درې اختيارکړي اوهغې وويل چي اخترت نودرې واقع کيږي.

له دې وروسته علامه موصوف داستعمال طريقه ذکرکړې ده تروالشرط لاندي ليکي: انما اکتفی بذکر هذه الاشياء فی احد الکلامين ( شامی ص: ۲۵۹ج:۲ )

يعنی په زوجينوکې چي دهريوه په کلام کي ذکرسوې شيان ذکرسي کافي دي ، لنډه داچي له نفس پرته د دغواتوتذکره دزوجينوهريوه په کلام کې چي وي ذکرکول يې دطلاق دواقع کېدولپاره شرط دي.

## يوه مسئله

که چيري خاونددطلاق اختيارورکړي ،ښځه په جواب کې د( اخترت ابی وامې ) لفظ ووايي اووالدين موجودنه وي ، خو ورورموجودوي ياورورهم نه وي نوفقهاؤپه داسي صورت کې هم دطلاق واقع کېدوحکم کړی دی ، ،ځکه دطلاق دواقع کېدولپاره دوالدين ( مور،پلار ) وجودضروري نه دی ، الفاظ دطلاق دواقع کېدولپاره کافي دي ، علامه ابن عابدين رحمه الله په خپل مشهورکتاب ردالمحتارکي ليکي: وينبغی ان يحمل علی ما اذا کان لها اب اوام او اما اذا لم يکن وکان لها اخ ينبغی ان يقع الخ ولم ار لوماقالت اخترت ابی اوامی وقد ماتا ولا اخ لها وينبغی ان يقع لقيام ذلك مقام اخترت نفسی ( ص: ۲۵۸ج:۲ )

که چيري موراوپلاروي نوکلام پرهغوئ حمل کيږي ،که چيري نه وي نوهم واقع کيږي له دې وجې چي دالفظ د( اخترت نفسی )په معنی دی په دې کې دچادکېدويانه کېدو(يعنی دچادوجود ) شرط نسته.

## له اختاری ځخه درجعي فائده

په مذکوره دتفويض په لفظ (اختاری ) سره چي کله يوبائن طلاق واقع کېدی په لړتبديلی سره رجعی طلاق هم ځيني فائده کيږي ،کله چي له اختاری سره دطلاق دلفظ زياتوب هم وسي ، مثلا داسي ووايې چي تاته دطلاق اختياردی



نوپه دې سره يورجعی طلاق واقع کيږي دفقه په مشهوراومعتبرکتاب ردالمحتارکې ددې تصريح موجوده ده:

لوقال لها اختاری الطلاق فقالت اخترت الطلاق فهی واحدة رجعية لانه لما صرح بالطلاق کان التخيربين الاتيان بالرجعی وترکه ( شامی ص: ۲۵۳ج:۲ )

ترجمه : يعنی که چيري خاونداختاری الطلاق ووايې اوښځه په جواب کې اخترت الطلاق ووايې نويورجعی طلاق واقع کيږي ،ځکه چي کله دصريح طلاق لفظ هم ورسره سونودرجعی طلاق واقع کېدل معتبريږي.

له دې سره که چيرې داصريح لفظ درې ځله استعمال کړي نودرې طلاقونه واقع کيږي اوښځې ته ددروطلاقونوپرځان واقع کېدوهم اختيارسته په فتاوی شاميه کي دي: بان قال لها اختاری فقالت اخترت نفسی تقع واحدة ويتعدد اخری کاختاری نفسك بثلاث تطليقات فقالت اخترت وتعن ( شاميه ص: ۲۵۸ج:۲ )

البته له اختاری نفسک سره ددرونيت معتبرنه دی لکه چي مخکې هم تيرسوپه ردالمحتارکې دي : وهی اختاری نفسك لاتصح نية الثلاث بل تبين بواحدة ( ردالمحتارص: ۲۵۷ج:۲ )

## دامرک بيدک بحث

دتفويض ( طلاق سپارلو ) دمخکنی لفظ ( اختاری ) تربحث وروسته ددوهم لفظ ( امرک بيدک ) يعنی ستامعامله ستاپه لاس کې ده ، هم مختصر بحث مناسب بلکې ضروري معلوميږي ددې لپاره چي دتفويض پرمسائلوباندي په پوره توګه احاطه راسي ، دتفويض په دوهم لفظ کې هم ددغوتولوخبرو رعايت کول ضروري دی ، دحکم په اعتبارسره هم اختاری اوامرک بيدی دواړه مساوي دي ، لکه څرنګه چي په اختاری سره بائن اورجعي دواړه واقع کېدل همداراز په امرک بيدک سره هم بائن اورجعي دواړه واقع کيږي ، خلاصه داچي داختاری اوامرک بيدک ټول احکام دطلاق دواقع کېدواونه واقع کېدوپه سلسله کې يودول دي.

داختاري په ذريعه چې دطلاق په واقع کېدوکې دکوموشيانورعايت ضروري دی په (امرک بيذک )کې هم دهغوئ لحاظ کول ضروري دي ، په عالمګيري کې دمذکوره بيان خلاصه دارازده:

الامربيدک التخيير في جميع مسائله من اشتراط ذکر النفس اومايقوم مقامه ومن عدم ملك الزوج الرجوع وغيرذلك ( عالمګيری ص:۳۹۰،ج:۱)

### داختاري اوداموک بيدک په مينځ کې فرق

دتفويض دغه دواړه لفظونه داحکاموپه اعتباريوډول دي لکه څرنګه چې أوس معلوم سو،خوداصولوپه اعتبارسره يوفرق لري چې په اختاري کې ددروطلاقونودنيت اعتبارنه کيږي ، اوپه( امرک بيدک ) کې ددروطلاقونونيت کول هم داعتبارقابل دی لکه څرنګه چې دغه فرق فقيه العصرزين العابدين ابن نجيم رحمه الله په خپل کتاب بحرالرائق کې واضح کړی دی:

واستفيدمنه ان الامربالبدكالتخيير في جميع مسائله سوى نية الثلاث فانها تصح هنالافي التخيير( بحرالرائق ص:۳۱۷ج:۳ )

اوس چې ددروله نيت څخه مرادڅه دی ؟ نودهغه مخکې هم بحث تيرسوی دی چې دتفويض په باب کې له نيت څخه دتفويض نيت مراددی يعنی که چيري ددروطلاقونوداختياروركول غواړي نوپه (امرک بيدک )کې يې ګنجائش سته مګرنيت دتفويض پکاردی ددې لپاره چې ښځې ته په صحيح طريقه ددرو طلاقونو اختيارحاصل سي دبحرالرائق ملاصاحب رحمه الله دمراد نيت بيان په دې الفاظوکې کړی: واراد بنية الطلاق نية تفويضها( بحرص: ۳۱۷ج: ۳ )
يعنی دطلاق له نيت څخه مراددتفويض نيت دی.
په دې مسئله کې هم ددرودنيت کولو اونه کولواعتباردخاوندپرقول دی ، که چيري خاونددروطلاقونوله نيت نه انکارکوي ، اوښځې په (امرک بيدک ) سره



دري طلاقونه پرځان واقع کړل نوپه داسي صورت کې خاوندته قسم ورکول کيږي اودهغه انکارمعتبريږي ، دبحرالرائق ملاصاحب رحمه الله پردې مسئله باندي بحث کړی ليکي:

فاذاقال الزوج نويت التفويض في واحدة بعدماطلقت نفسهاثلاثافي الجواب يحلف انه ماارادالثلاث ( بحر ص: ۳۱۷ج: ۳ )

### دښځې جواب

خاوندکه چيري دامرک بيدک ( ستامعامله ستاپه لاس کې ) اختياروركړې نودښځې لپاره ددې په جواب کې امري بيدی ويل صحيح نه دي اونه په دې سره اختياروركول کيږي اونه طلاق واقع کيږي بلکې ددې په جواب کې هم اخترت نفسی ويل ضروري دي زيات هغه لفظ په جواب کې مفيدکيږي په کوم کې چې دطلاق دواقع کېدوصلاحيت وي دبحرالرائق ملا صاحب پردې باندي تفصيلي بحث کړی اوليکي:

وقيدبقولها اخترت لنفسي لانهالوقالت في جوابه امري بيدي لايصح قياسا واستحسانا( بحر ص: ۳۱۷ج: ۳ )

ترد ي وروسته اصول بيانوي اوليکي:

فالاصل ان كل لفظ يصلح للايقاع من الزوج يصلح جوابا من المرأة (بحرالرائق ص: ۳۱۷ج: ۳ )

يعنی داخترت نفسی قيدله دې وجې دی چې که چيري هغه په جواب کې ووايې چې امري بيدی نوقياس اواستحسان دواړه دهغه ردوي اوکوم اصول چې بيان سوې دهغوئ مطلب دادی چې هرهغه لفظ کوم چې دطلاق دواقع کېدولپاره مفيدوي هغه دښځې له لوري په جواب کې هم مفيدوي.

تردي اصولولاندي محقق موصوف، څوجملې اضافه کړې کومې چي دښځې له لورې دجواب صلاحيت لري ، اودامرک بيدک په جواب کې دهغواستعمال کيږي ،ليکي:

ولوقال امرک بيدک فقالت انت علي حرام اوانت مني بائن اوانا منک بائن فهوجواب ( بحرص: ۳۱۷ج: ۳ )

دغه دکناياتوڅوجملې دمثال لپاره ذکرکيږي ، حقيقت دادی چي دکنايه هرلفظ په کوم کې چي دطلاق صلاحيت وي دامرک بيدک په جواب کې کارول کيدای سي اودښځې په استعمالولوسره پرهغې باندي طلاق راتلای سي ، لکه څرنګه چي له پورته يادسوي اصل څخه ښکاريږي ، فقهاؤدقبلت نفسی ( ماتاسوقبول کړي ياست ) هم دامرک بيدک په جواب کې دطلاق دواقع کېدولپاره منلی دی ، له دې سره داخبره هم ښيې چي که چيري ښځه خپل اختيارخپل پلارته ورکړي اودهغې پلاردقبلتهالفظ استعمال کړي په دې سره هم پرښځې باندي طلاق راځي ،ځکه کله چي دخاوندله لوري ښځې ته اختيارورکول سۍاوهغه دااختيار خپلواولياؤته سپارلای سي لکه چي دبحرملاصاحب دهغې له لورې دقبلولو مذکوره پورتني دواړه صورتونه دفتوی په ژبه بيان کړي دي:

لوجعلها امرهابيدابيهافقال ابوهاقبلتهاطلقت وکذالوجعل امرهابيدهافقالت قبلت نفسی طلقت ( بحرص: ۳۱۷ج: ۳ ).

**دامرک بيدک تخصيص نه کيږي**

دامرک بيدک په ذريعه دطلاق داختيارسپارلوپه سلسله کې فقهاؤ په لويه پيمانه کاراخستی دی ، اوهغې ته يې اختيارپه امرک بيدک سره خاص کړی نه دی بلکي ددې قائم مقام نورالفاظ هم فقهاؤداختياردصحت لپاره جائزاوصحيح بللې دي ، دهغوئ ذکرپه خلاصه ،بزازيه اودفقهي په نورو کتابونوکې دارازسو دی ديادوسويودواړوکتابونوعبارت کوم چي دبحرملا صاحب رانقل کړي ملاحظه کړئ:



واليدايضا ليس بقيدفانه لوقال امرک في کفيک اويمينک اوشمالک اوفمک اولسانک کذلک کذافي الخلاصة والبزازية ( بحرص: ۳۱۷ج: ۳ )

يعنی دلاس تخصيص نسته دلاس پرځای دکف ( ورغوی ، راسته ،چپه ،خوله ، ژبې ) الفاظ هم مستعمولای سي بياهم حکم هماغه دی ( مثلا ستامعامله ستا په ژبه ،ياستاپه خوله ، ياستا په دواړوطرفونووغيره کې دی )

په عالمګيری کې څوالفاظ نوراضافه دي:

اوجعلت الامربيديک اوفوضت الامرکله في يدک ونوی الطلاق صح الخ ولوقال في عينک اورجلک اورأسک ونحوها لم يصح الابالنية ( عالمګيری ص: ۳۹۱ج: ۱ )

**ددوونيت غيرمعتبردی**

تردې مخکې هم داختاري په ضمن کې داخبره تيره سوې ده چي په اختاری سره ددووطلاقونودسپارلونيت وسي نويوبائن واقع کيږي ، دامسئله په امرک بيدک کې هم چي يوڅوک ددونيت وکړي يادیوه يادتفويض نيت وکړي نوپه دې صورتونوکې يوطلاق بائن واقع کيږي ، اوښځې ته پرخپل ځان باندي تريوه طلاق واقع کېدوزيات حق نسته ، محقق ابن عابدين رحمه الله ددې مسئلې دارازوضاحت کړی ،ليکي:

بان لم ينوعددا اونوی واحدة اوثنتين في الحرة فانها تقع واحدة بائنة ( شامی ص: ۲۲۳ج: ۲ )

ترجمه: کوم عددنه مراديږي يو يادوه که مرادکړي نويوواقع کيږي دآزادې ښځې دطلاق په صورت کې.

**ددلالت حال اعتبار**

دتفويض په باب کې دلالت هم معتبراوقابل داعتباربلل سوی دی ددلالت حال پوره تفصيل مخکې په وضاحت سره تيرسوی دی ، دلته صرف دومره ښوول دي چي دلالت حال لره هم خواه هغه دمذاکره طلاق په صورت يادغضب دحالت په صورت کې وي په دې باب کې هماغه مقام حاصل دی څومره چي دطلاق په باب کې حاصل وو ، لهذاددلالت حال په صورت کې پرته له نيت نه هم ښځې ته

اختیارپیداکیږي اوطلاق واقع کیږي ، له بحرالرائق ،نهراودفقهې له نورو کتابونوڅخه ددې مسئلې رهنمايي ښوول سوې ده ، دبحردملاصاحب عبارت ملاحظه کړئ:

وقدمنا انه لابد من نية التفويض اليها ديانة اويدل الحال عليه قضاءً ( بحرص: ۳۱۷ج: ۳ )

ديانة دتفويض دطلاق نيت ضروري دی ، يابه عدالت پردلالت حال فيصله کوي ، له دې سره ددې خبرې وضاحت هم ضروري معلوميږي چې که چيرې خاونددهرنيت له نفي کولوسره ،سره ددلالت حال نه هم انکارکوي اوښځې پرحال يانيت باندې دليل پيش کړي نودښځې شاهدان معتبربلل کيږي ، ددې لحاظ کول هم ضروري دي چې ددلالت حال په صورت کې دخاوندله لورې دطلاق دارادې نفي کول غيرمعتبروبلل سي په عالمګيری کې دمذکوربيان پوره وضاحت سته:

ولم يرد الزوج بالامر باليد طلاقًا فليس الامر بشئ الا ان يكون فى حالة الغضب اومذاكرة الطلاق ولايدين فى الحكم انه لم يرد به الطلاق فى الحالتين وان ادعت المرأة نية الطلاق اوكان فى غضب اومذاكرة الطلاق فالقول قوله مع يمينه وتقبل بينة المرأة فى اثبات حالة الغضب ومذاكرة الطلاق ولاتقبل بينتها فى نية الطلاق الا ان تقيم البينة على اقرار الزوج كذافى الظهيرية (عالمګيری ص: ۳۹۱ج: ۱)

## ضروري خبره

مذکوره بيانونوته کوم چې له شاهدانواوقلم سره متعلق دي دعملي شکل ورکولولپاره تراسلامی دارالقضاء لاندې کېدل ضروري دي بلکې دداسې قسم چې په دې باب کې ځومره مسائل هم تربحث لاندې راغلي هغه ټول له مذکوره اداری سره يالـه داسې اداروسره متعلق سي ددې لپاره چې داسې قسم مسائل په اسانۍ اوسنجيدګۍ سره حل سي اوشريعت هم پوره رعايت ملحوظ سي دهندوستان په مختلف علاقو، ولايتونوکې شرعي محکمه يادارالقضاء قائمه



سي ،هرمسلمان ته پکاردي چې په خپله هره معامله کې له هغوئ سره رابطه ونيسي ، ددې لپاره چې معاملې په اسلامي طريقه اودشريعت له معيارسره سمې حل سي دارازداسلام داحکاموعمل دائره ترپراخه لاپراخه سي.

## دورځې اوتاريخ قيد

لکه څرنګه چې مخکې هم داختيارې په ضمن کې ذکرسوچې ښځې ته مطلقادطلاق اختيارسپارل کيږي ، ( دکوم چې تعلق اودحکم مدارصرف دمجلس ترحده پورې باقي پاتې کيږي ) اودورځواوتاريخ قيدهم لګول کيږي په دې صورت کې اختياردمجلس ترحده پورې محدودنه دی بلکې ترهغه وخته پورې ښځې ته دطلاق اختيارباقي دی ترڅوپورې چې دلګول سوې قيدوخت تيريږي ،دقيددوخت له تيرېدووروسته اختيارپخپله ساقطيږي ، دامرک بيدک په ذريعه هم په اختيارکې دورځواوتاريخ وسعت کيږي په عالمګيري کې ددې تصريح موجوده ده: وان قال امرك بيدك يومًا اوشهرًا اوسنةً اوقال اليوم اوالشهر اوالسنة وقال هذا اليوم اوهذا الشهر لايتقيد بالمجلس ولها الامر فى الوقت كله تختار نفسها فيما شاءت منه ( عالمګيری ص: ۳۹۳ج: ۱)

ترجمه: که چيرې ووايې چې ستاکارستاپه لاس دی يوه ورځ يامياشت ،ياکال اوياووايې چې نن ورځ ،يامياشت ياکال ياووايې چې په دې ورځ ياپه دې مياشت کې داوياپه مجلس پورې نه مقيديږي بلکې دښځې لپاره ټول وخت اختيارسته کله چې هم وغواړي خپل اختيارپه کاراچولای سي.

دارازکه چيرې دڅوورځوپه قيدسره اختيارورکړي اوداسې ووايې:

امرك بيدك الى عشرة ايام فامرها فى يدها من هذا الوقت الى مضى عشرة ايام ( عالمګيری ص: ۳۹۲ج: ۱)

يعنې که چيرې په معلوموختونوکې مثلا لس ورځې ياله نن څخه ترلسوورځو پورې نوترلسوورځوپورې اختيارباقي پاتيږي.

## وکيل جوړول

دوکیل جوړولودصورت بحث هم تیرسوی دی که چیري خاونددبل دوهم سړی په ذریعه ښځې ته دطلاق اختیارورکړي نوپه دې صورت کې هم اختیاررته حاصلیږي ،البته دغه اختیاردمجلس ترحده پورې باقي پاتي کیږي ، دارازخاوندته له دې اختیارڅخه درجوع کولوحق نسته، په عالمگیری کې له فتاوی صغری څخه نقل دی:

وفی الفتاوی الصغری ولوقال اجنبی امرأتی بیدك یقتصرعلی المجلس ولایملك الرجوع وقال فی المحیط وهذاالاصح كذافی الخلاصة( عالمگیری ص: ۳۹۳ج:۱)

یعنی کوم بیګانه سړی ته ووایې چي زمادښځې معامله تاته سپارم نودمجلس ترحده پورې دااختیارباقي پاتیږي ، خاوندته درجوع حق نسته.

## دصغیرې (نابالغې) لپاره دطلاق اختیار

دطلاق دتفویض ( سپارلو ) په باب کې بالغه میرمن اونابالغه دواړې برابرې دي که چیري خاوندبالغ اوښځه نابالغه یاددې پرعکس وي په هرصورت کې دطلاق اختیارورکول جائزدي اودښځې قبلول داعتباروړبلل کیږي دبحرملاصاحب رحمه الله وایي: واطلق فی المرأة المخاطبة فشمل الصغیرة فلوقال للصغیرة امرك بیدك ینوی الطلاق فطلقت نفسهایقع( بحرص: ۳۱۸ج: ۳ ، شامی ص: ۲۵۲ج:۲ )
علامه شامی رحمه الله هم نابالغ ته دطلاق داختیارحق ورکړی دی اووایي:
شرط ان یتکلم فیصح ان یوقع علیهاالطلاق ( شامی ص: ۲۵۲ج:۲ )
یعنی که چیري ښځه خبرې وکړي نوصحیح دی چي طلاق کیږي.
حتی چي فقهاؤدنابالغي لپاره دشعوراومراهق کېدوهم کوم شرط نه دی لګولی محض تکلم ددې دطلاق دوکالت لپاره کافی اوقابل داعتباردی.

## دمشیت (خوښې) دطلاق بحث



دتفویض ددوهمې جملې اودهغې دجزئې مسائلوتربحث وروسته دتفویض ددریمې جملې بیان هم په لنډډول مناسب معلومیږي ، له دریمې جملې څخه مراددمشیت طلاق دی اودداختیارنوعیت له مذکوره دووجملوڅخه لږجلادی ، په احکامواوجزئیاتوکې یې هم څه اختلاف سته ،البته دمشیت طلاق بعضې اصول اوضوابط اوجزئی مسائل له هغونوروددووجملوسره ترکافي حده پورې یوشان دي ، دمشیت په طلاق کې هم دتفویض ( طلاق سپارلو ) دشرائطولحاظ ضروری دی ، ترمجلس پورې محدودکېدل ، درجوع حق نه درلودل وغیره هم دمشیت له طلاق سره متعلق دي ، دبحرالرائق ملاصاحب رحمه الله هم ترعدم رجوع لاندې تفصیلی بحث کړی دی:

ای ولایملك الزوج الرجوع عن التفویض سواء كان بلفظ التخیراوبالامربالید، او طلقی نفسك ( بحرالرائق ص: ۳۲۷ج: ۳ )

دمجلس دتجدید( نوې کولو ) په صورت کې محقق موصوف مسئله داسې بیان کړې: انه تملك وهویقتصرعلی المجلس ( بحرالرائق ص: ۳۲۷ج: ۳ )
یعنی خاوندته له تفویض څخه درجوع حق نسته خواه که داختیارپه لفظ سره وي یادطلاق واخله په لفظ سره وي دالفظ دتملیک ( په ملک ورکول ) دي دمجلس ترحده پورې باقي پاتي کیږي.

## داذا، اومتي حکم

نورې دتعلیق مسائلې هم دمشیت طلاق دباب یوه حصه دي ، لمافیه من معنی التعلیق ، دردمختاردمشیت طلاق متعلق بعضې الفاظ داسې هم دي چي دهغوئ تذکره دمجلس تجدیدختم کوي دکوموتذکره چي فقهاء کراموپه دې الفاظوسره کړې ده ، دمثال په توګه که چیري ښځې ته د(طلقنی نفسك ان شئت ) پرځای د( متی شئت ) په لفظ سره اختیارورکړي نوځرنګه چي دمتی په لفظ سره دوخت دتعمیم ( عاموالی ) وطرفته اشاره کیږي ، له دې وجې نوپه داقید سره دمجلس تجدیدختم کیږي اوښځې ته اختیارترمجلس دباندې هم

باقي پاتیږي ،اذااوحين ( دکله اوهروخت الفاظ هم له متى سره مرادف دي . اوددواړوپه استعمال سره هم دمجلس قيدختم کيږي څرنګه چي دبحرمحقق ابن نجيم ليکي:

واذازادمتى شئت كانت لهاالتطليق فى المجلس وبعده لان كلمة متى عامة فى الاوقات (بحرالرائق ص: ۳۲۲ج : ۳)

که چيري هم د( کله چي غواړې ) لفظ استعمال سي نوښځې ته په مجلس اوله مجلس وروسته په دواړوحالتونوکې اختياردى ، له دې وجې چي ( کله هم غواړې ) يوعام لفظ دى ، کوم چي دوختونوپرعاموالى باندي دلالت کوي.

بيا ليکي: فدخل اذاالخ ودخل حين قال فى المحيط ولوقال حين شئت فهوبمنزلة قوله اذاشئت لان الحين عبارة عن الوقت ( بحرالرائق ص: ۳۲۸ج: ۳ )

## دتعليق يوصورت

دتعليق بعضى صورتونه داسي هم دي دکوموپه استعمال سره چي دمجلس قيدختميږي ، اوښځه له مجلس وروسته هم دخپل اختيارا استعمال کولای سي مثلا خاونداسي ووايې چي ته خپل ځان ته ترډوډۍ خوړلومخکې ،مخکې طلاق ورکړه نوترډوډۍ خوړلومخکې ،مخکې اختيارباقي پاتيږي ، دمجلس هيڅ اعتبارنه کيږي.

په فتاوى شاميه کې دي:

بخلاف اذاعلقه بشئ آخرمن افعالها كالاكل فانه لايقتصرعلى المجلس هذا(شامى ص: ۲۲۹، ج: ۲)

ترجمه: په خلاف دهغه چي طلاق له کوم بل شى سره متعلق کړي ، مثلا دښځې له يوبل کار( ډوډۍ وغيره ) سره يې معلق کړي نواوس دمجلس پابندي نه کيږي

## په مشيت کې دطلاق دلفظ صراحت

دمشيت په طلاق کې که چيري دطلاق لفظ صريح ( ښکاره ) ووايې داسي چي خاوندښځې ته ووايې چي که چيري ته غواړې نوخپل ځان طلاق کړه ، ښځه هم



په جواب کې خپل ځان طلاق کړي نوبرابره خبره ده که خاوند دطلاق نيت کړي وي يانه ، ياېې ديوه طلاق نيت کړى وي يادووپه هرصورت کې يورجعى طلاق واقع کيږي په دې کې هيڅ قسم تاويل نه ځاييږي په دې باب کې هم ددوونيت دصراحت له وجې غيرمعتبربلل کيږي ، په درمختارکې دي:

قال لهاطلقي نفسك ولم ينواونوى واحدة اواثنتين فى الحرة فطلقت وقعت رجعية (درمختارمع حاشيه ردمحتارص: ۲۲۸ج: ۲ )

ددوونيت پرمحض عددبللوباندي علامه شامى رحمه الله ليکي:

لانهمافى حقهاعددمحض ( شامى ص: ۲۲۸ج: ۲ )

البته که چيري خاونددمشيت په طلاق کې په صراحت سره اقرارکوي نوښځې ته ددروطلاقونواختيارحاصليږي هغه که په يوه جمله کې وي ياپه جلا ، جلا جملو کې وي ددواړويوحکم دى ،د( وان طلقت ثلاثًا ونواه وقعن درمختار ) ، لاندي محقق ابن عابدين رحمه الله ليکي:

اى الثلاث اوقعتهابلفظ واحدة اومتفرقاالخ.

دمشيت هغه مسئلې په کوموکې چي دطلاق اختياردمجلس ترحده پوري وي په هغوئ کې که چيري ښځه ترهغه وخته اختيارنه غواړي نودهغې له لاس اختياروځي لکه څرنګه چي دعلامه شامى رحمه الله له تصريح نه معلوميږي:

وظاهره انهاان لم تشأفى المجلس خرج الامرمن يدها ( شامى ص: ۲۲۹ج: ۲ )

که چيري ښځه دمجلس ترحده پوري دااختيارا استعمال نکړي نواوس اختيار دهغې له لاسه ووت.

## دعموم فائده

په دې سلسله کې يوه بله خبره هم دذکروړده چي که چيري خاونددروطلاقون اختياردښځې خوښې ته وسپاري اوښځه ددروپرځای ديوه يادووااستعما اختيارکړي نودفقهاؤکه څه هم په دې سلسله کې اختلاف دى ، نوصحيح

مسلک همدادی چي کله ښځه درې طلاقونه پرځان واقع کولای سي نوددواو یوه واقع کېدل خوپه طریقه اولی سره کولای سي اودمشیت ( خوښې ) مفهوم ددې تقاضاکوي چي له دې عموم څخه ښځې ته هررنګه اختیارحاصلیږي ،موصوف له بحرالرائق څخه نقل کوي اولیکي:

قال فی البحر لافرق بین الواحدة والثنتین ( شامی ص: ۲۷۰ ،ج: ۲ )

بیاله فتح القدیرڅخه ددلیل په توګه داسي نقل سوې دي:

وقال فی الفتح لانها لماملکت ایقاع الثلاث کان لها ان توقع منها ماشاءت کالزوج نفسه ( شامی ص: ۲۷۰ج ۲: )

یعنی کوم اختیارچي خاوندته وواوس ښځې ته هغه اختیارهم دی که درې یاتردروکم وغواړي نوکولای سي لکه څرنګه چي بدخاوندکولای سوای.

علامه رملی رحمه الله څومره ښه خبره کړی ،لیکي:

قال الرملی مقتضاه ان فی مسئلة ما اذاقال لها طلقی نفسک ونوی ثلاثاً وطلقت ثنتین تقع ثنتان ( شامی ص: ۲۷۰ج: ۲ )

خاوندووایې : چي ته طلاق واخله اودرې یې مرادوي اوښځه دوه واقع کړي نودوه واقع کیږي.

**دمشیت مرادفات ( یعني هغه چي دمشیت په څیرمعني یې وي )**

له مشیت طلاق پرته بعضی الفاظ داسي هم دي دکوم دمعنی په رعایت کولو سره چي فقهاء کرامودمشیت په حکم کي شمارلې دي همداوجه ده چي که څوک دطلقی نفسک ان شئت پرځای ان اردت ، ان رضیت داسي الفاظ استعمال کړي نوداهم دمشیت په حکم کي راځي اوښځې ته دطلاق اختیاردمجلس ترحده پورې حاصلیږي ، علامه شامی رحمه الله دبعضی الفاظوتعین کړی دی ،لیکي:

والارادة والرضأ والمحبة کالمشیة ( شامی ص: ۲۲۹ج: ۲ )

**دتفویض ( طلاق سپارلو ) دوهم شکل**



دمشیت طلاق ترفارغېدووروسته اوس موږدتفویض طلاق دوهم شکل پیشول غواړو، دتفویض طلاق دوهم شکل توکیل دی یعنی خاونددپخپله اختیار ورکولوپرځای یودوهم سړی دخپل ځان پرځای وکیل جوړکړي اودکومو خبروچي یې هغه وکیل جوړکړی وي په هغوئ کې هغه دده وکالت کولای سي داراز ښځې ته دوکیل په واسطه دطلاق اختیارحاصلیږي ، ،ځکه وکیل په ډیرو معاملاتوکې داصیل قائم مقام وي لکه څرنګه چي دفقهې په کتابونوکې پوره تفصیل موجوددی:

له وکالت سره تړلې یوه مسئله بله هم مخې ته راځي هغه داچي کله یوسړی بل وکیل جوړکړي چي ته زماښځې ته طلاق یادطلاق اختیارورکړه نوله دې وروسته وکیل جوړوونکی ته درجوع حق سته ،که نه ؟،اوهغه دغه وکیل دطلاق له اختیارڅخه معزولولای سي ،که نه ؟ نوپه دې سلسله کې که څه هم دفقهاء کبارواختلاف سته خوصحیح قول همدادی چي رجوع کولای سي ، ددرمختار ملاصاحب پردې باندي تفصیلي بحث کړی دبحث په پای کې دوکیل اوتملیک فرق کوي اولیکي:

والفرق بینهما فی خمسة احکام ففی التملیک لایرجع ولایعزل ولایبطل یعنون الزوج الخ بخلاف التوکیل ( شامی ص: ۲۵۲ج: ۲ ،درمختارعلی هامشه ردالمحتار )

له دې څخه معلومه سوه چي په تملیک کې نه درجوع حق سته اونه هغه باطلولای سي خوپه توکیل کي جائزدي دتمیلک په صورت کې یې ښځې ته براه راست (پخپله ) دطلاق دواقع کېدواختیارورکړی دی که چیري خاوندو غواړي چي له دې تملیک څخه رجوع وکړي نونسي کولای ، کله چي یې ښځه مالکه جوړه کړه نودطلاق دواقع کېدواونه واقع کېدودواړواختیار منده ښځه سوه ، که غواړې په مجلس کې دننه دي ددغه ملکیت قبول وکړي یادې دناخوښی اظهاروکړي ،هغه دې ردکړي ددواړواختیارورته سته.

**دتفویض درییم شکل**

دبحث په پای کې دتفویض ددریم شکل جائزه اخستل کیږي ، ددې شکل تعبیر علامه ابن عابدین رحمه الله په دې عبارت کې درسالې په عنوان کړی ،لیکي:

كان يقول الرجل اذهب الى فلانة وقل لها ان زوجك يقول لك اختاري فهوناقل الكلام المرسل لامنشئ لكلامه ! (شامي ص: ۲۵۳ج:۲ ).

ترجمه :مثلاً یو سړی ته وواېي چي فلانۍ ښځې ته ورسه ورته ووایه چي ستا خاوندتاته اختیارد رکړی دی نوهغه دکلام نقل کوونکی دی دکلام دانشاء ( نوي له سره کلام ) حق هغه ته نسته.

درسالې چي کوم شکل علامه موصوف لیکلی دی هغه ته موږپه خپله ژبه کې قاصدوایو،ځکه چي ددې حیثت هم دمحض معبردی اوهغه صرف دحکم رسوونکی دی.

## دخط په ذریعه اختیارورکول

ددې صورت په نظرکې نیولوسره موږداهم وایوچي که چیري خاونددخط په ذریعه هم ښځې ته دطلاق اختیارورکول غواړي نوورکولای یې سي ،ښځې ته که خط ورسیږي یاهغه په یقیني توګه په خط خبره سي نودطلاق اختیارهغې ته حاصلیږي البته دایقیني کېدل ضروري دي چي داخط هغې ته راغلی دی دخط په ذریعه دطلاق داختیارحاصلولولپاره دمجلس اودنوروامورودتفویض رعا یت کول هم ضروري دي.

## داختیاردباطلولومختلف ډولونه

اوس موږتردې عنوان لاندي داختیارپرباطلولوباندي بحث کوو، مخکې دطلاق داختیارپرتفویض اودهغه پربقاء باندي لنډبحث وسو،دلته هغه صورتونه ښوول کیږي دکوموپربناچي دطلاق ا ختیاردښځې له لاسه وځي ، مخکې موږدخیارمجلس پربطلان باندي مختصربحث کول غواړو، دمجلس



تفسیرمخکې هم تیرسوی دی البته دمجلس هیڅ تعین نه وروسوی چي له څه وخته ترڅه وخته پوري مجلس ورته ویل کیږي ، دفقهاء کرامولہ تشریحاتوڅخه ددې پته ضرورکیږي چي ښځه ددې بحث ترمکمل کېدواوله دې ځایه تر جلا کېدوپوري دمجلس حکم دی خواه که په دې موده کې یوساعت یایوه ورځ تیره سي اوس ښځې ته په خپل مجلس کي په کوم کې چي دطلاق اختیارورکول سوی دی دا حق سته چي هغه دااختیاررد کړي یایې په مجلس کې دننه قبول کړي دمجلس په بدلیدو یادښځې په ناخوښۍ سره دطلاق اختیارباطلیږي.

دمجلس دبدلیدپه اړه دعلماؤاختلاف دی ، بعضومحض دښځې له مجلس څخه ولاړېدل داختیاردباطلیدولپاره کافي بللی دی اوبعضوله مجلس څخه جلا کېدل داختیاردباطلیدودلیل بللی دی مګرصحیح قول دادی چي دښځې اعراض ( ناخوښي ) دطلاق اختیارباطلوي خواه دااعراض اوانکارله مجلس څخه په ولاړېدووي یاپه مجلس کې دننه په ناسته سره وي لکه څرنګه چي محقق ابن عابدین رحمه الله دااصح قول یادونه کړې اووایې:

ولان بطلانه بكل قيام مطلقاقول البعض والاصح كمافي البحرانه لابدان يدل على الاعراض ( شامي ص: ۲۵۴ج:۲ )

دبعضوقول داچي په مطلق ولاړې سره اختیارباطلیږي خوصحیح قول همدادی لکه څرنګه چي په بحرالرائق کې دي هغه داچي پراعراض ( ناخوښۍ ) باندي دلالت کېدل شرط دی.

خبره واضح سوه چي نفس ولاړه هم دبطلان لپاره کافي نه ده بلکي داسي ولاړېدل چي له هغې څخه اعراض اوانکارمعلومیږي همداوجه ده چي که چیري ښځه دداسي کارلپاره ولاړه سي چي هغه داختیارپه قبول پوري تړلی وي لکه شاهدرابلل اوداسي نور، نوولاړېدل بلکي ولاړېدل اوله هغه ځای په تللوکې هم هیڅ حرج نسته اختیارباقی دی په ردالمحتارکې تصریح ده:

لوخيرهافلبست ثوبًا اوشربت لايبطل خيارهالان اللبس قديكون شهوذا(شامي ص: ۲۵۴ج:۲ )

البته له کوم پردی سړی سره دښځې خبرې کول فقهاؤدخیارباطلول بللې دي ، دعمل په ذیل کي دمحقق ابن عابدین رحمه الله تصریح ده : ودخل فی العمل الکلام الاجنبی ( شامی ص: ۷۵۴ج:۲ )

واضحه دي وي چي په یادوسویوټولوصورتونوکې دطلاق داختیارباطیلېدل هغه وخت ښکاره کیږي کله چي خاونددطلاق اختیاربېله کوم قیداوبندڅخه ورسپارلی وي لیکن چیري چي دورځویاتاریخ قیدوي اوخاوندپه کومه ورځ .هفته .میاشت یاپه یووخت پورې مقیدکړی وي نوپه هغه وخت کې ولاړېدل اختیارنه باطلوي اونه له دې مجلس څخه په جلاوالی سره ، بلکي په دې صورت کې که چیري له یوپردی سړی سره خبرې هم وکړي نواختیارنه باطلیږي دمثال په توکه که چیري داسي ووایې چي تریوې میاشتې پورې تاته د طلاق اختیاردی نوپوره میاشت اختیارباقي پاتیږي په دې مینځ که ښځه هرڅه هم وکړي بیاهم اختیارباقي دی هودمیاشتې له تېرېدووروسته اختیارپخپله ساقطیږي محقق ابن عابدین رحمه الله په خپل مشهورکتاب ر دالمحتارکي لیکي:

وهذا فی الخیرالمطلق واماالمؤقت بشهرمثلا فلایبطل بذلك مادام الوقت باقیا( شامی ص: ۷۵۴ج:۲ )

دااختیارد مطلق په صورت کې دی لیکن که موقت وي نوبیا دوخت ترتیرېدو پورې اختیارباقی دی.

دفقهې په معتبرکتاب عالمګیري کې دي:

قال لها طلقی نفسك فلها ان تطلق نفسها مادامت فی مجلسها ذلك وان تطاول یومًا اواکثرمالم تقم منه ( طبع جدید ص: ۳۸۷ج:۱ )

ترجمه : خاوندښځې ته ووایې چي خپل ځان طلاق کړه نودمجلس ترحده پورې هغه خپل ځان ته دطلاق ورکولواختیارلري که چیري په وخت کې دیوې ورځې یاترهغې دزیات ګنجائش وي نوترهغه وخت پورې خبره پاتیږي.

له مجلس څخه مجلس دښځې مراددی ، یعنی که چیري خاونداختیارورکړي ، له مجلس څخه ولاړسي نودهغه په ولاړېدواوتلوسره اختیارنه ساقطیږي بلکي



دلته دښځې پرولاړېدواونه ولاړېدوباندي بحث دی اوداختیارساقطولومدار دښځې پرولاړېدواونه ولاړېدوباندي دی له دې وجې چي دښځې ناسته خواوس هم قائمه ده خاوندکه غواړي ولاړدي سي ،کله چي دښځې دمجلس اعتباردی اودهغې په ناسته سره خیارباطلیږي نوبیادخاونددمجلس لحاظ څرنګه کیږي ، په دې سره دښځې دحق وهل کیږي که چیري خاوندولاړسي نواختیاردښځې په لاس کي دئ په عالمګیري کي دي:

اذاقام هومن المجلس فالامرفی یدها مادامت فی مجلسها(.طبع جدید ص: ۳۸۷ج:۱ )

که چیري خاوندولاړسي نواختیاردښځې په لاس کې دی ترڅوپورې چي هغه ناسته وي.

اوس دمجلس له بحث څخه ترفارغېدووروسته هغه ټول صورتونوپیشیږي دکوموپه ذریعه چي دښځې دطلاق اختیارباطلیږي په دې سلسله کې موږ د عالمګیری عبارت پیشووپه کوم کې چي دخیاردباطلېدوټول صورتونه یوځای کړل سوې دي:

اذاقامت عن مجلسها قبل ان تختارنفسها وکذا اذا اشتغلت بعمل آخرلعدم انه کان قاطعالماقبله کمادعت بطعام لتاکله اونامت اونشطت اواغتسلت اواختضبت اوجامعها زوجها اوخاطبت رجلا بالبیع والشراء فهذا کله یبطل خیارها کذا فی سراج الوهاج ( ص: ۳۸۷ ، ج:۱ )

ترجمه : داختیارتراستعمالېدومخکې له مجلس څخه ولاړېدل ، یاکوم داسي کارکول له کوم څخه چي له مخکې خبرې سره تعلق قطع کېدل نه معلومیږي لکه چي دډوډۍ خوړلو یادوېدېدویانشاط یاغسل یااختضاب لپاره ولاړه سي یاخاوندکوروالی ورسره وکړي یاله کوم چاسره دبیع اوشراء په هکله خبرې وکړي په دې ټولوسره خیارباطلیږي.

پرزیاتوجزئیاتوبې بحث کړی ،لیکي: چي که چیري په دې مجلس کې دننه اوبه وڅیښي یامعمولي غوندي خوراک کول دکوم په رااخستلوکې چي دولاړېدو زحمت نه وي نودومره لږاندازه فقهاؤصرف نظرکړې ده ،اختیاریې باقي بللی

دی .دارازښځي ته خوب ورسي په ناسته ویده سي ، یاپه ناسته ،ناسته کېږي راواخلي یاکوم کاروکړي چي له هغه څخه اعراض نه معلومیږي نوپه دې سره اختیارنه باطلیږي په عالمګیري کي دي: ان اتمت قاعدة اولبست ثیابا من غیران تقوم اوفعلت فعلا قلیلا یعلم ان لیس باعراض لم یبطل خیارها( ص: ۳۸۷ج:۱)

که ښځه ولاړه وي دطلاق اختیاروركول سی،پرسپرلی باندي سپره سی نوخیارباطلیږي یاپریوه سپرلی سپره وي بلې ته منتقل سي نوهم دخیاربطلان ظاهردی ، یاسپره وي اختیاروركول سي ،له سپرلی راکښته سي یالاندي وي پرسپرلی سپره سي نوپه دې صورتونوکي هم اختیارساقطیږي.

## یوه مسئله

دتفویض( طلاق سپارلو ) په جزئیاتوکي دیوې جزئې مسئلې ذکرفقهاؤداراز هم کړی دی ، اودارازواقعات عموما مخي ته راځي اوله دې وجې هم دهغه ذکرکول اهمیت لري چي نالوستي حضرات په لویه غلطي کي مبتلاکوي ، ناجائزه لاره غوره کوي مسئله داده چي که چیري دښځي اولیاء له خاوند څخه دطلاق مطالبه وکړي ،خاونددښځي وپلارته دطلاق ورکولوپرځای دارازجواب ورکړي ، چي ته څه غواړې هغه وکړه اودانجلی پلارداطلاق اختیاروبولي انجلی ته طلاق ورکړي اوبل ځای یې واده هم کړي نوفقهاؤلیکلي دي چي نه دارازطلاق صحیح کیږي اونه نکاح صحیح کیږي بلکي حرام اوزناکاري کیږي له دې وجې چي دخاوندپه دې ویناسره نه دطلاق اختیارراځي اونه طلاق واقع کیږي هوکه چیري خاوندپه دې وینا( چي ته څه غواړې ویې کړه ) سره دتفویض طلاق نیت وونوانجلی ته دپلارطلاق ورکول صحیح کیږي اودنیت کولواونه کولوپه سلسله کي دخاوندقول معتبردی.

په خلاصه کي ددې مسئلې بیان په وضاحت سره په فتاوی هندیه کي نقل سوی دی:



اولیاء المرأة اذاطلبوامن الزوج ان یطلقهافقال الزوج لابیهاماذاتریدمنی افعل ماترید وخرج ثم طلقهاابوهالم تطلق وان لم یرذالزوج التفویض ویکون القول قوله انه لم یردبه التفویض کذافی الخلاصة ص: ۴۰۷ج : ۱ ، عالمګیری طبع جدیدمع قاضی خان )

## درجعت ( رجوع کولو) بحث

دطلاق دټولو مسائلواودهغه دجزئیاتوترفارغېدووروسته موږپه طلاق پورې دتړلي یوې اهمې مسئلې ذکرکول غواړو ، له کوم څخه چي په فقهي اصطلاح کي په باب الرجعت سره تعبیرکیږي ، درجعت دمسائلوهم په دې باب کي لوئ اهمت دی ، له طلاق وروسته هم شریعت رجوع کول ددوانسانودیوځای کولوذریعه ګرځولي ده ، اوپه دې باب کي رجعي طلاق ترټولودکمې درجې طلاق بلل سوی دی ، په دې کي دومره قوت نسته چي دزوجینوپه مینځ کي جلالوالی پیداکړي ، البته دغه سهولت اوکمزوري تریوې معلومې مودي پورې ده بیاختمیږي ،په دې کي دغوراوفکرموقع سړی ته په لاس راځي ،درجعت په دې اوږده موده کي چي هم زوجین دخپلې اصلاح کوشش ونکړي نوښځه له نکاح څخه وځي شرعًا له مذکوره مودي څخه تعبیرپه عده سره کیږي له عدې تېریدووروسته ( هغه که دري حیضونه وي کله چي ښځه حیض والا وي یادرې میاشتې ) په رجعي طلاق کي داسي قوت پیداکیږي چي درجوع حق ختم کیږي اوښځه بائنه ګرځي.

اوددې ترټولولویه وجه همداده چي طلاق دسخت ضرورت په بنیادمشروع ( جائز) سوی دی اودطلاق له طریقي څخه هم داخبره واضح کیږي چي یورجعي طلاق احسن طلاق دی ددې لپاره چي دده په ذریعه سره چي په وختي توګه کوم ازدواجي تعلقات خراب سوې هغه مسائل حل سي اوتعلقات دګل غوندي ښه سي مګردغه سهولتونه هغه وخت میسرکیږي کله چي یورجعي طلاق ورکړي ، په عده کي دننه رجوع هم وکړي لکه څرنګه چي ددې پرفلسفه اومعقولیت

باندي مخکښي مفصل بحث سوی دی اوس هم موږصرف دهغومسائلونشاندهي کووپه کوموسره چي درجوع کولوتحقق اوشرعي طریقي اثبات کیږي.

## یوشرط

درجعت ( رجوع کولو ) ترتفصیل مخکښي موږدرجوع کولوپرشرائطوباندي بحث کول غواړودکوموپادونه چي فقهاء کراموهم کړې ده ،رجعت له شرائطوسره متعلق دفقهاؤدبحث خلاصه داده چي رجوع کول له رجعي طلاق وروسته متحقق کیږي له رجعي پرته چي دطلاق څومره اقسام دي په هغوکښي رجوع کول جائزنه دي ددرمختارپه عبارت کښ ددي دلیل دادی : ان لم یطلق بائنًا فان ابانهافلا الخ !

که چیري یې بائن طلاق نه وي ورکړی خوکه چیري یې بائن طلاق ورکړی نوبیا رجوع نسي کولای.

پردې عبارت باندي دردالمحتاردملاصاحب رحمه الله تبصره وګورئ:

هذابیان لشرط الرجعة ولهاشروط خمس تعلم بالتامل ( شامی ص: ۷۷۰ج: ۲ )

ترجمه : دادرجوع کولودشرط بیان دی دهغه پنځه شرطونه دي کوم چي په غورکولوسره معلومیږي.

که څه هم درجوع کولوپنځه شرطونه بیانیږي مګردټولوحاصل دادي چي درجوع کولولپاره رجعي طلاق شرط دی څرنګه چي یې تصریح هم ده:

ولایخفی ان الشرط واحدهوکون الطلاق رجعیًا ( شامی ص: ۳۷۰ج: ۲ )

په حقیقت کښ شرط یودی یعني رجعي طلاق ورکول.

تردې زیات وضاحت دمبسوط سرخسی رحمه الله له عبارت څخه هم کیږي لکه څرنګه چي له رجعي طلاق پرته درجوع نفي کوي اولیکي:

اذاکان معتدة من تطلیقة بائنة اوفرقة بخلع اوایلاء اولعان اواختیاربیدامرنفسهااوبالامربالیداوماشبهه ذلك فلا رجعة له علیها!



ترجمه : که چیري ښځه له بائن طلاق څخه عده تیروي یادخلعې په ذریعه جلاوالی سوی وي یاداِیلاء، لعان ، یااختیاربنفسهایاله هغوئ سره دمشابه استعمال سوی وي نوپه دې کې درجوع کولوامکان نسته.

## دمودې تحقیق

په مخکښي کي ددې تصریح تېره سوې ده چي په عده کي دننه درجوع کولوحق لري له عدې تیریدووروسته دخاوندلپاره درجوع کولوهیڅ لاره نسته پرداسي موقع دنکاح نوې کول ضروري دي ، دبحرالرائق ملا صاحب رحمه الله دعدې دقیدتصریح داسي کړی اولیکي:

وقیدبقیام العدة لانه لارجعة بعدانقضائها ( بحرالرائق ص: ۵۰ج: ۴ )

دمودې دنه تیریدوقیدله دې وجې دی چي له هغې وروسته رجوع کول صحیح نه دي.

ددې په ضمن کي یوه خبره بله هم دذکروړده هغه داچي له عدې څخه مرادعده ددخول ده یعني خاوندترطلاق ورکولومخکښي له ښځې سره وطي (کوروالی )هم کړې وي ، خلوة هم کافی نه دی بلکې وطی شرط دي همداوجه ده چي له نکاح وروسته تروطی مخکښ که چیري طلاق ورکړي نوهلته بیادرجوع کولوحق نه لري ددرمختارعبارت دادي: مادامت فی العدة ای عدة الدخول حقیقتًا اذلا رجعة فی عدة الخلوة الخ !

علامه شامی رحمه الله پرخلوت دااضافه کړې ده اولیکي:

ولوکان معهالمس اونظربشهوة ولوالی الفرج الداخل ( شامی ص: ۷۲۸ج: ۲ )

څرنګه چي دعدې اورجوع کولوپه احکاموکې فرق سته عده په محض خلوة سره هم واجبیږي مګردرجوع کولولپاره وطی ضروري دي لکه څرنګه چي محقق ابن عابدین رحمه الله تصریح کړې ده:

لان العدة قدتجب بالخلوة الصحیحة بلا دخول ولاتصح بهاالرجعة ( شامی ص: ۷۲۸ج: ۲ )

ترجمه : عده خوپه خلوة صحیحه پرته دذکرله دخوله هم کیږي لیکن رجوع کول دذکرله دخول پرته نه صحیح کیږي.

## په رجوع کولو کې دا کراه اوزوحکم

په زورسره هم درجعت تحقق راځي په دې کې دښځې رضاهم ضروري نه ده.

وتصح مع الاکراه اوالهزل واللعب والخطاء کالنکاح کذافی البدائع ( بحرالرائق ص: ۵۰ج: ۴ )

ترجمه: رجوع کول په مسخرو، بازیوغلطي سره هم کیږي لکه نکاح، زیات داچي په مسخرواوغلطۍ سره درجوع کولوحکم هم درجعت دی په شریعت کې هم ددغودواړوپه مینځ کې فرق نسته ددواړویوحکم دی.

## رجعت ( رجوع کول ) په قول سره

فقهاء کرامورحمهم الله درجوع کولودوه صورتونه جائزکړي دي، یوقول اوبل فعل دقول رجوع کول يې مستحب اوافضل ښوولی دی له فتح القدیرڅخه نقل سوې دي علامه شامی رحمه الله لیکي:

والمستحب ان یراجعها بالقول ( ص: ۷۲۹ج: ۲ )

په ژبه سره رجوع کول مستحب دي.

په قول سره درجوع کولومختلفې طریقې دي په هره یوه سره رجوع کول صحیح دي مثلا داووایې: چي ماتاته رجوع کړې ده، ماته ساتلې يې، په مذکوره جملوسره رجوع کیږي که يې درجوع نیت وي، که نه په مذکوره صورتونوکې هغه وخت رجوع کول کیږي کله چي ښځه مخامخ موجوده وي اوهغې ته براه راست خبرې کوي مګردښځې دنه شتون په صورت کي هم رجوع کیږي ددې بهتره طریقه داده چي درجوع کولوپه وخت کې دوه شاهدان ونیسي اودهغوئ په مخکې ووایې چي تاسودواړه شاهدان یاست چي ماخپلې ښځې ته رجوع کړې ده ددې لپاره چي په راتلونکي کي يې ددلیل په توګه پیشولای سي اوښځې یادهغې اولیاؤته ددې خبرې موقع په لاس ورنسي چي تاپه عده کې دننه رجوع نه ده کړې نوځکه دااوس ستاښځه نه ده دمذکوره صورتونوبیان فقهاؤداراز کړی دی دمحقق ابن عابدین رحمه الله تحقیق ستاسوپه مخکی دی.



راجعتک فی حال خطابها ومثله راجعت امرأتي فی حال غیبتها ص: ۷۲۸ج: ۲ شامی ورددتک وامسکتک بلانیة لانه صریح ( درمختار )

دقول درجوع کولوپراولویت باندي محقق شامی رحمه الله لیکي: والاولی ان یقول بالقول نحوراجعتک ( شامی ص: ۷۲۸ج: ۲ )

## رجعت ( رجوع کول ) په فعل سره

څرنګه چي اوس، اوس عرض کړل سوچي په قول سره رجوع کول افضل دي که څه هم په عمل سره هم متحقق کیږي مګرفقهاؤداطریقه ښه نه ده بللې بلکي مکروه يې بللې ده درمختارد(وبالفعل مع الکراهة )په څنګ کي په فعل سره درجوع کولوصورتونه لیکلې دي، علامه شامی رحمه الله لیکي:

الظاهرانهاتنزیهیة (شامی ص: ۷۲۸ج: ۲ )

په دې کې دهریوه لپاره فقهاؤدخاوندیاښځې درجوع کولوپه وخت کې شهوت ضروري بللی دی، په څنګ کي يې داویلې چي درجعت په ټولوصورتونوکې شهوت ضروري دی پرته له شهوته رجعت نه راځي. ښځه په نکاره کول، جماع ورسره کول، وطی بالدبر، مچه څیني اخستل ( په مچه اخستلوکې مخ، تندی اوسرهم داخل دي ) دښځې دراتینګېدوپه صورت کې کېږې حائل کېدل هم له رجوع کولوڅخه مانع نه دي، شهوت دلته هم ضروري دی، دښځې دخاص مقام لاندینۍ حصې ته په شهوت کتل هم درجوع لپاره کافي دمذکوره صورتونو ذکرفقهاؤپه داسي طریقه سره کړی دی په فتاوی قنیه کي دي: الادخال بدبرهالیس برجعة والفتوی انه رجعة( ص: ۹۹ ) ترجمه: دښځې په مقعده (دبره ) کي ذکردننه کول رجعت نه دی لیکن فتوی پردې ده چي رجعت دی

یصیرمراجعابوقوع بصره علی فرجها بشهوة من قصد الرجعة ( ص ۹۹ )

که چیري دښځې فرج ته په نیت درجوع سره په شهوت وکوري نوهم رجوع کول راځي.

البته محقق شامی رحمه الله دداخل فرج قید لګولی دی لکه څرنګه چي لیکي:

والنظرالی داخل الفرج بشهوة بان کانت متکئة (ص: ۷۹۹ج:۲)

دفرج لاندیني حصې ته کتل په داسي حال کې چي ښځې تکیه لګولې وي.

دقنیه له عبارت څخه معلومیږي چي محض فرج ته کتل په شهوت سره هم رجوع ثابتوي اودازیات مناسب هم دي دمچي اخستلو په تشریح کي ابن عابدین رحمه الله لیکي: ودخل الوطی والتقبیل بشهوة علی ای موضع کان فما اوخدا اوذقنا اوجبهة اورأسا والمس بلا حائل اوحائل یجد الحرارة بشهوة (شامی ص: ۷۲۴، ج:۲)

په دې کي له ښځې سره کوروالی، له هغې څخه په شهوت سره مچه اخستل (مچه عامه ده که پرخوله وي، که پربارخووي، که پرزنه وي، که پرتندي وي، که پرسر وي) داخل دي، ښځه بېله حائله یاسره له حائله مسه کول په کومه مسه کي چي دشهوت ګرم والی وي درجعت لپاره کافي دي.

**دنارینه شهوت شرط نه دی**

مخکي هم تیرسوچي په رجعت کي شهوت ضروری دی لکه چي علامه شامي رحمه الله لیکي:

وخرج ماذاکانت هذه الافعال بغیرشهوة (ص: ۷۲۹ج:۲)

له دې سره ددې خبره وضاحت هم ضروري دی چي له دغه شهوت څخه مراد دخاوند شهوت نه دی دښځې شهوت هم درجعت لپاره کافی دی په دې شرط چي خاوند دشهوت اقرارهم کوي په ردالمحتارکي دي:

ولافرق بین کون التقبیل والمس والنظربشهوته منه اومنها بشرط ان یصدقها (ص: ۷۲۹ج:۲)

معلومه سوه چي شهوت که دخاوندله لوري وي که دښځې له لورې وي رجعت په ثابتیږي دشهوت په قید سره دومره خبره نوره هم فهمول کیږي چي دښځې پرته له شهوت مسه کول، مچه څیني اخستل کله چي دشهوت اراده نه وي مکروه ده په محیط کي علامه شامي رحمه الله لیکي:



وفی المحیط ویکره التقبیل واللمس بغیرشهوة اذالم یرد الرجعة (شامی ص: ۷۲۹ج:۲)

که چیري دشهوت اراده نه وي نومچه اومسه کول پرته له شهوته مکروه دي.

**دخوب په حال کي درجعت حکم**

درجعت په باب کي فقهاؤ دخوب حالت هم درجعت ثابتوونکی بللی دی لهذا دمذکوره رجعت ټول صورتونه هغه که دخوب په حال کي وي یادوینښتیا به په حال کي وي ددواړویو حکم دی، که نارینه دخوب په حال کي وي یاښځه دواړه صورتونه جائزاوصحیح دي په فتاوی انقرویه کي ددې دجوازتصریح ده:

ولوجامعته المرأة وهونائم اوزائل العقل فهی رجعة الخ وکذااذاقبلته اوباشرته بشهوة وهوطائع اومکره (انقرویه ص: ۸۷ج:۱)

له مذکوره عبارت څخه ددې جوازهم کیږي مذکوره افعال کوم چي درجعت بالفعل نشاندهي کوي صرف له خاوندسره خاص نه دی ښځه یې هم استعمال کولای سي مثلا ښځه له خاوندڅخه مچه واخلي یایې مس کړي یاجماع ورسره وکړي اودا ټول شیان په شهوت سره وي نورجعت ثابتیږي البته دشهوت په هکله دخاونداقرارضروري دی څرنګه چي په شامی کي دي:

هذا اذا صدقها الزوج فی الشهوة فان انکرلاتثبت الرجعة (شامی ص: ۷۲۹ج:۲)

په مبسوط کي ددې ښه وضاحت سوی:

لاکن انها تثبت الرجعة بفعلها اذااقرالزوج انها فعلت ذلك بشهوة فاما اذا ادعت هی وانکرالزوج لاتثبت الرجعة !

(مبسوط ص: ۲۲ج: ۲)

**درجعت (رجوع کولو) افضله طریقه**

درجعت (رجوع کولو) موده څرنګه چي په عده کي دننه ده اودعدې له تیریدو وروسته مسئله بدلیږي لکه څرنګه چي له مخکې تشریحاتوڅخه ظاهره سوه اوڅرنګه چي دعدې په معامله کي دښځې خبره دهغې دفداکارۍ پربنا دغوروړده له دې وجې فقهاؤدخاونددرجعت لپاره مستحب اوافضله طریقه ښوولې ده چي تررجوع کولومخکې دوه ثقه (داعتباروړ) سړي شاهدان

مقرر کړي دي لپاره چي له عدې وروسته ښځه د عدم رجوع دعوی ونکړي بلکي د شاهدانو په مخکې رجوع کولو ته فقهاؤ سنت او پرته له شاهدانو رجوع کولو ته يې د سنت خلاف ويلې دي لکه څرنګه چي د رجعت په تقسيم کې محقق ابن عابدين رحمه الله ليکلي دي:

فالسني ان يراجعها بالقول ويشهد على رجعتها ويعلمها ولو راجعها بالقول ولم يشهد او شهد ولم يعلمها كان مخالفا للسنة كما في شرح الطحاوي ( شامی ص: ۷۳۱ ج: ۲ )

مسنونه طريقه داده چي په ژبه سره ووايې چي رجوع مې کړې ده او پر هغې باندي شاهدان هم موجود وي ښځې ته هم خبروركړي که چيري په ژبه سره ووايې مګر شاهدان نه وي يا شاهدان وي ښځې ته د رجوع خبرونښيي نو د سنت خلاف دی.
محقق موصوف د زياتې تشريح لپاره وايې: چي که رجعت بالفعل کوي نو بهتره داده چي دوباره د دې رجعت لپاره شاهدان ونيسي لکه څرنګه يې ليکلي دي:

وكذا لو راجعها بالفعل ولم يشهد ان يراجعها بالاشهاد ثانيا ( شامی ص: ۷۳۱ ج: ۲ )

د سرخسی رحمه الله په مبسوط کي دي: والاحسن له ان يشهد شاهدين بعد ذلك !
(ص: ۲۱ ج: ۲)

## دښځې د قول اعتبار

د عدې تيريدو په سلسله کي فقهاؤ رحمهم الله د ښځې قول ته اعتبار ورکړی دی څرنګه چي د عدې تيريدل د ښځې له علم سره متعلق دي، البته فقهاؤ د دې يو حد معلوم کړی دی او هغه دوې مياشتې دي يعنی په دوو مياشتو کي دننه که چيري ښځه د عدې د تيريدو دعوی وکړي نو په دې وخت د ښځې خبره نه منل کيږي او که چيري له دوو مياشتو تيريدو وروسته د عدې د تيريدلو دعوی وکړي (په دې شرط چي د حيض والاوي ) نو بيا د هغې قول منل کيږي ،ځکه په دوو مياشتو کي دننه د درو حيضونو راتلل د احنافو رحمهم الله په نزد ناممکن دی د بحر الرائق ملا صاحب رحمه الله ليکي:

والقول في انقضاء العدة بالحيض قول المرأة ولا تصدق في انقضائها في اقل من شهرين عند ابي حنيفة رحمه الله ! [partially illegible; last words unclear]



( ص: ۵۰ ج: ۴ )
د عدې په تيريدو کې د حيض په هکله د ښځې قول منل کيږي ليکن عده که تر دوو مياشتو کمه وي نو بيا د ښځې د قول تصديق نه کيږي.
له مذکوره عبارت څخه دا هم معلومه سوه چي که چيري ښځې خاوند ته ويلې وو چي زما عده صبا پوره کيږي له دې سره ،سره د ښځې انکار معتبر او د منلو وړ بلل کيږي ،ځکه چي د اصل معاملي د معلومېدو تعلق له ښځې سره دی لکه څرنګه چي په مبسوط کي دي:

اذا قالت ان عدتي قد انقضت وذلك في وقت لا تحيض فيه ثلاث حيض لم تصدق على ذلك الخ ثم بين اوفى المدة التي تصدق فيها وهو شهرين في قول ابي حنيفة رحمه الله ( ص: ۲۲ ج: ۶ )

که ښځه ووايې چي زما عده تيره سوه او موده دومره تيره سوې وي چي په هغې کې درې حيضونه نسي راتلای نو د ښځې خبره نه منل کيږي بيا يې د عدې کمه موده بيان کړي چي د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد دوې مياشتې ده.
د رجعت ( رجوع کولو ) متعلق يوه بله خبره هم د ذکر کولو وړ ده هغه دا چي د ښځې رضا کېدل هم د رجوع کولو لپاره شرط نه ده په زور سره هم رجعت ثابتيږي لکه چي په بحر الرائق کي دي:

وتصح مع الاكراه ( ص: ۵۰ ج: ۴ )

له عدې تيريدو وروسته خاوند ووايې چي ما په عده کي دننه رجوع کړې ده که چيري ښځه د هغه خبره ومني نو رجوع ثابتيږي کني نه ، په فتاوی انقرويه کي دي

: ولو قال بعد العدة راجعتك فيها فصدقته يصح والا لا (ص: ۸۷ ج: ۱ )

ترجمه: له عدې وروسته که خاوند ووايې چي ما په عده کي رجوع کړې وه نو که يې ښځه خبره ومني نو رجوع صحيح کني نه.
که د ښځې درې حيضونه تيرسي خو غسل يې لا نه وي کړی نو په دې وخت کي خاوند ته د رجوع کولو حق سته په دې شرط چي له لسو ورځو کم دوينې راتلل

بند سوي وي کني دلسوورځودتکميل په صورت کي درجوع کولوحق ترغسل
کولومخکې هم ختم کيږي په مبسوط کي دي:

واذاطهرت من حيضة غيرانهالم تغتسل فالرجعة باقية عليهاوهذااذاكانت ايامهادون العشرة !

(ص: ۲۳ج: ۲)

**دحمل ساقطيدل (غورځيدل) هم درجوع کولومانع دی**

درجعت (رجوع کولو) په باب کي کوم چي دعدې په بحث کي راغلي ددې
وضاحت هم دی چي دعدې په تيريدوکي صرف حيض مؤثرنه دی بلکي دعدې
هغه ټول صورتونه مراددي دکوموچي فقهاؤدعدې په بيان کي په تفصيل سره
يادونه کړې ده ، په ائنده کي ان شاء الله تعالى پردې باندي هم تفصيلي بحث
کيږي ، دلته صرف دومره عرضول دي چي په اسقاط دحمل سره هم هغه که په
دواء سره وي ياپه کومه بله مريضي سره وي عده ختميږي اودرجعت حق ختم
کيږي لکه څرنګه چي دبحرالرائق دملاصاحب له کلام څخه ظاهريږي:

واذاسقطت تام الخلق اوناقص الخلق بطل حق الرجعة لانقضاء العدة (بحر الرائق ص: ۵۰ج: ۴)

ترجمه: کله چي حمل (کوچنی) وغورځيږي هغه که کامل وي ياناقص په دې
سره درجوع کولوحق ختميږي ، ځکه چي عده په تيره سوه.

**دپوره اوناقص (ناتمام) خلق (پيدائښت) بحث**

اوس په دې سلسله کي دفقهاؤدتحقيق مطابق دخلق تام اوناقص وضاحت کول
هم دذکرکولووړدي ، ځکه چي دحمل مختلفي مرتبې دي هرحمل دعدې په
تيرولوکي مؤثراوفائده کوونکی نه دی بلکي دعدې دتيريدوپه سلسله کي
دداسي حمل اعتبارکيږي په کوم کي چي دانسان يواندام په يوحيثيت سره
ښکاره سوی وي ، هغه که ناقص هم وي اودحمل لږ ، ترلږه موده څلورمياشتې ده
تردې کم حمل دعدې دتيريدولپاره مفيدنه دی لکه څرنګه چي عالم شامي رحمه
الله دعدې په بيان کي تحقيقي بحث کړی دی ، وايي:

والمراد به الحمل الذی استبان بعض خلقه اوكله فان لم يستبن بعضه لم تنقض العدة !



(شامي ص: ۵۳۱ج: ۲)

ترجمه: له حمل څخه مرادهغه حمل دی دکوم چي بعضې ياټول اندامونه ښکاره
وي که يې چيري بعضې خلقت (پيدائښت) ښکاره نه وي په هغه حمل سره عده
نه تيريږي.

بياله بحرالرائق څخه نقل کوي اوليکي:

انه لايستبين الا فی مائة وعشرين يوما الخ !

دپوره اوناقص خلقت په تحقيق کي ليکي:

ان المستبين بعض خلقه يعتبرفيه اربعة اشهروتام الخلق ستة اشهر(ص: ۸۳۱ج: ۲شامي)

همدا وجه ده چي فقهاؤترڅلورمياشتې کم حمل په حمل کي نه دی شمېرلی
اوداسي حمل تعلق هم له احکاموسره نسته بلکي ددې حيثيت تروينوراتلو
زيات نه دی لکه څرنګه چي دعلامه سرخسی رحمه الله له عبارت څخه ښکاري:

**دعدې بحث**

پررجعت باندي ترمفصل بحث وروسته موږدعدې اودهغې داحکامومختصر
غوندي بحث کول غواړو دطلاق په باب کي دعدې ذکرکول هم لوئ اهميت لري
، دعدې په مسئلوڅان پوهول هم دطلاق په څير ډيرضروري دی اوداهم دطلاق
اهمه حصه ده دعدې دمسائلودنه خبرېدوپربناسړي دلويوجرمونومرتکب
کيدای سي که څه هم دعدې تعلق له ښځې سره دی مګرخاوندته هم په دې باندي
پوهېدل بې حده ضروري دي.

**دعدې فلسفه**

دعدې پرمسائلوباندي له غورکولوڅخه معلوميږي چي شريعت له طلاق
وروسته ښځه بې سراوسامانه نه ده پريښې بلکي دهغې لپاره يې قوانين مرتب

کړي دي دکوموپه مراعت کولو سره چي ښځه خپل هرجائزحق په عزتمنده طريقه سره حاصلولای سي ،ځکه خاوندته يې داتاکيدکړی دی چي له طلاق وروسته سمدستي ښځه له کوره مه باسه بلکي دعدې ترپوره کېدوپورې دهغې خوراک ،څيښاک ،جامه ،داوسيدوځای برابرول ټول پرتافرض دي ، که يې چيري ښځه نه غواړي بياهم دهغې دعدې نفقه ، مهراوکه چيري غواړي نوڅه زيات ورکړه رخصت يې کړي ددې لپاره چي هغه په دې سرمايه باندي دخپل ځان ګذاره وکړي ،حقيقت دادی چي دشريعت داحکم دطلاق ورکوونکې لپاره چي (که هغه په صحيح ياغلطه طريقه طلاق ورکړی وي )، دضروري اخراجاتوادا ينه پرهغه فرض ده ، البته دعدې مختلف قسمونه دي ، لهذادهغوئ په اعتبارسره دهغې دعدې نفقه واجبيږي اوکومه ښځه چي پرته له کوروالي طلاقه سوې وي يعنی له واده وروسته سمدستي مخکې تردخول طلاق ورکول سوی وي ، نودهغې لپاره نيم مهراوکه چيري مهرمتعين نه وي نودهغې لپاره متاع دی ، دمتاع په تفسيرکي که څه هم دعلماؤاختلاف دی مګرصحيح قول دادی چي خاوندله خپل وس سره سم دومره ورکړي چي ښځه خوشحاله سي ،البته شريعت ددې کوم خاص مقدارمتعين کړی نه دی دجامو په سلسله کي هغه مشهورې ضروري اوهغه هم دخاوندپه لحاظ کېدوسره ورکول کيږي ،دعدې يوه فائده داهم ده چي که چيري خاوندپه غصه کي دناپوهۍ له وجې په يو داسي خبره کومه چي دطلاق موجب نه وي طلاق ورکړی وي نوپه وروسته کي به پښېماني وکړي څرنګه چي ديوه يادوورجعی طلاقونوپه وخت کي په عده کي دننه هغې ته درجوع کولوهروخت موقع سته ، په بائن کي هم خاونداوښځه دهغې دعدې په ورځوکي پرخپله دماضي غلطۍ باندي دندامت اظهارکوي نوپه دوهمه نکاح سره بيارجوع کولای سي نوکه چيري عده نه وي نوخاوندبه هم اوښځه به هم پرېشانه وواودرجوع لپاره به يې هيڅ موقع نه وه نودالله تعالی لوئ احسان دی چي دعدې وقفه يې ورکړې ، ښځه اوخاوندبه غوروکړي اويوله بله به سره



يوځای سي ، دعدې په باب کي داخبره هم اهمه شميرل سوې ده چي په عده سره دنسب حفاظت کيږي ، شريعت دنسب دحفاظت اودهغه له اختلاط څخه دبچاو ترڅومره حده پورې له احتياط څخه کاراخستی دی ددې لپاره چي په دې سره بهترينه اوصحيح ټولنه تياره سي ،ځکه ددې پرمعاشره باندي لوئ اثرهم پريوځي ،دادنقطه نظرصحيح ترجماني ده لکه څرنګه چي ددروحيضونودمقدار فلسفه هم ددې غمازي کوي ، په شامی کي دي:

فالاولی تتعرف براءة الرحم والثانية لحرمة النكاح والثالثة لفضيلة الحرمة (شامی ص: ۲۵۱ج: ۲)

## عده دقرآن اوحديث په رڼاکي

دجزئی مسائلوتروضاحت مخکي دعدې داقسامو وضاحت سره له دلائلو مناسب معلوميږي دالله تعالی ارشاددی:

وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوْءٍ ،وَبُعُوْلَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ (سوره بقره )

ترجمه: طلاقې سوې ښځې تردروحيضونوپورې له ځان سره وساتئ ، اودهغوئ خاوندان دهغوئ دپرېښوولوزيات حقداره دي ،

په دې حکم سره تردروحيضونوپوري اوسېدل معلوم سو، تردې زيات حکم داسي فرمايي:

وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ أَوْ سَرِّحُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ وَلَا تُمْسِكُوهُنَّ ضِرَارًا لِتَعْتَدُوا وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ ( سوره بقره )

که چيري خاوندوفات سي نودهغوئ عده څلورمياشتې اولس ورځې ده اود حمل په صورت کې دکوچنی ترپيداکېدوپورې ده .

دالله تعالی ارشاددی:

وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنْفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ (سوره بقره)

قرآن کریم دعدې فلسفه په صفااوواضحولفظونوکي دښځود حقوقولپاره متعين کړې ده اوهمېشه يې دهغوئ دحقونوخيال ساتلی دی ، له طلاق وروسته که چيري رجوع وکړي په خپلوکې صلح وسي نوبياهم دښځوحقونه پوره رعايت سوې دي هغوئ ته په هيج يوه مرحله کي تکليف نه دی ورکول سوی او که چيري له طلاق ورکولوڅخه مقصد جلاکول وي نوله هغه وروسته هم دښځود حقونو درعايت ساتلوحکم دی ، اسلام په هره مرحله کي دښځود حقونود حفاظت ذمواري اخستې ده اوهغوئ ته يې داسي عزتمنده زندګي ورکړې چي په هيڅ يوقوم ، ملت ،مذهب اوقانون کي دهغه مثال نه موندل کيږي ، بياله طلاق وروسته دعدې دنفقې اونوروحقونوپررعايت باندي دقرآنکريم حکم داسي دی:

وَلِلْمُطَلَّقَاتِ مَتَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ (سوره بقره)

دارازيې دمهر( ولور ) ذکرکړی دی:

وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً (ايضا)

## دحيض والاښځې عده

که چيري خاوندواسي ښځې ته طلاق ورکړی وي کومه چي حيض والاوي اوحيض (مياشتنی ) مريضي ورته راځي نودهغې عده درې حيضه ده ترڅوپوري چي داعده پوره سوې نه وي ،نوبل ځای له بل چاسره واده نسي کولای (که چيري مسئله دواده دجوازوه) ، اوکه چيري خاونديويادوه طلاقه ورکړي وي نوپه عده کي دننه هغه ته ردولوحق سته بلکي داډيربهتره هم ده.

## دحيض دمقدارحکم

فقهاؤليکلي دي چي ښځه که چيري دنهوکالووي اوهغې ته وينه راځي اوهغه تردرووړخوپوري جاري وي نودهغې وينه حيض شمېرل کيږي علامه شامی رحمه الله ليکي: واقله فی المختار ثـم وعليه الفتوی ای فانها تترک الصلوة والصوم وعن ابی حنيفة رحمه الله لاتترک حتی يستمر ثلثة ايام ( شامی ص: ۲۰۷ج:۱)



خوترنهوکالودکم عمردانجلۍ وينه حيض نه شمېرل کيږي لهذاله نهوکالونيولي ترپنځه پنځوس کالوپوري که چيري ښځې ته وينه راتله نودهغې عده به په حيضونوسره وي.

## په خلوة صحيحه سره دعدې حکم

که چيري خاوندله واده وروسته له ښځې سره وطی ياخلوة صحيحه ( داسي يواځې والی په کوم کي چي دښځې اوخاوندپه مينځ کي هيج يوشرعی اوطبعی قسم مانع نه وي ) وکړي نوددې ښځې لپاره له طلاق وروسته عده تيرول ضروري دي.

فطلقها بعد الدخول اوبعد الخلوة الصحيحة کان العدة کذافی فتاوی قاضی خان ص : ۱۵۷ج : ۲ ،عاملګيری )

## په فاسده نکاح کي دعدې حکم

البته دفاسدې نکاح په صورت کې که چيري دخول نه وي سوی اوخلوت صحيحه سوی وي نودعدې تيرېدوضرورت نسته.

## په زناکې دعدې حکم

پرزناکوونکې باندي عده نسته لکه څرنګه چي په فتاوی ظهيريه اوشرح الطحاوی کي دامسئله موجوده ده ( فتاوی هنديه ص: ۱۵۷ج:۲)

## دحيض په حالت کې عده

که چيري خاونددحيض په حال کې طلاق ورکړی وي نوکه څه هم داکارخوبددی خو پردې باندي فقهاء متفق دي چي هغه حيض په عده کي شمارنه دی له دغه حيض پرته به نوردرې حيضونه تيروي.

اذاطلق امرأته فی حالة الحيض کان عليها الاعتداد بثلاث حيض کوامل ولايحتسب هذه الحيضة من العدة!
( عالمګيری ص: ۱۵ج:۲ )

## يوه ناقابل عمل مسئله اودهغې حل

دعدې په سلسله کې یوه مسئله کومه چې په اصل کې په دې زمانه یاپه هم هره زمانه کې ترعجوبه لازیات حیثیت نلري ولي چې اسلام دښځوحقوق اودهغوئ دزندګۍ دنزاکت (باریکۍ) څومره اندازه خیال کړی دی په دې لحاظ دامسئله ناقابل عمل بلل سوې ده ، دجواب ترحده پورې دفقهې په ټولوکتابونوکې لیکل سوې ده اوهغه داچې که چیرې دحیض والاښځې وینه په یووجه سره بنده سي اودهماغي عمر۲۰ - ۲۵ ترمینځ وي یعنې دحیض راتلوهروخت امکان وي دداسې ښځې دعدې په سلسله کې فقهاء لیکي : چې ترڅو پورې پنځه پنځوس کاله عمرنه وي ترهغوپورې به په میاشتوباندې عده نه تیروي ، ځکه داوخت دحیض دراتلوامکان بلکل ختم کیږي لهذانوبه په میاشتوعده تیروي ، په شامي کې یوځای لیکي : مالم یبلغ حدالایاس لاتعتدبالاشهروحده خمس وخمسون سنة هوالمختار !

(ص: ۷۵۸ج:۲)

په درمختارکې دي:

حتی لوامتدطهرهاتبقی عدتهاحتی تبلغ سن الایاس !

پردې باندې شامي لیکلي دي: فاذابلغت من الایاس تعتدبالاشهرکماصرح به فی الفتح !

(ص: ۷۵۲ج:۲)

په عالمګیری کې دي:

ولورأت ثلثة دماثم انقطع فعدتهابالحیض وان طال الی ان ایست الخ !

سوال دادی : چې آیاممکن ده چې دښځې په یووجه وینه بنده سي نوهغه دې ترپنځه پنځوس کلونوپورې کښیني په دې وخت کې خوله کوم چاسره واده کولای نسي ، اونه دعدې احکام جاري کیدای سي ؟ لکه څرنګه چې دڅومثالونوپه مخته ښوولوسره بنده دې نتیجې ته رسیږي چې په داسې حال کې ښځه صرف شپږمیاشتې کښیني له هغه وروسته که چیري وینه رانسي نواوس په میاشتوسره په دري میاشتې عده تیره کړي آزاده سي ، اوهغه داچې فقهاء لیکي



: چې آئسه ( ناامیده ) ښځه به دایاس ( ناامیدی ) سن ته له رسیدوسره ، سره شپږمیاشتې زیاته موده احتیاطاانتظارکوي علامه شامي رحمه الله لیکي:

ولکنه یشترط للحکم بالایاس فی هذه المدة ان ینقطع الدم عنها مدة طویلة وهی ستة اشهرفی الاصح !

(ص: ۳۵۸ج:۲)

یوبل نظیردادی چې یوه ښځه ددیرشوکالودعمرده اوتراوسه پورې هغې ته حیض نه دی راغلی نوفقهاؤهغې ته په میاشتودعدې تیرولوحکم کړی دی حال داچې په دې عمرکې دوینوراتلواحتمال ختم سوی دی.

امرأة مارأت الدم وهی بنت ثلثین سنة الخ قال لیس هی بآئیسة وقال ابوجعفر تعتدبالشهور لانهامن اللاتی لم یحضن وبه ناخذ( ص: ۷۵۸ج:۲)

ددې په تائیدکې دانظیرهم دتوجه قابل دی چې خاوندکه چیرې مفقودالخبر( ورک ) سوی وي نوپه دې سلسله کې که څه هم داحنافودائمه فتوی مختلفه ده مثال ترنوی (۹۰) کالوپورې دې کښیني یاترمرګه پورې وغیره خوعملا دارازممکن نه دی له دې وجې متاخرینواکابرووداسې تنګۍ په صورت کې دامام مالک رحمه الله پرقول فتوی صادره کړې ده ، نولهذادوینې دبندیدوپه داسې صورت کې هم دمسئلې وضاحت دمذکوره حل مطابق کول دحالاتو اوضرورتونوموافق دي ، دارازپه شریعت کې نورهم څه مثالونه سته.

**دحاملې ( کوچنې درلودونکې ) ښځې عده**

دحاملې ښځې عده دحمل په وضع یعنې دکوچنې په زیږیدوسره ده تردې مخته په هیڅ توګه نه آزادیږي ،نه بل ځای نکاح کولای سي که څه هم دحمل په وضع کې پوره نه (۹) میاشتې ولګیږي یایوڅوورځې یاساعتونه ولګیږي په فتاوی عالمګیري کې دي (وعدة الحامل ان تضع حملها ص: ۱۵۸ج: ۲) له وضع حمل څخه مرادلږ،ترلږه چې کوچنی دڅلورومیاشتووي یعنې بعض یاټول اندامونه یې ظاهروي په داسې صورت کې هم عده مکمله کیږي اوکه چیرې ترڅلورمیاشتې په لږه موده کې کوچنی پیداسي نوداوضع دحمل نه ده بلکې

دحمل اسقاط (غورځېدل ) ورته ویل کیږي اودسقوط ( غورځېدل ) یااسقاط ( غورځولو ) په صورت کې کوم چې ترڅلورمیاشتي کم وي عده نه پوره کیږي
علامه شامی رحمه الله لیکي : المرادبه الحمل الذی استبان بعض خلقه اوکله فان لم یستبن لم ینقض العدة!

بیا لیکي : ان المستبین بعض خلقه یعبرفیه اربعة اشهروا تمام الخلق ستة اشهر!
( شامی ص: ۷۵۵ج:۲ )
دحمل دوضعې کومه موده نسته . له طلاق یاعدې یوه ورځ یایو ساعت وروسته هم په وضع حمل سره عده تیریږي.

ولیس للمعتدة بالحمل مدة سواء ولدت بعد الطلاق او الموت یوم او اقل (عالمګیری ص: ۱۵۹ج:۲ )

**بېلا بېلي مسئلې**

په عده کې دننه له خاوندپرته له کوم نارینه سره نکاح کول خوحرام دي دنکاح خبرې کول اوپیغام استولو ته هم فقهاؤحرام ویلې دي البته خاوند که هرراز طلاق ورکړی وي که هغه رجعی ،یابائن وي دهغه لپاره په عده کې دننه درجوع یانکاح کولو اختیاردی.(عالمګیری ص: ۱۲۱ج:۲ )
که چیرې ښځه عاقله اوبالغه وي اوخاوندطلاق ورکړي نودعدې په ورځو کې دخاوندله کوره ددباندې تلورورته اجازه نسته هغه که یووې یادوه یادرې ص: ۱۲۲ج:۲ایضا .
خاوندکه چیرې په کورکې طلاق ورکړی وي نوښځه به دخاوندپه کورکې عده تیروي اوکه چیرې داسې ځای وي چې هلته یې عزت اوابرومحفوظ نه وي نومحفوظ ځای ته منتقل کېدای سې کنې په همدې ځای کې به عده تیروي. دعدې تیروونکې لپاره مکې ته تلل روانه دي البته که ښځه په مکه کې وي اوخاوندطلاق ورکړي یایې وفات په داسې حال کې وسي چې په مکه کې وي نوعده به په مکه کې تیروي ، په درمختارکې دي : وتعتدان ای معتدة الطلاق والوفات فی بیت وجبت فیه الخ!



درازکه خاوند دسفرپه حال کې طلاق ورکړی وي یاوفات سي نودښځې لپاره دعدې تیرولو صورت دادی چې که چیرې په سفرکې داوسېدواو دنوروشیانودحفاظت اواسانۍ سهولتونه وي نوپه سفرکې افضله ده کنې په کورکې به عده تیروي خصوصابیاپه دې زمانه کې په کورکې دعدې تیرول بهتردي.

اوکانت فی مصراوقریة تصلح لاقامة تعتده ثم قوله تصلح الاقامة بان تامن فیهاعلی نفسها ومالهاوتجدماتحتاجه الخ( شامی )
له نابالغې سره په خلوت صحیحه کولوهم عده واجبیږي لکه څرنګه چې فقهاؤتصریح کړې : قال فی ردالمحتاروتجب العدة بخلوته ای الصبی وان کانت فاسدة الخ وخلوة الصغیرة التی لاتجامع ایضا فاسدة وفیها العدة الخ!
مسئله : که خاوندوښځې ته په ژبه طلاق ورکړي مګرښځه په خبره نه وي له دې شپږورځې وروسته خاونددخط په ذریعه هغې ته دطلاق خبرورکړي نوعده له هماغې ورځې شروع کیږي په کومه ورځ چې په ژبه طلاق ورکول سوی دی (شامی )

**دمعلق ( په یوشي ) پورې تړلې طلاق مسائل**

په طلاق کې اضافت ( نسبت کول ) شرط دي ددې بحث مخکې تیرسوی دی دارازکه چیرې طلاق په شرط پورې معلق کړل سي نودشرط پوره کېدوپه صورت کې طلاق واقع کیږي (شرط که زباني وي یاتحریري ) دنمونې په توګه دڅومسئلو یادونه کیږي ، که چیرې خاوندپه ژبه ووایې یاولیکي چې ستازوئ که چیرې ستادمورپه کورکې وونو تاته طلاق اوواقعي هم زوئ دښځې دمورپه کورکې وونوڅرنګه چې شرط پوره سوله دې وجې نویورجعي طلاق واقع سو.
په عالمګیري کې دي : وان اضافه الی الشرط وقع عقیب الشرط ( ص: ۴۴۰ج:۱ )

**په شک کې دتعلیق حکم**

هوداخبره واضح کول دي چي په دارازشک سره طلاق نه واقع کیږي په داراز شک سره دتعلیق تحقق هم نه راځي اونه طلاق واقع کیږي هغه شک که په تعمیم اوتخصیص کي وي یاپه زمانه اومکان کي وي لهذاپه شک سره دطلاق واقع کیدل هم نه راځي په درمختارکي دي:

علم انه حلف ولم یدر الطلاق اوغیره لغا کمالوشك اطلق ام لاالخ !(درمختار: ص : ۶۲۳ج : ۲)

## داستقبال ( راتلوونکي ) حکم

خاوندووایي چي که چیري تافلانی کاروکړنوزه طلاق درکوم اوښځه فلانی کاروکړي هم نوپه داسي صورت کي ، صرف په درکوم ویلوسره طلاق نه واقع کیږي دادطلاق وعده ده طلاق نه دی (انااطلق لایقع لانه وعددرمختار)

مسئله: که چیري خاوندووایي: چي له ماسره راځه کني طلاق مي درکړاوښځه ورسره روانه نسي نوطلاق واقع کیږي ،ځکه دداسي ویلو چي کني طلاق مي درکړ په وجه سره دشرط دتحقق په وخت کي طلاق واقع کیږي.

## دخاوندانکار

که چیري دطلاق یامعلق بالشرط طلاق ورکولونه خاوندانکاروکړي مثلا خاوندووایي چي که چیري ته ددرورځوډډی وخوري نوتاته طلاق ، ښځي په درې ورځي کي خوړلې وي مګراوس خاوندله شرطه منکردی اوکوم عادل شاهدسته نه نودخاونددقول اعتبارکیږي اوطلاق نه واقع کیږي که څه هم ښځه دشرط اقراروکړي.

فان اختلفافی وجودالشرط فالقول له مع الیمین لانکاره الطلاق درمختار( شامی ص: ۶۹۰ج: ۲ )

البته ښځي ته که دطلاق یادطلاق دشرط یقین وي چي خاوندیقیني راکړی دی نوترخپله وسه پورې دي جلاځیني واوسیږي چي ګناه پرخاوندسي.

## تعلیق په زړه کي ساتل



یوسړی په ژبه طلاق ورکړي اوشرط یې په زړه کي ساتلی وي نودژبې اعتبارکیږي دزړه نه ،طلاق واقع کیږي (درمختار)

توضیح: په تعلیق کي هم ددې خبرې لحاظ کول هروخت ضروري دي چي که چیري شرط پوره نسي ( په کوم پورې چي طلاق تړلی دی ) نوطلاق نه واقع کیږي.

## نامعلومه تعلیق

که چیري یوسړی دنامعلومه تعلیق یاشرط اقرارکوي مثلا خاوندکومې ښځي ته ووایې چي که چیري ته ترډهلی پورې ونه رسېدي نوزمابښځې ته درې طلاقه داتعلیق نامعلومه دی اوددې حکم دمودې ترحده پورې پاتیږي یعنی ترموده مخکې ،مخکې که چیري ترډهلی پورې ورسیږي نوطلاق نه واقع کیږي کني دمودې په پوره کیدو باندي طلاق یاشرط واقع کیږي.

بخلاف ماذاکان شرط الحنث عدمًاعدمیًا مثل ان لم اکلم زیدًااون لم ادخل فانهالاتبطل بفوت المحل بل یتحقق به للیاس من شرط البرالخ ( شامی ص: ۲۵۸ج: ۲ )

## ترنکاح مخکې دتعلیق حکم

که چیري یوسړی ترنکاح مخکې له زیدسره داشرط ایښی وي چي که چیري ته زماپه کاروبارکي شریک نسي نوستاښځې ته طلاق زیدددې اقرارهم کوي یادارازکوم بل شرط ولګوي مګرترنکاح مخکي اوبیاله نکاح وروسته زیدد شرط مطابق عمل ونکړي نوطلاق نه واقع کیږي ،ځکه ترنکاح مخکې تعلیق اوشرط غیرمعتبردي اولغودی.

فلغاقوله لاجنبة ان زرت زیدًافانت طالق فنکحهافزارت درمختار( شامی ص: ۲۸۱ج: ۲ )

## دخلع حکمونه

خلع هم دطلاق یوصورت دی دښځې اوخاوندګذاره په یوه وجه سره سخته سي یا په دوئ کي دیوه له وجې دهغه بل جلا والی ضروري سي نوپه داسي صورت کي که چیري خاوندپه طلاق ورکولوباندي راضي نه وي اوښځه پرطلاق باندي

تینګارکوي نوخلع کولای سي ، په خلع کي دخاوندرضاضروري ده هغه که تحریراً وي یاتقریراً البته دخلعې په شرائطوکي زیاتونه نه ده پکارځرنګه چي په دې سلسله کي دفقهاؤرحمهم الله تصریح ده چي که چیري زیاتی دخاوندله لوري وي اوښځه دهغه په وجه خلع کول غواړي نوخاوندته څه اخستل نه دي پکار هو اخلاقاً ښځه خپل مهر( ولور) معافولای سي ، په زورداسي مناسب هم نه دي اوترډې زیات دکوم مال وغیره شرط فقهاؤ( کله چي ظلم اوتشددیاوجه دخلعې دخاوندله لوري کیږي ) بلکل حرام بللی دی اوکه چیري زیاتی دښځې له لوري وي هغه که په هره وجه هم وي اوخاوندجلا والی غواړي نوپه خپلوکي په رضاسره خلع کولای سي اوپه دې وخت کي خاوندمهرمعاف کړي اوخپل ورکول سوې شیان هم که غواړي واپسولای سي البته په لومړي صورت کي هم که چیري دورکړل سویوشیانوخاوندمطالبه وکړي نوداسي کول که څه هم مناسب نه دي لیکن ښځې ته پکاردي چي وریې کړي خلاصي حاصله کړي لکه ځرنګه چي فقهاؤدارازتصریح کړې ده:

کره تحریما اخذشئ ان نشزوان نشزت لاولومنه نشوزا ایضا ولوباکثروا اعطاها على الاوجه !
( شامی ص:۷۷۱ج:۲ )

## فارغ خطي څه ده

دفارغ خطي ترجمه علماء په مبارءت یادهغه په همعنی سره کړې دي اودالفظ له خلع سره تعلق لري لهذا په دې سره هم خلع کیږي اویوطلاق بائن واقع کیږي لکه ځرنګه چي ددرمختارپه باب الخلع کي دي:

هوازالة ملك النكاح المتوقفة على قبولها بلفظ الخلع اومافي معناه يدخل لفظ المبارءة فانه مسقط الخ وحكمه ان الواقع به الخ طلاق بائن قوله ان الواقع به اى بالخلع ولوبلفظ البيع والمبارأة ( شامی ص:۷۷۰ج:۲ )

## دزوردخلعې حکم



که چیري خاونددخلعې پرطلاق راضي نه وي نوبیاهم دوخت دحکومت دزور یادیوچاپه زور سره یې پرخلع طلاق راضي کړي نوپرښځې باندي دزوردخلعې په صورت کي هم یوبائن طلاق واقع کیږي.

ولوعبدا اومكرها فان طلاقه صحيح (درمختار)

## په خلعې کي دنفقې حکم

په خلع کولوسره تیره سوې نفقه ساقطیږي البته دعدې نفقه اوسکنی دخاوند پرذمه دي خوکه یې چیري دنفقې نه ورکولوتصریح کړې وي نوبیاداواجب هم ساقطیږي.

يسقط الخلع الخ ممايتعلق بذلك النكاح الانفقة العدة وسكناها فلايسقطان الااذا رضي الخ !

## دخاوندله اجازې پرته دخلعې حکم

داخبره واضح سوې ده چي په خلع کي دخاوندرضاضروري ده ،پرته له رضادخاوندڅخه طلاق نه واقع کیږي اوس که چیري ظلم اوزیاتی کوي اونان ،نفقه هم نه ورکوي یادشرعی حدودوخلا ف ورزي کوي اوپرخلع دراضي کېدوهیڅ صورت نه وي نوپه شرعي حیثیت سره دشرعیه امارت لاندي چي کوم محاکم شرعیه قائم دي په هغه کي درخواست ورکړي چي نکاح فسخ کړي .

## دنابالغې خلع

نابالغه انجلۍ له خپل خاوندسره دمهردمعافولوپه عوض دخپلواولیاؤپه ذریعه خلع کولای سي اوداخلع صحیح هم ده.

خلع الاب صغيرته بمالها اومهرها طلقت فى الاصح (درمختار)

## په خلع کي دطلاق لفظ

دخلعې په صورت کې صرف دخلعې لفظ هم ویلای سي چي ماخلع درسره کړې یامې خلع درکړې یاپردې راضي سي یامادفلانی شی په عوض کي خلع کړې نوپه دې ټولوصورتونوکي دخلعې طلاق واقع کیږي اودخلع طلاق ویل افضله دي ، پرته له لفظ دطلاق هم خلع کیږي.

علی قبولها بلفظ الخلع اومافی معناه فانه مسقط الخ (شامی)

## دقسم کولومسئله

که چیري خاوداقسم واخلي چي زه تاته نژدې نه درځم ، یاڅلورمیاشتې نه درځم نودې ته په عربي ژبه کي ایلاء ویل کیږي: والله لااقربك اربعة اشهرفهومول لقوله تعالی لِّلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِن نِّسَآئِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ فَإِنْ فَآءُو فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ٢٢٦ وَإِنْ عَزَمُوا ٱلطَّلَٰقَ فَإِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ٢٢٧ الآیة!

لهذاکه چیري داراز قسم وکړي چي ترڅلورومیاشتوپورې به ښځې ته نه ورځي نوپه داسې صورت کي پرښځې باندې بائن طلاق واقع کیږي اوپرته دنکاح له نوې کولوله هغې سره اوسېدل ناروادي.

## دنکاح دتفریق اوفسخ ( جلاوالي) احکام

لکه څرنګه چي مخکې عرض وسوچي که چیري دخاونداوښځې تعلقات خراب سي یودهغه بل دژوندګۍ قابل پاتي نسي اوپرښځوباندې ظلم وزیاتی شروع سي نوښځې شریعت محض دحالاتوپرباورنه دې پرې ایښې بلکي هغوئ ته یې اختیارورکړی چي شرعًا پرخپل ځان ظلم اوستم ختم کړي ، ددې کوم شکلونه چي په شرعي اعتبارښوول سوې دهغوښځوته اختیاردی ،که چیري دطلاق شکل نه جوړیږي نودخلعې په شکل دي ګام پورته کړي ،که له خلعې هم نا امیده سي نومجبورادې شرعي دالقضاء یاشرعي محکمې ته ( کوم ته چي موږشرعی عدالتونه وایو ) هلته دې دنکاح دفسخ ( ختم ) کولودعوی وکړي په شرعي اعتباردې جلا والی حاصل کړي له دې پرته شرعًا له خاوند څخه دجلا والی هیڅ لارنسته.



،ځکه چي دجلا والې دوه صورتونه دي یاطلاق ،یاخلع په دواړوطریقوکي دناکامۍ په صورت کي شرعي محکمه اختیارول دي.

## دهنددعدالت فیصله

په هندوستان کي که چیري عدالت خلاف شرع فیصله کوي نویوه طرفته که مسلمانان دهغې قبلولوته تیارنه دي نوبل طرفته دهغوئ فیصله په شرعي حیثیت سره هم دقبول وړنه ده.

لکه څرنګه چي په تربحث لاندي مسئله فسخ نکاح یادطلاق اوتفریق په معامله کي هم دعدالت فیصله معتبره نه ده که چیري یوعدالت دتفریق حکم جاري کړي یادچانکاح فسخ کړي یاچاته طلاق ورواخلي ، نوپه دغوکي یوهم شرعامعتبرنه دي ، ځکه چي اکثره وخت حاکم نامسلمان وي ، دهغه فیصله معتبره نه ده که چیري مسلمان هم فیصله وکړي نوبیاهم نه ده معتبره ، ځکه له هغه سره دشریعت علم نه وي ،ځکه دقرآن اوحدیث اودمسلمانۍ له لارې سره دترلو امورفیصله ورکول دعلماؤاختیاروي ، نه چي دعدالت حاکم ته کوم ته چي دشریعت هیڅ سندحاصل نه دی بې سنده دهغه فیصلې مثل څرنګه کیږي ، داسې خوددستورهم خلاف دي چي سندیې دوکیل اوکارډاکټر، البته که چیري دشرعی اصولوپوره رعایت وکړي ،مسلمان حاکم فیصله ورکړي نوبعضی علماؤدقبول وړبللې ده څرنګه چي کومې ښځې په عدالت کي خپله نکاح فسخ کړې وي اوبل ځای یې نکاح کړې وي نودانکاح دحرام کارۍ اوزناکارۍ برابره ده ،ځکه چي کله دعدالت فیصله شرعي فیصله نسوه نونه طلاق په راځي اونه دنکاح فسخ اوښځه دلومړي خاوندښځه ده که چیري نکاح وکړي نوټوله ژوندګي به په حرام کاري کي مبتلاوي.

## میریج رجسټرار

نن ،صبا دحکومت له لوري نکاح خوان متعین کیږي ، یاد سرکارپه قانون رسېدونه وزکول کیږي دې اصطلاح ته په حکومت کي میرج رجسټرازویل

کیږي ددې کاردنکاح رېکارډ تیارول اوفریقینوته یوه ، یوه پرچه ورکول اودادحکومت په رېکارډکي ساتل دي ، لیکن درشوت بازارخوهرځای عام دی دلته هم خلک رشوت ورکوي هغه دنکاح په فسخ کېدوکي لګوي ، حال داچي ددستوراوشرعي په لحاظ دوئ ته دفسخ هیڅ حق نسته لهذاددوئ فسخ سوې نکاح دفسخ پہ ځای باطله ده اوددې فسخې پربنیادبل ځای نکاح کول جائزنه دي ،ځکه دفسخې اختیارپه بنیادي توګه شرعی قاضي یاشرعي عدالت ته حاصل دی.

دشرعي قاضی صورت دادی: چي یاخومسلمانانوپه اتفاق سره قاضی جوړکړی وي یادوخت حاکم کوم چي مسلمان وي ځای ،ځای په خپل اختیارسره شرعی قاضیان مقررکړی وي هغه هم شرعی قاضی دی مګرمیرج رجسټرارنه دمسلمانانوپه رضاسره متعین سوی ، نه دمسلمان حاکم له لوري هغه ته دقضااختیارورکول سوی دی لهذانوکله چي هغه دشرعی ضابطې له لحاظ قاضی نه سونوهغه ته دنکاح دفسخ کېدوحق نسته اوکله چي حق ورلره نسته اوبیایې هم کوي نودهغه فیصله غیرمعتبره ،باطله اولغوبلل کیږي لهذانکاح پرخپل حال باقی پاتې ده اوکله چي نکاح باقي پاتي سوه نوفسخ اوطلاق نه راغلو،نودوهم ځای نکاح کول هم حرام دي اومیرج رجسټراری په خپل ځای په حرام کاري کي دمبتلاکېدوباعث دی اوس که چیري هغه قصداداسي کوي نودفسق اوګناه کبیره کوونکی دی لهذاله داسي خلکوڅخه دمسلمانانوساتنه پکارده بیاچي کله هغه شرعی قاضی هم نه دی ،ځکه دوخت حکومت هغه ته سندورکړی اوهغه حکومت متعین کړی دی اودحکومت متعین کړل سوی دی له دې وجې قابل داعتبارنه دی چي پخپله په دې سلسله کي دحکومت فیصله معتبره نه ده لهذاهغه ته چي کله دخپل ځان اختیارحاصل نه دی نودفسخې اوطلاق اختیاربل چاته څرنګه ورکوي له دې وجې نورجسټرارته شرعی



اختیارحاصل نه دی ، داراز هغه ته دحکومت له لورې صرف دنکاح خوانی سندورکول سوی دی ،ځکه نودفسخ اوتفریق سوال هم نه پیداکیږي.

دوهمه خبره دمسلمانانودرضااوشرعی عدالت ده ، په هغه کي به لږ، ترلږه ددرونفروکمیټی وي دکوموشرچي به په مسائلوخبرجیدعالم وي داکمېټی شرعادنکاح فسخ کولای سي ، دارازپه خپلوکي په اتفاق سرد هم دنکاح د فسخې فیصله کولای سي ، څرنګه چي میریج رجسټرارله پورته صورتونوسره له یوه سره لاهم مطابق نه دی له دې وجې نودهغه دنکاح فسخ کول صحیح نه دي ،بلکي په قضاء یاشرعی محکمه کي فسخ کېدل ضروري دي.

**قضایاشرعي پنچایت**

شرعی پنچایت اوس دمحکمه شرعی په نامه سره بلل کیږي.

اوس موږستاسوپه مخکي له قضااوشرعي پنچایت سره تړلې ضروري امورهم پیشول مناسب وبلل زموږلپاره داخبره پیژندل هم ضروري ده چي موږپه څرنګه صورتونوکي ددارالقضاء یاشرعی پنچایت اسره اخلواوڅرنګه یې حل کووهغه کوم مسائل دي کومې چي له شرعی محکمې اودارالقضاء پرته هیڅ نه حل کیږي ؟داڅوسوالونه دي دکوموچي جوابونه په تفصیل سره لیکل کیږي.

شرعی محکمه په هندوستان کي دامارت شرعیه هندماتحت دیواسلامي عدالت اهمه شعبه ده په اسلامي حکومت کي خودارالقضاء اصل عدالت دی مګردهندوستان لپاره صرف ترعائلی زندګي اومسلم پرسنل لین لاندي دمسائلودحل لپاره محکمه شرعی اوپه حیثیت دعدالت اسلامي خدمات ترسره کیږي دهغه فیصله شرعی اوداعتمادوړوي ، اوپه شرعی معامله کي هرمسلمان خپلې دعوې په محکمه شرعي کي پیشول غواړي ددې لپاره چي اسلامي زندګی عادت جوړه سي اوحکومت هم پرغیراسلامي قانون فیصله ونکړي ، څرنګه چي لاندي اموږپه خصوصیت سره دمحکمه شرعیه محتاج دي

ددغواموروفیصله له شرعی محکمې یاشرعی پنچایت پرته په هیڅ صورت کې ممکن نه دي اونه شرعا معتبر اودقبول وړکیږي.

### دنکاح فسخ اودهغې اسباب

دلاندینیو اسبابو اووجوهاتو پربنادنکاح فسخ کیږي اوپه دغواموروکي شرعی محکمې ته رجوع کول وي.

(۱) دخاوندمفقودالخبر( ورک ) کېدل (۲) دخاوند غائب غیرمفقودالخبرکېدل ) (۳) دخاوندله نفقې اداکولوڅخه عاجزکېدل (۴) دخاوندله اطاعت کولوسره ،سره نفقه نه ورکول (۵) دخاوندپرښځې باندي ظلم کول اودهغې هغه حقونه نه اداکول کوم چي شریعت پرخاونداینښې وي ( ۲) دخاوندمجبوب کېدل (۷) دخاوندعنین کېدل (۸) دخاوندلیونی کېدل (۹) خاوندمجذوم (کوی ) اومبروص( پیس ) کېدل یاپه داسي مرض کي مبتلاکېدل کوم چي له ښځې سره داوسېدودنه امکان باعث وي.

(۱۰) دنکاح په غیرکفوکي کېدل یاپه غبن فاحش سره کېدل (۱۱) دنابالغ دخیاربلوغ داختیارحق داره کېدل (۱۲) ښځه په حرمت مصاهرة ( خوسرې ) سره حرامېدل (۱۳) دخاوندیاښځې (العیاذبالله ) مرتدکېدل (۱۴) له نکاح وروسته په رضاع(تي رودلو ) خبرېدل.

داهغه اسباب دي دکوموپه وجه چي که کله ښځه له خاوندڅخه جلاوالی وغواړي نوصرف دشرعی عدالت یامحکمه شرعیه په ذریعه سره فیصله کیدای سي ، په کوم بل عدالت سره فسخ کول ناروادي لکه څرنګه چي مخکې هم په تفصیل سره تیرسو، دلته په ډیراختصارسره نمبرداراتفصیل هم ذکرکیږي ددې لپاره چي ددعوې دائرولووالالپاره اسانتیاوي اودهرمصیبت زده مسلمان ښځې اوخاوندلپاره په کارورسي.



### دهغوئ تفصیل

(۱) مفقودالخبرهغه چاته ویل کیږي کوم چي ورک وي اوهیڅ پته یې نه وي چي هغه ژوندی دی یامړسوی دی دداسي ښځې (دکومې چي خاوند مفقود الخبروي )لپاره شرعي محکمې یاشرعي عدالت ته رجوع کول دي چي خپله نکاح فسخ کړي اوآزاده سي.

(۲) له غائب غیرمفقودالخبرڅخه مرادهغه څوک دی دکوم په هکله چې دومره یقین وي چي هغه ژوندی دی مګردهغه داوسېدوځای معلوم نه دی څوک ، څوک وایې چي موړولیدی ،دهغه صحیح معلومات مشکل وي نوپه داسي صورت کې هم ښځه په دارالقضاء کي دجلاوالی درخواست کولای سي.

(۳) دخاوندنفقې له اداکولوڅخه عاجزه کېدل که چیري له خاوندسره نه مال وي اونه ګټه کوي ښځې ته دډوډۍ اونفقې ورکولوصلاحیت پکې وي خود کاهلۍ اوسستۍ یابې پرواهۍ یاپرتړودګرځېدویاشراب خورۍ ،یاخمارکولو په وجه ښځې ته ډوډۍ اونفقه نه ورکوي ، اودښځې ګذاره سخته اودعزت اوعصمت سره زندګي تیرول مشکل وي نوښځه دنکاح دفسخه کولودعوی کولای سي.

(۴) دخاوندله اطاعت کېدوسره ،سره ښځې ته نفقه نه ورکوي ، ظلم پرکوي ، نوپه داسي صورت کې هم ښځه دجلاوالی دعوی کولای سي.

(۵) دخاوندپرښځې باندي ظلم کول هم دفسخ نکاح یوسبب دی یعنی بېله کوم سبب څخه ښکنځل ورته کوي ،بد ،ردورته وائي یاله جائزوحدودوڅخه زیاتوب کوي نودازیاتی شمارل کیږي دارازدحقوقوپه ادا ینه کي بې پرواهي اوله هغه څخه ځان لیري کوي اودښځې لپاره داناقابلِ برداشت کیږي یاخاوندله ښځې سره داسي ظرزاختیارکړي له کوم څخه چي دهغې صحت ته خطره وي اوپه فتنه کي یې داچولووېره وي داطرزعمل هم په ظلم کي راځي.

په پورته يادوسويوصورتونوکي دخاوندظلم اوزياتي پربنيادباندي ښځه دنکاح دفسخ کولودعوی کولای سي.

(۶) دخاوندمجبوب کېدل يعنی داسي چي دهغه دتناسل آله بلکل نه وي ياپرې سوې وي هغه ته مجبوب ويل کيږي په داسي صورت کې هم ښځه دجلاوالی لپاره درخواست کولای سي.

(۷) دخاوندعنين کېدل: يعنی خاوندنامرده وي ،له آله تناسل درلودوسره ،سره له ښځي سره جماع ( کوروالی ) نسي کولای په دې صورت کي هم ښځه دجلاوالی دعوی کولای سي

(۸) دخاوندليونی کېدل: په داسي صورت کي هم ښځه فسخ دنکاح کولای سي.

(۹) جذام کوې ته وايي ،برص (پيس )سپينو ،سپينوداغونو ته وايي ،ياخاوندته داسي ضررناکه مريضي ورسيږي نوښځه دفسخ نکاح دعوی کولای سي.

(۱۰) عدم کفاءت هغه ته وايي چي دښځي اوخاوندپه مينځ کي دمذهب ،نسب ، حرفت ( کسب)، ديانت ، حريت ، برابروالی نه وي نوپه داسي صورت کي هم ښځه دفسخ نکاح دعوی کولای سي . (۱۱) دنابالغ دخياربلوغ اختياردرلودل يعنی نابالغه چي په نکاح ورکول سي هغې ته خياربلوغ يعنی له لويوالي وروسته اختيارورکول کيږي دې اختيارته بلوغ خياروايي ، دنابالغي نکاح که چيري دهغي پلار،نيکه کړې وي نودې ته له بالغ کېدووروسته هم دنکاح دنه قبلولوحق نسته ، مګرداکه چيري پلاراونيکه (۱) بداختيارمن وي ، (۲) فاسق ،بې عزته وي(۳) نکاح يې دنشې په حالت کي کړې وي نوپه داسي صورت کي نابالغي انجلۍ ته له بلوغ وروسته دنکاح دنه قبلېدوحق حاصل دی په دې ټولوصورتونوکي ښځې ته دنکاح فسخ کېدلوحق ضرورسته ، لکه څرنګه چي مخکې هم عرض وسوچي داصرف په دارالقضاء ياشرعي محکمه کي کيږي بله هيڅ طريقه هم جائزه نه ده ددې زيات تفصيل وګورئ ، په رهنمايي دارالقضاء



دامارت شرعيه بهارچاپ کي اوپه الحيلة الناجزة للحلية العاجزة کي يې وګورئ خصوصاًدهغه تتمة المرقومات للمظلومات اودهغه خلاصة المختارات فی مهمات التفريق والخيارمطبوعه خواجه برقی پريس ددار الاشاعت شائع سوې ديوبندضلع سهارنپور( يوپی ).

**اخيري غوښتنه :**

په اخيري کي له ويوونکوڅخه خواست کوم چي ليکوونکی اوکمپوزکوونکی په خصوصيت سره په دعوات صالحه کي په يادولرئ الله تعالی دې تاسوپه خپله رضاونازوي.

وبالله التوفيق وهو المستعان وصلى الله تعالى على خيرخلقه محمدوآله
وصحبه اجمعين احقرعبدالجليل: خادم افتاء وقضاء
مغربی بنګال جامعه اسلاميه مدينه مدنی نګرکلکته ۵۱-۱۲ ربيع الاول ۱۴۰۷هج

**دسپريم کورټ فيصله**

**اودمطلقې ( طلاقې سوې ) دنفقه اونان شرعي حيثيت**

دمطلقې دډوډۍ اونفقې مسئله يوه اجماعي اوغيراختلافي مسئله ده مګرپه بدقسمتۍ سره هندوستان ددا سي سيکولراستيټ سپريم کورټ دا اجماعي مسئله داسي اختلافي کړې چي دهندوستان تاريخ نه بلکي ددنياپه هيڅ تاريخ کي به ددې نظيرپيدانسي داسلامي عهدله ابتدانيولې بياترننه پورې له هيڅ اسلامي اوغيراسلامي عدالت څخه داسي دشرعي خلاف ناقابل عمل فيصله نه ده صادره سنوې لکه څرنګه چي په سپريم کورټ هندکي دمطلقه نفقي په مسئله کي صادره سوې.

په شرعي اعتبارسره دمطلقې دنفقې مطلب ډيرواضح دی چي دمطلقې لپاره دعدې په دوران کي نفقه له مهرسره خواه دحمل عده وي يادعاموحالاتووي پرخاوندباندي شرعاواجب ده ،تردې زيات دشرعي وجوب اولزوم په حيثيت نه بلکي په خپله رضاسره چي څومره ورکوي دهغه پرذاتي معامله اوحسن اخلاق

باندي مبنی ده مګردسپریم کورټ فیصله کومه چي په تیرسوې ۲۳- اپریل ۸۵ء کي صادره سوه هغه داوه چي دعدې په دوران کي نه بلکي له عدې وروسته هم پرمخکني خاوندباندي په قانوني توګه نان ونفقه لازمي دي حال داچي داسلامي قانون په نزددعدې ترتیریدووروسته ښځه له مخکني خاوندڅخه دنان اونفقي داخستلو قانونامستحقه نه ده ، دعقل تقاضاهم داده مګرله دې سره ،سره دملک ترټولولویې عدلیې مطلقې ښځې ته تردوهمې نکاح یاددوهم خاوندترژونده پورې دنان اونفقې حق ورکړی دی ، څرنګه چي د افیصله بېله شکه غلطه وه په پوره ملک کي دهغې دردمحسوس کړل سواو ټولو مسلمانانوبېله لحاظ کولودکوم مسلک اوفرقې ددې فیصلې سخت مخالفت اومذمت وکړپه دې خلاف شرع تاریخي فیصلې سره دهرمسلمان په زړه کي غم اوغصه راوپارېدل ،ځکه چي داواضح په دین کي مداخله وه دامسلمان څرنګه برداشت کړې وای ،سینې یې سپرکړي اویوداسي فضایې پیداکړه چي حکومت دمسلمانوخوندو دېل پرپاسولوپه مجبوري سره آماده سواونه صرف آماده بلکي داپوزیشن پارټیانواودخپل سخت مخالفت سره ،سره یې پاس کړ، دحکومت دااقدام بېله شکه دتحسین لائق دی ، داخویومختصره خاکه وه مګرسوال هم باقي پاته سوچي دسپریم کورټ فیصله چي کله خلاف شرع اومداخله فی الدین وه نوپه شرعي اعتبارسره دمطلقې څه انتظام دی په کوم سره چي هغه په عزت اوعصمت سره خپله زندګي تیره کړي دهغه څه اصول اوڅه ضوابط دي ؟ ددغوسوالونوجوابونه څه تفصیل غواړي دهغه اهم اوضروري اجزاء پیشیږي.

### یوه جائزه



دمطلقې دنفقې په هکله داخبره یومنل سوی حقیقت دی چي له عهدنبوي صلی الله علیه وسلم نه واخله ترننه پورې په زرهاوښځې مطلقې سوې دي مګرهیڅ یوعدالت هم له عدې پرته دنفقې ورکولوفیصله نه ده کړې اونه خاوندته دارازهیڅ یوعدالت یاقضاء له عدې تیرولووروسته دنفقې فیصله ورکړې ده . اونه خاوندپردارازدشرعي خلاف فیصلې باندي مجبوره کړل سوی دی ، په نبوی عهدکي دطلاقونواونفقومسئلې مخې ته راتلي مګرپخپله نبی علیه السلام صرف دعدې دوخت نفقه لازمه کړې وه تردې یې قطعاتجاوزنه دی کړی حال داچي دعهدنبوی صلی الله علیه وسلم له ډیرواقعاتوڅخه داهم معلومیږي چي مطلقه ښځې پرېشان حاله وي په ښکاره دنفقې هیڅ انتظام یې نه وو له دې سره ،سره نبی علیه السلام ترعدې وروسته تجاوزنه دی کړی اونه یې پرخاوندباندي زورکړی دی ، دصحابه کرامورضی الله عنهم په عهداوله هغه په وروسته زمانه کي هم دطلاق مسائل مخې ته راتلل مګرهیچاهم له عدې وروسته دنفقې ورکولوفیصله نه ده کړې ، اونه په عده کې دننه ښځې ته نفقه ورکول دهمدردۍ خلاف تصورسوې ده ، اسلام چي ښځې په کومومقاماتو نازولې دي اودهغوئ دحقونوچي یې کوم حفاظت کړی دی اوله هغوئ سره یې دهمدردۍ کوم تصورقائم کړی ، ددنیاپه هیڅ یوه مذهب اواقدام کي دهغه نظیرنه پیداکیږي ، ددنیاهره انصاف پسنده طبقه په دې حقیقت اقرارکوي داسلام له ابتدائی تاریخ څخه ترننه پورې چي څومره ښځوته طلاق ورکول سوی دی دهیڅ یوې ښځې په عده کي دننه دنفقې دهمدردۍ خلاف تصورنه دی سوی ، اونه هغوئ ددې خلاف اوازپورته کړی دی چي دازموږحق دی بلکي دایماني جذبې تحت شریعت ددې قانون پابندي اوترعدې پورې دنفقې تعین اوتحدید قبول کړی اوددې یې همېشه احترام کړی ، بلکي ډیرداسي مثالونه په تاریخ کي پیداکیږي چي ډیروښځودعدې نفقه هم دخاونددحالاتوپه لحاظ کولوسره معاف کړې اوډیرودهغې ترک کړی اوحقیقت دادی چي له خدایه ویره

لروونکې اوله خپل رسول صلی الله علیه وسلم سره محبت ساتوونکې هيڅ ښځه هم دخدای اورسول صلی الله علیه وسلم دورکړل سوي دغه حق نفقه دخپل ځان لپاره خلاف انصاف نه دی بللی دخدای پاک ارشاددی : هيڅ ايمان لروونکي نارينه اوښځي ته ګنجائش نسته چي کله الله تعالی اودهغه رسول صلی الله علیه وسلم ديوکارحکم ورته وکړي نوهغوئ ته په دې کارکي هيڅ اختيارباقي نه دی اوڅوک چي دالله تعالی اودهغه درسول صلی الله علیه وسلم حکم نه مني هغه په ښکاره ګمراهي کي دي ( احزاب : ۲۳آيت ) له دې حکم خداوندی څخه صفاواضحه سوه چي دالله تعالی اورسول صلی الله علیه وسلم دحکم دتعميل ( عمل کولو ) مدارايمان دی اوپه دې کي ددنيااواخرت کاميابي پټه ده.

**دمتاع بالمعروف حقيقت**

سپريم کورټ دخپلي فيصلي په بنيادکي دقرآنکريم دسوره بقره پ ۲ داآيات :

وَلِلْمُطَلَّقَاتِ مَتَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ (سوره بقره)

ددليل په ډول پيشوي : له آيات سره متعلق په فيصله کي څوترجمې او تشريحات هم پيشوي مګرپه ترجمواوتشريحاتوکي ددغوحضراتودتحقيقاتو په شرعي حيثيت سره هيڅ مقام نسته ، بلکي دعلماؤسواداعظم دارازترجمې اوتفسيرکولوولاحضرات داعتمادوړنه دي بللي داسي ( ريډورډويلم ، لينن ، آرته آمري ، طيب جی ، ملاصاحب ، سرظفرالله عبدالله يوسف اومارډيوک پکتهال وغيره حضرات دعلماء اسلام په نظرکي غيرمستنددی

صرف هغه ترجمې اوتشريحات يې معتبربللې دي کومې چي داحاديثواو دعهدصحابه رضی الله عنهم دتشريحاتوپه رڼاکي صحيح راغلې دي ،ځکه دقرآن دپوهېدواصل مدارصحابه کرام رضی الله عنهم دي له هغه پرته هريو تفسيراوتشريح تفسيربالرأی بلل کيږي دکوم چي په احاديثوکي سخت وعيداراغلی دی ، اوس موږدجمهوروعلماؤدتفسير څه نموني هم پيشوو



ددې لپاره چي تاسوته صحيح اندازه وسي چي دآيت صحيح اومستند ترجمه اوتفسيرڅه دی اوموږته کومه ترجمه اوتفسيراختيارول پکاردي.

**مستندې ترجمې اوتشريحات**

دايت شريف تفسيراودهغه ترجمه دمستندواومعتمدوعلماء دتشريحاتوپه رڼاکي وګورئ ، دڅورلسمې صدی عظيم مفسرحکيم الامت حضرت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله داسي ترجمه کړې ده: اودټولو طلاقو سويو ښځولپاره څه ،څه فائده رسېدل دقاعدې مطابق مقرره سوې ده پرهغوباندي کوم چي پرهيزګاردي ( بيان القرآن ص: ۱۴۱ج: ۱ )

دازادی دعلمبردارمجاهدحضرت شيخ الهندمولانامحمودالحسن صاحب ترجمه داده : طلاقو سويوښځوته خرچ ورکول دقاعدې مطابق لازم دي پرپرهيزګارانوباندې.

زياته تشريح کوي : چي په دې آيت کي هغه دجوړې حکم دټولولپاره راغې مګردومره فرق دی چي ټولوطلاقوسويوته دکپړې جوړه مستحب ده ضروري نه ده ،

مشهورمفسرحافظ طبری رحمه الله ويلې دي ، چاچي خپلې ښځې ته طلاق ورکړې وي نوهغه ته پکاردي چي هغې ته څه فائده وروسوي يعنی دعدې له نفقې سره څه کپړه وغيره ورکړي اورخصت يې کړي ، زياته تشريح کوي وايي چي صحيح خبره دامعلوميږي چي دهرې طلاقې سوې متعه هم ورکړي يعنی دکپړې جوړه ( ص: ۳۴۲ج: ۲ )

حافظ ابن کثيرويلې دي : چي ددې په ترجمه کي دمفسرينودوې رأيې دي يوه داچي دهرې مطلقې لپاره متعه واجب اودوهمه داچي صرف داسي مطلقې لره له کومې سره چي له واده وروسته خلوت صحيحه نه وي سوی اومهر(ولور) هم نه وي متعين سوی نودهغې لپاره متعه واجب ده ( ص: ۲۹۸ج: ۱ )

دروح البیان مصنف رحمه الله ترآیت لاندي لیکلي دي : چي له متاع څخه مرادمتعه ده هغه که واجب وي یامستحب یعنی دکومې چي مهرنه وي متعین سوی اونه خلوت صحیحه ورسره سوی وي نومتعه واجب اودکومې چي مهروغیره متعین سوې وي داسي مطلقې لره محض دزړه دخوشحالولولپاره متعه مستحب ده ،واجب نه ده ( ص: ۲۹۸ج:۱)

علامه سید محمود آلوسی بغدادی دروح المعانی مصنف رحمه الله وايي: چي له متاع څخه مطلق متعه مرادده مستحب اوواجبې دواړوته شامله ده ، په تشریح کي دهغې دعدې نفقه هم مرادوي لکه څرنګه چي دبعضی مفسرینورأیه ده ( ص: ۱ج:۲)

علامه ابوطیب صدیق قنوجی په خپل تفسیرفتح البیان کي وايي: چي له متاع څخه مرادمتعه اودعدې نفقه دي ( ص: ۳۲۰ج:۲)

دمدارک التنزیل مصنف رحمه الله وايي : چي له متاع څخه مرادپه ښه طریقه دعدې نفقه ورکول دي یعنی په کومه کي چي دشرع خلاف اومنکرات نه وي ( ص: ۹۸)

دتفسیرات احمدیه مصنف تردې آیت لاندي ویلې دي: چي له متاع څخه دعدې نفقه مرادده هغه که رجعې طلاق وي یابائن لکه چي په حدیث کي دي چي مطلقه که له خان سره کوي وي ساته اویادعدې تروخته پورې نفقه ورکړه ( ص: ۱۲۷)

دمصراوعربی نړۍ مشهورعالم عظیم مفسرعلامه محمدعبده په خپل تفسیرالمنارکي ویلي دي : چي مخکي دغیرمدخول بهالپاره متعه واجب وه اوس په دې ایت سره الله تعالی دټولولپاره دڅه ،څه فائدې رسید وحکم کړی دی البته په دې کي اصل خبره همداده چي داواجب نه بلکي دمستحب اومستحسن په درجه کي دی.

پورته ذکرسوې ترجمې اوتفسیرونه دجمهوروعلماؤ په نزدمستنداوددنیادهر مسلمان پردې باندي اعتماددی اوهمداترجمې اوتفسیرونه له عهدنبوی صلی



الله علیه وسلم څخه ترننه پورې معمول به دي اوله دې څخه صرف ددووخبروثبوت لاس ته راځي چي له متاع څخه.مرادمتعه اودعدې نفقه ، ترڅومره پورې چي دمتعه سوال دی هغه په دوه ډوله مطلقه لپاره دېوې لپاره واجب دکومې چي مهرمتعین نه وي اوددوهمې مطلقې لپاره مستحب ،څکه دمدخول بهالپاره خودعدې نفقه اومهردهغې حق دي متعه محض دزړه خوشحالولولپاره مستحب بلل سوې ده ، له دې څخه ښکاریږي چي په شرعی حیثیت سره دهریوه مفسرپه ترجمه اوتفسیرسره ترعده زیاته نفقه پرخاوندنه واجبیږي ، اوس پاته همدردي سوه نوهغه اختیاری شی دی مطلقې ته له عدې پرته هم څه ورکول پکاردي نودادخاوند اختیاری شی دی شریعت هغه واجب اولازم نه دی بللی ، قانون جوړول دیوچااختیارختمول دشریعت خلاف خودی خوداخلاقي اودستوري حق هم منافی دی لهذاددې آیت پربناباندي دخاوند ترژونده پورې دنفقې فیصله کول صریح په دین کي مداخله اوددستوري حق هم متصادم ده.

## دمتعې تفصیل

دمتعې په تفسیرکي که څه هم دعلماؤاختلاف دی خومتفق علیه قول دادی چي متعه یوه جوړه جامې له کوم سره چي دوپټه ( ټکری ) دخاوندد حالاتوپه اعتبارسره ورکول کیږي داسلامي عهدمشهورقاضی شریح دغیرمدخول بها مطلقې لپاره که څه هم پنځه سوه درهمه بللې ده ددې لپاره چي هغې ته څه فائده ورسیږي مګردمدخول بهامطلقې لپاره نه اوداصرف دهغه خپل ذاتي قول دی دجمهورمسلک صرف جوړه ورکول دي اوپه عهدنبوی صلی الله علیه وسلم کي هم دکیږي ورکول رواج ؤولکه څرنګه چي دابن عباس رضی الله عنهماله تفسیرڅخه واضح کیږي اودمعروف له قید څخه خومسئله بیخي حل کیږي چي متاع دعرف اوعادت په لحاظ سره په کوم کي چي دشرعي داموروخلاف نه وي (ص: ۹۵مدارک )

اوبعضي ځایونه دشریعت دضابطې اوقاعدې مطابق په کوم کې چې منکرات نه وي له هغه څخه هم خبره واضح کیږي چې متاع داسي کېدل پکاردي چې له شریعت سره موافق وي داسي نه چې پرخاوندباندي داسي شی لازم کړل سي دکوم چې نه په شریعت کې څه ثبوت وي اونه په عرف کې اود( معروف ) قیدیوقسم تنبیه ده ددې لپاره چې یوڅوک هم دمتاع خلاف شرع تفسیرونکړي اوپرخاوندباندي محض دمتاع په اطلاق سره بې ځایه باروانه اچول سي.

څرنګه چې دمتاع تفسیردمعروف له لفظ پرته کول دمنشاخداوندي بلکل خلاف دی ، نودسپریم کورټ داایت بنیادجوړول ، فیصله صادرول دهغه خو له هیڅ آیت څخه هم اونه ددې آیت له ترجمې اوتفسیرڅخه ثبوت کیږي بلکي دمعروف له قیدڅخه ددارازفیصلې په ډاګه تردید کیږي.

### په اسلام کې دنفقې قانون

دنان اونفقې مسئله هم شرعاديوخاص تعلق پربناباندي واجب کیږي داسلامی قانون قاضی القضاة ،فقیه العصرعلامه ابن نجیم مصری رحمه الله په خپل کتاب بحرالرائق کې دنفقې وجوب دارازبیان کړی دی: په اسلام کې صرف په دروو جوسره نفقه واجبیږي اول قرابت ، دوهم زوجیت ، دریيم ملک ،له دې وروسته وایې: دنفقې وجوب دنفس داحتباس ( بندېدو ) په وجه واجبیږي ،څوک چې دخپل حق په وجه سره بندي کړل سي نودهغه نفقه دبندي کوونکې پرذمه واجب ده ( ص: ۱۸۸ج: ۴ ) اوپه درې سره وجوکې چې یوه وجه هم نه وي نونفقه واجب نه ده ،څرنګه چې طلاقه سوې ښځه له طلاق وروسته له خاوندڅخه پردۍ کیږي هغه هم مکمل اختیارمنده کیږي چیري چې غواړي تلای سي ، دخاوندپرهغې هیڅ حق هم نسته البته دعدې ذمواري پرخاونددة مګرپه عده کې دننه اوله هغې وروسته ټول حکمونه دپردۍ په څیر کیږي ، په داسي حالت کې شرعی قانون ترنفقه تحت هم پرداسي پردي خاوندباندي دیوپردۍ ښځې لپاره نفقه واجب کړې نه ده ، او دنیاوي قانون هم یوآزادسړی



دیوآزادې ښځې لپاره کله چې هیڅ رشته اوتعلق نه وي پرنفقه ورکولوباندي نه دی مجبوره کړی ، دبحرالرائق ملاصاحب رحمه الله تردې پورې ویلې دي: که چیري دخاونداوښځې په مینځ کې دزوجیت ( نکاح ) تعلق باقي پاتې نه وي نوهیڅ قسم نفقه پرخاوندباندي واجب نه ده (ص: ۱۹۴ج: ۲)

په داسي حال کې تردوهمې نکاح پورې (یعنی چې تردوهمې نکاح پورې به نفقه ورکوي ) فیصله څومره دشرعی خلاف ده تاسوغوروکړئ ، اومحض دهمدردۍ ترعنوان لاندې دشریعت خلاف فیصله په هیڅ رنګ هم برداشت نکړئ ، تراسلام زيات همدرددنیاهیڅ مذهب اوعدالت کیدای نسي ،بلکه دفقهاء اسلام دتشریح مطابق دداسي نفقې واپسي پرښځې باندي واجب ده ، اسلامی قضاء له دارازتفریق وروسته که چیري ترعدې زیاته نفقه ښځې ته ورکول سي نودهغې واپسي لازمه اودخاوندحق بلل سوی دی (بحرص: ۱۹۴ج: ۲ )

### داسي نفقه حرامه ده

دنفقې په بحث کې داخبره هم دغوروړده چې کومه نفقه حلاله اوکومه حرامه ده اوپه شرعي حیثیت سره ترعدې زیاته نفقه په داسي حالت کې کله چې دشریعت اجازه نه وي اونه پخپله خاوندراضي وي ؟ په دې کې هیڅ شک نسته چې دقرآن اوحدیث په رڼاکې دداسي زیاتې نفقې خوړل دښځې لپاره حرام دي هغه ددې مالک جوړېدل جائزنه دي ، دفقهاؤدتشریح مطابق داسي مال دغصب مال اوباطل دی ، دهغه واپس کول ضروري دي په ضائع کوونکې یااستعمالوونکې باندي یې ضمان ( تاوان ) راځي دالله تعالی ارشاددی: اوپه خپلوکي یودهغه بل مال په ناحقه مه خورئ اومه غورځوئ دغه مالونه ظالموحاکمانوته ددې لپاره چې تاسي دخلګوله مالونوڅخه په ظلم سره وخورئ اوتاسوپوهیږئ هم (بقرة ایت: ۱۸۸) اودوهم حکم داچې: تاسوپه خپلوکي یودهغه بل مال په ناحقه مه خورئ هوپه کوم تجارت سره چې په خپلوکي په رضاسره وي په دې کې کومه تنګي نسته (نساء آیت ۲۹)

له دې څخه ضفابنکاریږي : چې ځان بوج کول ،دحرام مال حاصلولوپه غرض دعوې کول سخته ګناه ده ، دحدیث په رڼاکي هم داسي مال خوړل حرام دی لکه څرنګه چي دنبی علیه السلام په خدمت کي دوه سړو دمال دعوه راوړه راغلل نبی علیه السلام وویل : چي وګورئ زه هم انسان یم تاسي خلګ ماته دعوې راوړئ اوپه تاسوکي بعضی غوړژبي اودسحرپه ځیربیان کوونکي وي ،څرنګه چي زه خوبیان اورم په ظاهره دیوه په حق کي فیصله وکړم مګرپه یادلرئ که چیري ستاسي دوروپه حق کي له ماڅخه څه فیصله وکړل سي نوهیڅکله یې مه اخلئ ،ځکه ستاسولپاره داداورسکروټه اخستل دي ( مشکوة شریف ص : ۳۲۷)

یعنی که چیري فیصله سوی مال په حقیقت کي ستاسوحق نه وي بلکي ستاسو دوروحق وي نوستاسولپاره دهغه اخستل له فیصلې وروسته هم حرام دي که څه هم فیصله صحیح وي ،ځکه دنبی علیه السلام په فیصله سره حرام مال نه حلالیږي نونن ددنیاوي قضاپه فیصله سره حرام مال څرنګه حلال جوړیږي ،داراز دسپریم کورټ په فیصله سره حاصل سوی مال حرام دی ،حلال نه دی ، دفقهاء کراموله تشریحاتوڅخه هم داسي مال دغصب مال معلومیږي ،مشهورفقیه علامه کاسانی په خپل کتاب بدائع الصنائع کي ویلې دي : چي دمالک له خپل مال څخه دهغه قبضه په زورزائلول غصب دی ، امام شافعی رحمه الله وایي : دیوچاپرمال باندي دهغه له رضاپرته قبضه کول غصب دی (بدائع الصنائع ص : ۱۴۳ج : ۴) په مشهورکتاب هدایه شریفه کي دي چي دیوشی دمالک له اجازې پرته اخستل غصب دی له دې تشریحاتووروسته ترعده په زیاته نفقه کي څرنګه چي دخاونداجازه شامله نه ده له دې وجې بېله شکه دامال دغصب د مال په حکم کي کیږي اوسراسرحرام دی.



## دتردوهمې نکاح پورې قید

دسپریم کورټ په فیصله کي له عدې پرته دتردوهمې نکاح پورې دقیدموده دومره مجمل اوغیرواضح ده چي دهغه په ظاهره هیڅ انتهانسته ، که چیري تاسوددې قید پرفائده باندي غوروکړئ اوددې دفیصلې له سپریم کورټ څخه پوښتنه وکړئ نوددې پروحضراتو تاواني اړخونه به مخې ته درته راسي ، ترټولولوئ تاوان خوددې نازک صنف ،ناقص العقل ښځووي چي دهغوئ لپاره دطلاق دضرورت اوتقاضاسره ،سره جائزه دروازه هم بندیږي ، دښځو پرزړهاووغوښتنو سرېېره به هم خاوندمحض له دې ویرې چي دهغې له عدې وروسته به هم نفقه برداشتوي ، طلاق نه ورکوي ، دښځې زندګي به بربادیږي بل طرفته به دخاوندضرورت وي اودطلاق دټولو اسبابو اوشرائطوله موجودېد و سره ،سره به طلاق نه ورکول کیږي ، دارازبه ددواړوژوندتریخ کیږي بیابه نودمعصیت ګناهونودروازې راخلاصیږي ،ددې لازمي نتیجه به داوي چي ښځه څومره هم ګناه کوي ،دالله تعالی حدود پایماله کوي خاوندبه هسي ناست وي ، له دې وجې نوداسي فیصله دښځې په حق کي له اخلاقي اوشرعي پلونه بده ثابتیږي ، دخاوندپه حق کي هم بده ثابتیږي ، چي له هغه څخه دادطلاق حق مجروح کیږي ، حال داچي خاوندله دې اختیارسره پرښځوباندي حاکم ټاکل سوی ووٍ، اواوس خوښځه پرخاوندباندي حاکمه جوړه سوه ، بیادمطلقي نوعیت مختلف وي بعضی ځواني وي ،بعضی پاخه عمروالااوبعضی سپین سرې وي ، کله چي مطلقې ته نان اونفقه رسیږي نوبیادوئ دڅه لپاره نکاح کوي څرنګه چي اکثره طلاقې سوې بلکي ټولې تقرېباله دوهمې نکاح کولوڅخه پرهیزکوي اوکومې چي ترځلوښتورسېدلې وي دهغوئ لپاره خوددوهمې نکاح مسئله بیخي نه وي دارازدخاونددپرېشانۍ له وجې هم ډیری ښځې دنکاح نوم نه اخلي په دې سره معاشرتي خرابي خوپرخپل ځای مګرپه داسي حالت کي دخاوندڅه کیږي ؟ آیادهغه بنیادنه خیژي ، بیاخونفقه تردوهمې نکاح پورې

پرځای ترټوله ژوندپورې سوه ؟ ، صرف ترديې ځايه خبره نه ختميږي بلکې دخاوندحيثيت ته هم کتل ضروري دي ، اوس يوسړى ترشرعي جوازلاندي طلاق ورکوي مګرتردوهمې نکاح پورې دنفقې برداشت نه سي کولای ، نه دهغه ذرائع وي اونه وسائل ، بيادداسي خاوندپه اړه دسپريم کورټ فيصله څرنګه کيږي ؟آياهغه به په بندکي اچول کيږي ، حال داچي دواجب نفقې له اداينې څخه عاجزه هم په شرعي قانون کي نه بندي کيږي ، اوچي بندي هم سي نوښځې ته څه فائده ، دهغې سره همدردۍ ته يې څه فائده وکړه ؟ بيابه دهغې لپاره نفقه له کومه راوړي ، هوالبته په داسي صورت کي دښځې دهمدردۍ لپاره دنفقې ذمواري پرحکومت اچول پکاردي ،ځکه په واجب نفقه کي دشريعت ضابطه همدارازده ، يوازې داهم دغورکولوقابل دى چي سپريم کورټ کله نفقه ورکړې ده نوبياخوخاوندته لږ،ترلږه دومره اختيارضرورقانوناً ورکول پکاردي چي دمطلقې لپاره داخاونددخاوندپه حيثيت نه بلکې ديوعام مزدورپه حيثيت ترهغوپورې نفقه ورکړي ترڅوچي دادوهمه نکاح کوي ددې لپاره چي تردوهمې نکاح پورې دنفقې څه فائده خوخاوندته ورسيږي ،کله چي دوهم واده وکړي ، هغه ولاړه سي.

ظاهره ده چي عدالت داسي رأيه نه خوښوي نوبيايې شريعت له دومره نقصاناتواومضراتو سره دخاوندپه حق کي څرنګه برداشت کړي ، واضحه دي وي چي مذکوره ټول مضرارخونه شرعًا ناجائزدي محض دمسائلودتنقيح لپاره واضح کړل سوپه داسي حالت کي دارازفيصله څومره بده ثابتيږي تاسوپخپله اندازه ولګوئ.

## اخيري سوال

اوس دبحث په پای کي يوسوال باقي پاتي سودهغه تشريح هم وګورئ ، سوال داپيداکيږي چي کله دمطلقې په هکله دشريعت حکم صرف ترعدې پورې نفقه ورکول دي نوبيادابېچاره په راتلوونکې کي څرنګه ګذاره وکړي ؟ نومخکې



ترجواب له تاسوڅخه دعرض په شکل پوښتنه کول غواړوچي په څورلس سوه کاله کي به څومره ښځې طلاقې سوې وي دهغوئ ګذاره اخيرڅرنګه وه ؟ آياهغوئ بې ډوډۍ اونفقې مړې سوې يا ژوندۍ اوسيدې ، اوچادهغوئ نفقه برداشت کړه ؟ آياتراوسه پورې دهغوئ دپالنې اوګذارې دستورڅه وو؟ آيابې اسري وي ياهمدردي ورسره سوې وه ؟ داهغه سوالونه دي چي که په ساړه دماغ غورپروسي نوجواب بې په اسانۍ سره کيږي اوپرشريعت باندي هم هيڅ داغ نه راځي ، اوشفقت اوهمدردي هم له مينځه نه ځي ، که چيري موږپه ديانت سره غوروکړونودې حقيقت ته رسيږوچي دهرې طلاقې سوې ښځې ګذاره سوې ، قدرت دهغې انتظام کړی ، کله خوداسي هم سوې چي ترخاوندهلته زياته خوشحاله اوپه آرام وسکون وي اوکله ، هم دتنګۍ اوپرېشانۍ مرحله نه وي ورباندي راغلې ، اخيرکله چي خاوندمړسي بيابه هم تاسوداسوال راپورته کوئ خدانخواسته له الله تعالى څخه به شکايت اومطالبه کوئ ؟ بيادهغې لپاره دآرام اوپرېشانۍ څه ضابطه ده څوک پرېشان اوڅوک خوشحاله اوسي ، اودوه څلورکه چيري په پرېشانۍ کي مبتلاهم سي نوداکوم معيارنه دی دومره پرېشاني خوپه هغوښځوکي هم پيداکيږي کومې چي خاوندان لري ،آيا هرخاوندوالاپه عيش اوآرام سره ژوندتيروي ، لهذادشريعت په نظرکي کله چي مطلقې برابرې دي اوکله چي داکوم معيارنه دی نودعدې نفقه بلا استثناءټولولپاره واجب بلل سوې ده ، بياشريعت له دې وروسته دهغې لپاره يادې واده وکړي که واده نه وکړي بيادهغې نفقه دهغې پربالغ زوئ ،که هغه نه وي نوپرمورا وپلار اوکه هغه نه وي نوپرورور،که هغه نه وي پراکاراودهغوئ پراولادونوباندي په ترتيب سره شرعًا واجب کړې ده (بدائع ص:۳۰ج:۴) په هدايه کي هم داسي تشريح ده ( هدايه ص: ۴۲۲ج:۲) اوبياخدای دې نکوي که چيري دکومې ښځې يورشته داراوقريب ،عصبه يا ذوی الارحام نه وي نوپه دې وخت کي دمحلې پرمخوررواومسلمانه ټولنه باندي داذمواري راځي اوپه شرعي

اعتبارسره که چیري بیت المال وي نو دهغې نفقه دبې اسرې خلګو په خیرپربیت المال ده که ددا نوبت نه وي راغلی نوهم په شریعت کي ددې یونظام قائم دی.

## دطلاق مثبت اومنفي اړخ

نکاح دنارینه اوښځې دعزت اوآبرومحافظ ، دانسانی نسل دتسلسل دبقاء ذریعه اودانبیاء علیهم الصلوة والسلام عظیم سنت دی ، دې ته په امتیازي خصوصیتونوکي دنبوت په ژبه سره دنیم ایمان تکمیل اودیوله بل سره دمحبت اوالفت مضبوط څنځیرویل سوې دي ، دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدنکاح کول په نفلي عبادت کي اشتغال اوترګوښه کښېنستو افضل عبادت دی ، په قرآن اوحدیث کي دنکاح کولوترغیب ورکول سوی دی اوله قدرت سره ،سره نکاح نه کول یادنکاح رشته ختمول ناخوښه اوبدترین فعل بلل سوی دی.

داحقیقت هم پرخپل ځای مسلم ( منل ) سوی دی چي دازدواجي زندګی مقصدخالي شهوت سړول نه دی بلکي دخاونداوښځې دعصمت اوآبروحفاظت ، داولادغوښتنه ، له دواړوجانبینوڅخه دحقوقوادائینه ، دزړه دسکون حصول دي ، له کوم څخه چي قرآنکریم په لتسکنواالیها( ددې لپاره چي په ښځوسره تاسوته سکون اوآرام حاصل سي ) جامع الفاظو سره تعبیرکړی دی ، له نکاح وروسته چي کومې جوړې ته دغه فائدې حاصلې سي هغه ښېله شکه کامیابه برخمنه جوړه ده ، په داسي حال کي دخاونداوښځې په مینځ کي دتفریق یاطلاق شرعًا هیڅ حق نسته ، ددې پرعکس که چیري دخاونداوښځې په مینځ کي تعلقات پیچلي سي ، اتفاق اوهماهنګي نه وي ، دمحبت اومینې پرځای په زړونوکي کینه اوبغض راسي اوپیچلتوب دې درجې ته ورسیږي چي یوله بله ژوندتیرول مشکل سي نوپه داسي صورت کي ددواړوپه مینځ کي دتریخ ژوندتیرولوپرځای خاوندته پکاردي چي دطلاق کوم اختیارورکول سوی هغه استعمال کړي ،ښځه دنکاح له لومې آزاده کړي.



طلاق په څه حالاتوکي ناروااوپه څه حالاتوکي روابلکي ضروري کیږي ؟ دواړه اړخونه ډیرنازک اوحساس دتدبراواندېښنې تقاضاکوونکي دي افسوس چي نن په مسلمانه ټولنه کي دطلاق واقعات په داسي کثرت سره مخې ته راځي چي ګواکي دمسلمان په نظرکي داهیڅ ګناه نه بلکي دثواب کاردی ، ( ددې اندازه له دې څخه کیږي چي دملک دیوې مشهورې ورځپاڼې مطابق صرف دلاهورپه ښارکي دیوه کال په دننه ،دننه کي دښځو له لوري په عدالتونوکي اته زره دعوې دائریږي ، الامان ) په نژدې ورځوکي که دراغلیوډیری واقعاتوپه انصاف سره جاج واخستل نوښایې چي ډیرې لږېه داسي وي چي په هغوکي خاونددیوشرعی عذرله وجې اوخاص په شرعی طریقه سره طلاق ورکړی وي کني دطلاق اکثره واقعات ډکوردننه په معمولی تنازعاتو، دوقتي جذباتو، ذهنی تناب یادبدګمانی اوتهمت په نتیجه کي مخې ته راځي ، بیاپه دې کي دطلاق ورکولوطریقه هم هغه اختیاروي ، کومه چي سراسردشریعت خلاف اوجاهلانه طریقه وي ، کله چي دهغه بل جانب بعضی خلګ په هیڅ صورت طلاق ورکولوته تیارنه وي ،که دزوجینوزندګي په عذاب تیریږي هم ، اودطلاق ورکول شرعًا ،اخلاقاپه هرلحاظ ناخوښه دی ، ګواکي له مصیبتونوپه ډکه زندګی ګرفتاراوسېدل نه تیریږي ،مګرطلاق ورکول له دې مصبت څخه خلاصون دی.

دطلاق په مثبت اومنفی دواړواړخونوکي مسلمان دالله تعالی حدودپاماله کوي ، له دې وجې ضرورت ووچي پراړخونوبې رڼاواچول سي دهغوئ شرعی حدودروښانه سي ، څرنګه چي دطلاق په باب کي اصل اواهم دهغه منفی اړخ دی ،چي دنکاح رشته دائمه بلل سوې نوله طلاق ورکولوڅخه تروسه پورې پرهیزوکول سي ، مثبت اړخ یعنی په اضطراري حالت کي دطلاق اختیار استعمالول یونادرالوقوع اړخ دی ، کوم چي پریوڅواستثنایې صورتونو مشتمل دی ، له دې وجې موږمخکې منفی اړخ راخلو.

## دطلاق منفي اړخ

طلاق دالله تعالی په نظرکي مبغوض اوډیرناخوښه شی دی لکه چي دنبی علیه السلام ارشادمبارک دی: ابغض الحلال الی الله الطلاق ( ابوداؤد ) دالله تعالی په نظرکي په حلالو شیانوکي ناخوښه شی طلاق دی.

ایماامرأة سألت زوجها طلاقا فی غیرمابأس فحرام علیها رائحة الجنة ( احمد ،ترمذی ،ابوداؤد ) کومه ښځه چي بېله کومې وجې له خپل خاوندڅخه دطلاق غوښتنه وکړي پرهغې باندي دجنت بوئ لاحرام دی ،

المنتزعات والمختلعات هن المنافقات ( نسائی ) کومې ښځې چي بېله عذره له خاوندانو څخه دخلاصون طلبګاري وي اودخلعې مطالبه کوي هغوئ منافقانې دي.

دطلاق مبغوض اوناخوښه کېدل دعقل په اعتبارسره هم ظاهردی ، ځکه چي دیوه خاونداوښځي دغه تفریق ( جلاوالی ) په حقیقت کي ددوو خاندانونوجلاوالی ثابتوي ، دهغه پراس اویوله بله نفرت ،بغض وعداوت بلکي ډیروختونه خودقتل ،قتال په صورت کي ظاهرېږي ،خبره لویه سي له خاندانونووخي قبیلواوقومونوته دهغه اثرات خپاره سي ، ښایې همدانکته وي چي دانسان دازلی دښمن ابلیس په نظرکي داګناه ترهره ګناه ډېره عزیزه ده لکه څرنګه چي رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشادمبارک کوي:

ان ابلیس یضع عرشه علی الماء ثم یبعث سرایاه یفتنون الناس فادناهم منه منزلة اعظمهم فتنة یجیئ احدهم فیقول فعلت کذاوکذا فیقول ماصنعت شیئا قال ثم یجیئ احدهم فیقول ماترکته حتی فرقت بینه وبین امرأته قال فیدنیه منه ویقول نعم انت قال الاعمش اراه قال فیلتزمه ( مسلم )

ترجمه: ابلیس پراوبوباندي خپل تخت کښېږدي ، بیادخلګودګمراه کولوپاره خپل لښکرولیږي ، په دغوشیطانانوکي دهغه نژدي ترین شیطان هغه وي کوم چي ترلویه لویه فتنه برپایه کړي وي ، څرنګه چي یوشیطان خپله کارګذاري واوروي ووایې چي ماپه فلانی ،فلانی ،فلانی ،فلانی ګناه وکړه ، لیکن ابلیس وایې چي تادومره کارنامه نه دي کړي ،هغه صلی الله علیه وسلم



ارشادمبارک کوي چي بیایوشیطان راسي وایې چي مافلانی سړی ترهغوپوري نه پرېښوترڅوچي مې دده اودده د ښځي په مینځ کي جلاوالی راووست ،رسول الله صلی الله وسلم وویل چي ابلیس هغه ځان ته رانژدې کړي په خوشحالی ورته ووایې چي تاښه کارکړی اوله سینې سره یې جوخت کړي.

دارازپه په قرآنکریم کي دجادوګرویهودیانوخوښه مشغله بیانوي چي دخاونداوښځي په مینځ کي به یې جلاوالی راوستی له دې وجې شریعت طلاق نه خوښوي.، وګورئ چي شریعت له طلاق څخه دځان ساتلوداسي انتظام کړی چي دطلاق اختیاریې دښځوپرځای نارینه ته ورکړی دی ،ځکه چي په نارینه کي دښځې په نسبت دصبر،تحمل اوقوت برداشت ډیردی ، لهذاهغه ددې په استعمالولوکي له تلوارڅخه کارنه اخلي ، بیایې خاوندته داهدایت کړی چي که چیري دښځې دنافرمانی اوسرکښی په سبب ازدواجي حالات پېچلي سي نوهغه دې دطلاق ورکولوپرځای مخکې دهغې داصلاح پوره کوشش وکړي اودهغې پرراسته لاردبرابریدولپاره په ډیرمرحلوکي په قرآني هدایاتوعمل وکړي ترټولومخکي دي دوعظ اونصیحت اودڅبې په ذریعه دښځې اصلاح وکړي ، که چیري په دې تدبیرسره هغه نصیحت ومني ، اودده اوښځې په مینځ کي اختلاف ختم سي نوفبها ! کني له هغې څخه دې بستره جلا کړي په دې سره ښځې ته اګاهي ورکول کیږي اوله خپلې کج روی نه راګرځي که چیری داتدبیرهم کارونکړي نوهغې ته دې جسماني سزاورکړي لیکن معمولي درجه چي پرجسم باندي یې داغ جوړنسي ، دادمجبوری سزاده دارسول الله صلی الله علیه وسلم نه ده خوښه کړې.

که چیري دحال داصلاح کېدولپاره همداتدابیرمؤثرثابت سي اوښځه دخاوند اطاعت شروع کړي نوخاوندته پکاردي چي په ډیروخبروکي له درګذر(عفو) څخه کارواخلي اودهغې دپوهوولوکوشش وکړي ، که چیري خدای دي نه کوي دغه درې تدبیرونه هم مؤثرثابت نسي اودده اوښځې په مینځ کي اختلاف

اوږدسي نواخيري تدبيردادی چي ددواړوله کورنيونه يو ،يودربمګړی چاڼ کړي
چي ددواړو( خاونداوښځي ) موقف واوري دهغوئ په مينځ کي دمصالحي
کوشش وکړي ، که چيري دربمګړی په اخلاص اونيک نيت سره خپل کردار
اداکړي نودالله تعالی وعده ده چي ضروربه دهغوئ مددکوي ، اوداتفاق او
اتحادبه يونه يوصورت راځي.

لکه چې دالله تعالی ارشادمبارک دی: اوکومې ښځې چي داسي وي چي تاسوته
دهغوئ دبددماغی احتمال وي هغوئ ته په ژبه نصيحت وکړئ ، اوهغوئ
دبربوتلوپه ځای کي يواځي کړئ ،اوهغوئ ووهئ ، بياکه هغوئ ستاسو اطاعت
شروع کړي نوهغوئ ته بهانې مه جوړوئ ، بېله شکه الله تعالی دلوئ رفعت
اوعظمت والادی ، اوکه چيري تاسوپورته والاووته ددوئ دواړوپه مينځ کي
دکشمکش انديښنه وي نوتاسوخلګ يوسړی کوم چي دتصفيه کولولائق وي
يودخاوندله خاندان څخه اويودښځي له خاندان څخه وټاکئ که چيري
ددغودووسړواصلاح منظوره کړي نوالله تعالی به دده اوښځي په مينځ کي
اتفاق راولي ، بېله شکه الله تعالی دلوئ علم اولوئ خبروالادی ، (۳۵/۴ ترجمه
تهانوی قدس سره )

که چيري په ناچاره حالاتوکي خاوندته دطلاق داختيارا ستعمالول وي نوپه هغه
کي دي هم دشريعت پابندي کوي ، چي ښځي ته په مخصوصوورځوکي طلاق
ورنکړي ، بلکي دهغې دپاکېدوانتظاردي وکړي ،ځکه چي دحيض په حال کي
دطلاق ورکولوپه صورت کي عده دغه شروع سوی حيض پرځای له
راتلونکې حيض څخه شروع کيږي اوبېله وجي دښځي عده اوږديږي ، اوبله
پابندي داده چي له پاکېدووروسته بېله کوروالي کولوطلاق ورکړل سي ، ځکه
چي په دې وخت کي دنارينه دښځې وطرفته ميلان اورجحان وي ، دښځي
وطرفته له رغبت اوميلان سره ،سره هغې ته هغه سړی طلاق ورکوي کوم چي
مجبوره وي اوله طلاق پرته دهغه بله چاره نه وي ،دارازکه چيري دصحبت (



کوروالی ) کولوپه صورت حمل وسي نودښځې عده ډيره اوږديږي اودحمل
ترزيږيدوپورې به انتظارکوي ، له دې وجې شريعت ضروري بللي ده چي که
چيري خاونددطلاق فيصله وکړي نو دحيض پرځای په هماغه طهرکي په کوم
کي چي کوروالی نه وي سوی طلاق ورکړي.

دطلاق په باب کي دشريعت ترټولواهم اواخيري هدايت دادی چي خاونددي په
يوه وخت دري طلاقونه چي دازدواج رشته بيخي ختمه سي نه ورکوي ، بلکي
ددې افضله اواحسنه طريقه داده چي په صريح الفاظوکي صرف يوطلاق ورکړي
پرې يې ږدي ،تردې چي عده تيره سي ، دعدې په تيريدوسره ښځه له نکاح وځي
اوبل ځای دهغې نکاح کول جائزکيږي ، ليکن ترڅوپورې چي دطلاقې سوې
عده پوره سوې نه وي دخاوندلپاره هغې ته درجوع کولولارخلاصه ده.

دطلاق دوهمه درجه داده چي ښځې ته درې طلاقونه ورکړي ، مګرپه درو
طهرونوکي (کوم چي له کوروالی خالي وي ) په دې کي تردريم طلاق مخکې
مخکې دخاوندلپاره درجوع کولو اختياردی.

دطلاق دريمه درجه دبدعت طلاق دی ، کوم چي په لاندي دروصورتونوکي
شامل نه وي(۱) دحيض په حال کي طلاق(۲) په داسي طهر(پاکوالی ) کي طلاق
په کوم کي چي کوروالی سوی وي (۳) په يوه طهرکي دوه يادرې طلاقونه
ورکول هغه که په يوه مجلس کي وي ياپه جلا ،جلا توګه دغه درې سره قسمونه
بدعت اوګناه دي خوطلاق په دغوټولوصورتونوکي واقع کيږي.

خلاصه داچي طلاق دالله تعالی په نظرکي مبغوض اوناخوښه عمل دی ، دهغه
ويرونکې نتائج اوتاوانونه دبيان محتاج نه دي ، له دې وجې شريعت دطلاق
حوصله افزايي نه کوي بلکي ګام ،په ګام يې له هغه څخه دځان ساتلو انتظام
کړی دی ،دانازک اختياريې نارينه ته سپارلی اوهغه يې پابندکړی چي دغه
انتهايي ګام صرف په هغه صورت کي پورته کړي کله چي داصلاح هيڅ صورت
پاتي نسي اوخپل اختيارهم ترمحدودحدپوري استعمال کړي صرف پريوه

رجعي طلاق بسنه وکړي لیکن افسوس نن مسلمانان دهغوټولو شرعي هدایاتو شاته غورځوونکي دي ، نن په کور،کورکي دطلاقونو واقعات لیدل کیږي ، داسي معلومیږي چي داکار دمسلمانانو په نظرکي مبغوض خوپریږده یو محبوبه مشغله ګرځیدلی دی ، اودهغوئ دعمل له طرزڅخه معلومیږي چي طلاق دهغوئ له لوری یو انتهایی کام نه بلکي یو ابتدائی کام وي فالی الله المشتکی !

**ددروطلاقونووبا**

دجهالت داعالم دی چي له دروطلاقونوورکولوپرته خلګ پرطلاق نه بولي ، بلکي په عامه توګه تردروهم زیات طلاقونه ورکوي ، اوددې سنګیني ګناه په رواج اوعاملوکي ترټولولوئ دخل دملک دباندي دعریضه نویسودی ، له دې وجې چي طلاق ورکوونکي خلګ دطلاق په طریقه دناخبرۍ له وجې عریضه لیکوونکوته ځي ، چي مورته طلاقنامه راولیکئ ، هغه پراستامپ باندي داسي قسم ددروطلاقونوعبارت ولیکي اوخاوندته یې ورواوروي اوله هغه څخه دستخط واخلي (من مسمی خپلې ښځې مسماة ) ته طلاق ،طلاق ، طلاق ورکړ،پرخپل نفس مي حرام ،حرام وبلله ،یاله هغه څخه کوم ګډوډعبارت ولیکي وریې کړي ،په هغه کي دطلاق دالفاظوپوره یوقطارلګېدلی وي ، لیکوونکوته دومره احساس هم نه وي چي داڅوالفاظ ولیکل سو،هغه څومره لوئ قیامت جوړکړی دی ؟ ددې په نتیجه کي څومره لوئ فسادراځي ؟ څومره کورونه خرابیږي ؟ حال داچي ددومره لویې ذمواری ترسنبالولومخکې دیوه مسلمان لپاره دامعلومول ضرور دي چي طلاقنامه لیکل یوعام قسم تحریرنه دی ،بلکي یواهمه اونازکه مسئله ده ، په کومه کي چي تروسه پوري احتیاط کول فرض دي ، که چیري یوسړی طلاقنامه لیکوونکي ته راسي نوترټولو مخکې دي له هغه څخه دسبب پوښتنه کوي ، که چیري هغه معقول ،شرعي سبب بیان نکړي (دکوم له طرفه چي طلاق لیکل جائزوي ) که چیري دمجبورۍ تحت هغه طلاق ورکوي نوبیاهم دهغه له طرفته دري طلاقونه لیکل جائزنه دي ،



بلکي که یوناپوه له ځانه ددروطلاقونود لیکلو وایي نوبیایې هم لیکل جائزنه دي ،ځکه چي دادتعاون (کومک ) علی المعصیة په زمره کي راځي ، ضروري ده چي هغه پوه کړي دیوه طلاق پرورکولوباندي یې راولي بیاهم که چیري یوڅوک ددروطلاقونوپرورکولوباندي ټینګارکوي نودهغه له طرفه طلاقنامه په دې الفاظوسره ولیکي ( من مسمی خپلې ښځې مسماة ) ته دشریعت مطابق دري طلاقونه ورکړل.

په دې صورت کي دري طلاقونه په دري طهرونو یادرومیاشتوکي واقع کیږي . اولیک غوښتونکی اولیک ورکوونکی دواړه له ګناه وساتل سو. لیکن بیخي ډیرلیدل کیږي چي نن ، صبا دعریضه لیکوونکوپه لاسونوکي تحریرکړه تولې طلاقنامې ددغوشرعي هدایاتوپرعکس پردروطلاقونومشتملې دي ، شاذاونادرکه یوطلاقنامه وي چي په هغې کي پریوه یادووطلاقونوبسنه سوې وي کني په هره طلاقنامه کي لږ،ترلږه دري طلاقونه (اودزیاتوهیڅ حدنسته ) ضروردرج سوې وي ، حال داچي په یوه واردرې طلاقونه ورکول داسي سنګینه ( درنه ) ګناه ده کومه چي په صحیح حدیث اوکتاب الله کي په استهزا اوتمسخرسره تعبیرسوې ده لکه چي درسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کي یوه سړي ښځې ته په یوه واردرې طلاقونه ورکړې وو ، کله چي هغه صلی الله علیه وسلم په خبرسونورسول صلی الله علیه وسلم په زیات غضب کي ودریداوارشادمبارک یې وکړ:

ایلعب بکتاب الله وانابین اظهرکم (زماپه شتون کي په کتاب الله باندي مسخري کیږي )

ددې منظرپه لیدوسره یوه صحابی رضی الله عنه عرض وکړیارسول الله صلی الله علیه وسلم

آیازه داسړی ونه وژنم (نسائی )

افسوس نن په مسلمانه تولنه کي بندګان په کتاب الله باندي په ډاګه مسخري کوي اوپه دومره کثرت سره یې کوي چي په ماضي کي یې مثال هم نه پیداکیږي

، که چیري له دروطلاقونوورکولومخکې دهغه انجام اونتیجه وکتل سي نوکله به هم دداسي حماقت نوبت رانسي ، لیکن دامعامله سرچپه ده ، خلګ درې طلاقونه ورکړي ،پوښتنه کوي چي اوس درجوع څه صورت دی ؟ جواب دادی چي اوس درجوع هیڅ صورت نسته ، ددروطلاقونوپه نتیجه کي دخاوند اوښځې په مینځ کي قطعي حراموالی راغلی اوښځه پردۍ سوه ، اودداسي قطعي مسئله ده پرکومه چي دټول امت اجماع قائمه سوې ده ، لکه څرنګه چي د اکابروصحابه رضی الله عنهم حضرت عمربن الخطاب ، عثمان بن عفان ، علی المرتضی ، عبدالله بن مسعود ، عبدالله بن عباس ، عبدالله بن عمر ،عبدالله بن عمرو ، ابوهریره ، انس بن مالک ، زیدبن ثابت ،عائشه صدیقه ،ام سلمه ، رضی الله عنهم همدامذهب دی چي په یوه مجلس کي درې طلاقونه واقع کیږي دتفصیل لپاره مصنف ابن ابی شیبه ۴ ، مصنف عبدالرزاق ج : ۶اونورمطولات وګورئ دارازتابعین ائمه مجتهدین غرض داچي دامت داسلافوپرهمدې باندي اجماع ده لکه څرنګه چي امام بدرالدین عینی رحمه الله لیکي : که حضرات تابعین وویاله هغوئ وروسته علماء مثلاامام اوزاعی ، امام نخعی ، امام ثوری ، امام ابوحنیفه ، اودهغه اصحاب ، امام اسحاق ، امام ابوثور ، امام ابوعبید رحمهم الله تعالی اونوردېرحضرات غرض داچي دجمهوروعلماؤمذهب دادی چي کوم سړی خپلې ښځې ته درې طلاقونه ورکړي درې سره واقع کیږي اوهماغه ګنهګاریږي هم ، دارازددې حضراتوقول دی چي که څوک په دې مسئله کي دمخالفت لاراختیارکړي هغه شاذاوله سنت څخه مخالف دی ، ددې شاذمذهب اختیاروونکی له اهل بدعت څخه دی یاهغه خلګ کوم چي داهل حق له جماعت څخه ( دکوموچي دکتاب اوسنت پرتحریف باندي اتفاق ناممکن دی ) انحراف کوي دشذوذاوانحراف په سبب قابل داعتبارنه دي ( عمدة القاری )

امام ابوعبدالله قرطبی رحمه الله تعالی لیکي:



زموږعلماء ( مالکیه ) وایي چي دائمه پرفتوی باندی دهغوئ اجماع ده چي په یوه کلمه سره درې طلاقونه واقع کیږي اوهمدادجمهوروسلفوقول دی ،حجاج بن ارطاة .

دارازدجمهورسلفواوائمه مشهورمذهب همدادی چي درې طلاقونه واقع کیږي هغه که په یوه وارپه یوه لفظ سره ورکړي یاپه جلا ،جلا کلماتوسره ( الجامع لاحکام القرآن ۳/ ۱۲۳)

دمسلم شارح امام ابوزکریاالنووی رحمه الله وایې:

دادهغه سړی په باره کي دعلماؤاختلاف دی کوم چي خپلې ښځې ته ووایې(تاته درې طلاقونه ) امام شافعی ، امام مالک ،امام ابوحنیفه ، امام احمداوسلف ،خلف جمهوروعلماؤرحمهم الله ویلې دي چي درې سره طلاقونه واقع کیږي ( مع شرح النووی۱/ ۴۷۸ )

امام ابن قدامه حنبلی رحمه الله ویلې دي:

که چیري په یوه کلمه کي درې طلاقونه ورکړي نودرې سره واقع کیږي اوښځه ترهغه وخته پورې حرامه ده چي له ده پرته له بل خاوندسره نکاح وکړي ،خواه تردخول مخکې یې دغه طلاقونه ورکړې وي یاله دخول وروسته ، داله ابن عباس ، ابوهریره ، ابن عمر، عبدالله بن عمر، ابن مسعود، اوانس رضی الله عنهم څخه روایت سوی دی اوهمداقول دتابعینواوله هغوئ وروسته داکثره اهل علم دی ( المغنی ۸/ ۲۴۳)

دحاضردورمشهورفاضل اومصنف علامه وهبة الزحیلی لیکلي دي:

په یوه لفظ سره ددروطلاقونوورکولومتعلق دفقهاؤدرې رأیې دي : اول قول دجمهوردی په کوم کي چي دڅلورومذهبونوامامان اواصحاب ظواهرشامل دي ، هغه قول داچي درې سره طلاقونه واقع کیږي اوهمدامنقول دي له اکثره صحابه رضی الله عنهم څخه په کوم کي چي خلفاء راشدین ( پرته له ابوبکر صدیق رضی الله عنه څخه ) عبادله اربعه ( ابن عمر، ابن عمرو، ابن عباس ، ابن

مسعود ) اوابوهريره وغيرهم رضی الله عنهم شامل دي اوله اکثروتابعينوڅخه
هم همدارأيه منقول ده ( الفقه الاسلامی وادلته ۷/ ۴۰۲ )
دنموني په ډول موږ دمختلفومذهبونوداکابروعلماؤڅه عبارات نقل کوو، کني
پردې اجماعی مسئله باندي احاديث اوآثاراوصريح عبارات دومراندازه
تياردي چي دهغوئ دتفصيل لپاره يولوئ کتاب پکاردی.

## دګناه عذر

کوم ناپوه په خپلوجذباتوکي راسي درې طلاقونه ورکړي ،کښيني ،غصه يې
کښته سي هغوئ دخپلې غلطۍ احساس وکړي ،ليکن دخپلې غلطۍ دښکاره
په خوله ويلوپرځای اوس دخپلې غاړې دخلاصۍ لپاره لاري پلټي ، څرنګه چي
بعضی خوبلکل ځان ناګمانه واچوي چي طلاق نه دی ورکول سوی ،اوبعض
حيله ګرداسي عذراوحيلې کوي چي دطلاق نيت مي نه وو،پرهغې باندي مي
دطلاق ،طلاق ....... الفاظ نه دي ويلي ، بعضی وايي چي طلاق مي ليکلی نه
دی ورکړی ،صرف په ژبه مي ورکړ، بعضی وايي ليکلی طلاق خومې ورکړی
ليکن دطلاقنامې درجسټربښځې ته له وصولولوانکارکوي ، لهذواپس راځي ،
بعضی وايي چي طلاق مې ښځې ته ورواوروئ ليکن په کورکي دده اوښځې
ترمينځ هيڅ شاهدنه وو، غرض داچي څومره خولې وي دومره خبرې
اوداعذرخوتقرباډيرتولوپرژبه وي چي په غصه کي مې طلاق ورکړی دی ، ګوا
کي هغه طلاق معتبردی کوم چي په خوشحالي کي ورکول سي ، حال داچي
داټول عذرونه بلکل لغو،بيهوده اوګناه عذرترګناه دبدترمصداق دی ، په دي
ټولوصورتونوکي طلاق واقع کيږي ،که چيري له يومسلمان څخه داګناه صادره
سي نوپه حيث دمسلمان هغه ته پکاردي چي دخپلې غلطۍ په ډاګه دزړه له
کومې اقراروکړي دشريعت فيصلې ته تسليم سي اوله ښځې جلاوالی اختيار
کړي ، په دې کي ددنيااواخيرت کاميابي ده ، له دې پرته بله هره لاراختيارول
دين نه بلکي هواپرستي ده مثلا بعضی غلط بياني کوي له يوعالم څخه فتوی



حاصله کړي اوخپل ځان په مطمئن کړي طلاقه سوې ښځه په کورکي ورسره
وساتي حال داچي داسي فتوی دهغوئ لپاره په هيڅ درجه کي هم فائده منده
اوکارکوونکې نه ده ، ښځه په دستورپرحرامه ده ، داسي نامحرم اوپردۍ ښځه
په کورکي ساتل ،يادفتوی په بنياديې ساتل ، په هرحال ددې فعل په حرمت
اوبدوالي کي فرق نسته ، بلکي دفتوی په ذريعه ترهغه اړخ زياته خطرناکه
کيږي چي هغه دجرم احساس له زړه راوباسي ، دداسي فتوی حيثيت له خپل
ځان سره له فريب کولوپرته بل هيڅ نه دی ، بعضی خلګ بياله هرطرفه نااميده
سي دغيرمقلدينووطرفته رجوع وکړي (دهغوئ په مذهب کي په يوه مجلس کي
درې طلاقونه يوشمېرل کيږي ) موږوضاحت کړی چي دامذهب دصحابه
،تابعينواوائمه مجتهدينورضی الله عنهم اودپوره امت داجماعی موقف
دخلاف کېدوپه سبب باطل اوناقابل اعتباردی ، له دې وجې دهغه ترديدکول هم
دوخت ضائع کول دي ، لکه څرنګه چي ابوحنيفه ثانی امام زين الدين ابن نجيم
رحمه الله ليکلې دي:

کوم سړی چي په يوه وخت ددرې طلاقونوله واقع کېدومنکروي دهغه په ردکي
ددلائلوپېشولوهيڅ ضرورت نسته ،ځکه چي داداجماع امت خلاف دی لکه چي
په معراج کي نقل دی ، له دې وجې فقهاء وايي که چيري يوحاکم فيصله صادره
کړي چي په يوه واردرې طلاقونه يوطلاق دي نودهغه فيصله نه نافذيږي ، له دې
وجې چي په دې مسئله کي داجتهادځای نسته چي محض مخالفت دی نه چي
اختلاف ( البحرالرائق ۳/ ۲۳۹ )

بعضی هواپرسته محض دمطلب دلاس ته راوړلولپاره ، مذهب بدلوي ،
داداسي بدحرکت دی ، په کوم سره چي دايمان دسلب کېدوخطره ده څرنګه چي
له امام ابوبکرجوزجانی رحمه الله څخه ديوداسي سړي په اړه سوال وسوکوم چي
درشتې په لالچ سره مذهب تبديل کړی وونووي ويل: چي نکاح خوجائزده ليکن
ماته انديښنه ده چي دمرګ په وخت به دهغه ايمان سلب ( ولاړ ) سي ،له دې وجې

چې هغه دخپل مذهب کوم چې دده په نزدحق اوسچه وو ، دیوبدبویه شی په خاطراستخفاف(توهین ) وکړاوهغه یې پرېښوو( ردالمحتار۳ / ۸۰ )

لنډه داچې له درې طلاقونوروسته دامت په اجماع سره ښځه قطعي حرامیږي ، دهغه نتیجه پرته له رنج اوافسوس هیڅ نه راوځي ، بیاددې یوې ګناه په سبب دځومره ګناهونو دروازه خلاصیږي.

له دې وجې کوم مسلمان چې پرطلاق ورکولومجبوروي هغه دې پریوه طلاق باندې اکتفاوکړي دځان لپاره دې رجوع یالږ،ترلږه دنکاح نوې کولوځای پرېږدي ، که چیرې دجهالت اوناپوهۍ په سبب درې طلاقونه ورکړي نوپرګناه دهمېشه توب پرځای دې له ښځې څخه جلاوالی غوره کړي اوله دې ګناه څخه دې دزړه له کومې توبه وکاږي اواستغفار دې وکړي.

دغه تنبیهات ( اګاهیانې ) دخاوندلپاره وې ، دموقع په مناسبت یوه اهم مسئله دښځې په حق کې ذکرکول هم ضروري معلومیږي هغه داچې کله په یومعتبره ذریعه سره ښځې ته معلومه سي چې خاونددې ته طلاق ورکړی دی اودواړه یوپر بل باندې حرام سونوپرښځې باندې فرض دي چې له خاوندڅخه جلا سي یالږ،ترلږه هغه ځان ته نږدې پرېنږدي ، خپل عصمت اوعزت له هغه څخه داسي وساتي څرنګه چې یې له نامحرم پردي سړی څخه ساتي کني داهم په ګناه کې برابره ورسره شریکه ده.

په دې مسئله کې ښځه دقاضي په څیرده کله چې هغه دطلاق الفاظ پخپله واوري یاکوم عادل کس هغې ته دطلاق خبرورکړي نودهغې لپاره جائزنه دي چې خاوندته پرځان قدرت ورکړي(ردالمحتار۳ / ۲۵ )

تراوسه پورې دطلاق پرمنفي اړخ باندې خبره وه چې طلاق دالله تعالی په نظرکې ناخوښه فعل دی له دې وجې ترڅوپورې چې ممکن وي له دې اقدام څخه پرهیزکوئ ،خاونددااختیارصرف په هغه صورت کې استعمالولای سي کله چې له دې پرته بله چاره نه وي ، اوس موږدطلاق مثبت اړخ رااخلو:



## دطلاق مثبت اړخ

طلاق له زړهاووبدیوسره ،سره کله نه پرېښوونکی ضرورت جوړسي ، لکه چې دخاونداوښځې تعلقات دومره پېچلې سي چې دصلحې اوجوړونې هیڅ یوصورت په کاررانسي نوپه داسي حال کې پخپله دشریعت حکم دی چې خاونددې طلاق ورکړي ،ښځه دې فارغه کړي اودواړه دې دغې پرېشانۍ ته دپای ټکی کیږدي ،بعضی خلګ دخانداني رسم اورواج یاطبعی غیرت پربناءدطلاق ورکولوصورت نه سي موندلای ، که صورت حال هرڅنګه سنګین هم وي اودفریقینوژوندهرڅومره تریخ هم تیریږي ، داسوچ قطعاغلط اودجاهلیت فکردی کوم چې دشریعت له مزاج سره هیڅ اړخ نه لګوي ،لکه څرنګه چې په عاموحالاتوکې طلاق ورکول ناجائزاوګناه دي بلکل همدارنګه دضرورت پروخت طلاق نه ورکول هم ګناه ده ، کوم خلګ چې طلاق بلکل شجرممنوع بولي اوپه هیڅ صورت کې ورته تیارنه وي هغه دې فکروکړي چې اخیرالله تعالی رواکړی ولې دی ؟ ددې اجازه یې ولې ورکړې ؟ پخپله رسول الله صلی الله علیه وسلم اولویو،لویوصحابه کرامورضی الله عنهم دضرورت په وخت ولې طلاق ورکړی دی ؟ فقهاء کرامورحمهم الله چې چیرې دبې له ضرورت طلاق مفاسدبیان کړې هلته یې دضرورت پروخت دطلاق ورکولومحاسن هم لیکلې دي ، هغوئ په بعضی وختونوکې طلاق ورکول مستحب اوپه بعضو ځایونوکې خوبې واجب لیکلې دي ، لکه څرنګه چې علامه علاء الدین حصکفی رحمه الله لیکلې دي:

ښځه که چیرې شرې اوآزارې وي یادلمانځه پرېښوونکې وي نوهغې ته طلاق ورکول جائزنه بلکې مستحب دی که چیرې دهغې ددستورمطابق له ځانه سره ساتل ممکن نه وي نوطلاق ورکول واجب دي اوکه چیرې طلاق بدعی ( دسنت خلاف ) وي نوحرام دی ( ردالمحتار۳/ ۲۲۹ )

اودطلاق له ښېګنوڅخه یوه داده چي دده په ذریعه سره له ناخوښوشیانوځان ساتنه راځي (ردالمحتار ۳/ ۲۲۹)

امام ابن نجیم رحمه الله ویلي دي:

دطلاق مشروعیت ( رواکېدل ) دالله تعالی له لورې رحمت دی پاتي دي وي داچي په شرعی حیثیت سره خوهغه دالله تعالی په نزدابغض المباحات دی اوپه معراج الارایه کي دي چي داکثروعلماؤپه نزدطلاق ورکول په خپل اصل کي له مبغوض اومکروه والي سره ،سره مباح اوجائزدی ،( دجوازدلیل یې ) چي رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت حفصې رضی الله عنهاته طلاق ورکړی دی لیکن الله تعالی خپل محبوب صلی الله علیه وسلم ته حکم وکړچي هغې ته رجوع وکړه له دې وجې چي هغه ډیره روژه نیوونکې ،ډیره لمونځ ګذاره ده ، دهغې په اړه دبدچلندۍ هیڅ شائبه نسته ، ،نه دکبرسن عذر( لهذادطلاق جواز په دې دووصورتونوکي محدودنه دی ) درازاصحابه کرامورضی الله عنهم هم طلاق ورکړی دی لکه چي عمررضی الله عنه ام عاصم ته ،عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه تماضرته ، مغیره بن شعبه رضی الله عنه څلوروښځوته طلاق ورکړی دی اوحسن بن علی رضی الله عنهماپه کوفه کي په کثرت سره نکاحوي کړې اوپه کثرت سره یې طلاقونه ورکړې دي ، حتی چي علی کرم الله وجهه دمنبرپرسراعلان وکړچي زمادغه زوئ ډیرطلاق ورکوونکی دی لهذاله ده سره رشته مه کوئ لیکن خلکوویل موږله هغه سره رشته کوو ،که بیایې هم ورکوي ،بیایې هم ورکوي (البحرالرائق )

له دې واقعاتوڅخه مسئله دورځې په څیرروښانه سوه چي دضرورت اومجبورۍ په وخت طلاق ورکول یوممنوع امرنه بلکي دشریعت حکم دی ،که چیري بېله وجې خلک دطلاق ورکولودافراط ( زیاتی ) ښکارسي نودمعقولې وجې له شته والی سره..سره طلاق نه ورکول هم دتفریط ( کمي ) ښکاردی ، وخیر الاموراوسطها ! دطلاق په باب کي دافراط اوتفریط داختیارولوپرځای



یومسلمان ته فکرکول پکاردي چي په کومو،کوموځایونوکي دطلاق ممانعت دی اوپه کومو ،کوموکي دطلاق اجازه ده ؟لاندي ددې تفصیل کیږي:

**دطلاق اوتفریق شرعي اسباب**

(۱) که چیري خاوندعنین ( نامرد ) وي نوښځې ته اختیاردی چي دمسلمان قاضی په عدالت کي دهغه خلاف دعوی دائره کړي ،که چیري ښځه په دعوی کي فکرمنه وي نوقاضی به خاوندته یوکال دعلاج مهلت ورکوي ،که چیري په دې دوران کي یې دجماع قدرت پیداکړ نودښځې دعوی دې خارجه کړي کنې دښځې په دوهم واردعوی کولوسره به پرخاونددطلاق حکم کیږي ،که چیري هغه انکارکوي نوقاضی به ددواړوپه مینځ کي تفریق ( جلاوالی ) راولي ، دغه عدالتي تفریق بائن طلاق بلل کیږي له دې وروسته چي ښځه عده تیره کړي نوچیري چي غواړې نکاح کولای سي ، داتفصیل په هغه صورت کي ووچي خاونددعلاج قابل وي که چیري هغه دعلاج قابل نه وي ( مثلا مقطوع الذکر ) وي نوقاضی دي هغه ته هیڅ مهلت نه ورکوي فوراً دې دده اوښځې په مینځ کي جلاوالی راولي.

(۲) متعنت ( چي له قدرت سره ،سره ښځې ته نه نفقه ورکوي اونه طلاق ورکوي چي فارغه سي ) نوښځې ته پکاردي چي له ده څخه دخلاصی لپاره په یوطرزسره هغه پرخلع باندي راضي کړي ،که چیري هغه راضي کیږي نه اودښځې مصارف هم نه برداشتوي نه ښځه پخپله داسي کټه کولای سي چي په هغې کي ددې عزت خوندي وي نوپه داسي مجبوري کي دي دمسلمان قاضی په عدالت کي دعوی دائره کړي ،قاضی دي له هغې څخه تحقیق وکړي ، که چیري دښځې دعوی رشتیاثابته سي نوقاضی دي خاوندته ووایې چي یانفقه ورکړه یاطلاق ورکړه ، که چیري یې له دواړوخبروانکارکاوونوقاضی دي دښځې اوخاوندپه مینځ کي جلاوالی راولي ،اوداتفریق ( جلاوالی ) رجعی طلاق دی ،نوکه چیري ترعدې تیریدومخکې خاوندپرنفقه ورکولوباندي راضي سي

نوهغه ته درجوع کولواختیاردی ( مګراحتیاط په دې کې چې درجوع کولوپرځای تجدیددنکاح وکړي )

(۳) غائب غیرمفقودالخبر ( کوم چي ژوندی وي خونادرکه وي لیکن هغه نه ښځې ته راځي اونه خپل ځان ورښيي ، نه نفقه ورته راليږي په داسي صورت کي که چیري دښځې دمعاشي کفالت کولویوڅوک نه وي ،یادهغې په ګناه کي دښتلوقوي اندېښنه وي نودهغې په درخواست کولوسره دي قاضی خاوند عدالت ته راوغواړي اودحال له معلومولووروسته دي دښځې نفقې ورکولوته تیارکړي یادي دطلاق حکم ورکړي ، که چیري خاوندیوصورت هم قبول نه کړي یاعدالت ته نه راځي نوقاضی دې ددواړوپه مینځ کي تفریق وکړي.

(۴) معسر( څوک چي دمسکینۍ له وجې نفقه نسي ورکولای ،نه طلاق ورکوي ) که چیري ښځه مجبوره اوپرېشانه وي چي نه دعزت اوآبروساتنه کولای سي اونه پخپله ګټه کولای سي ، نه کوم دوهم څوک اسره لري نودخلاصۍ لپاره دي خاوندپرخلع باندي راضي کړي ، که چیري هغه راضي کیږي نه ،نوپه عدالت کي دي دهغه خلاف دعوی وکړي که دعوه صحیح ثابته سي نوقاضی دي خاوندته یوه میاشت مهلت ( وخت ) ورکړي ،که چیري هغه په دې دوران کي پرنفقه ورکولوباندي قادرسي نوښه دی کني ددواړوپه مینځ کي دي جلاوالی راولې ،کوم چي رجعي طلاق کیږي لهذاکه چیري دعدي په دوران کي هم خاوندپرنفقه ورکولوباندي قادرسي نوهغه ته درجوع کولواختیارسته.

(۵) مفقودیعنی داسي ورک سړی چي تروسه پوري یې له تلاش اوطلب سره ،سره ،کوم لوری په لاس نه وي راغلی دهغه دښځې که چیري صبرنه کیږي نودمسلمان حاکم په عدالت کي دي دعوه دائره کړي ،حاکم که چیري له هرډول تلاش اوپلټنې وروسته دهغه له پیداکېدو ناامیده سي نوښځې ته دي څلورکاله مهلت ورکړي ،که چیري په دغه موده کي هم دورک شخص هیڅ درک معلوم نه سي نودښځې په درخواست کولوسره دي مړوبولي دښځې په حق کي دي فیصله



وکړي چي هغه دي څلورمیاشتې اولس ورځې عده تیره کړي بل ځای دي نکاح وکړي اوکه چیري دښځې په ګناه داخته کیدوقوي اندېښنه وي نوله یوه کال صبراوانتظاروروسته دي په عدالت کي دعوی وکړي قاضی دي دحال له تحقیق کولووروسته ددواړوپه مینځ کي تفریق وکړي.

(۲) خاوندکه چیري لیونی وي اولیونتوب یې دداسي درجې وي چي ښځې ته دخپل ځان یاهغې ته دضرررسولوخطره وي نوهغه دې دمسلمان قاضی په عدالت کي دعوه دائره کړي ددعوې له ثبوت وروسته دي دغه لیونی ته یوکال دعلاج لپاره مهلت ورکړي ،که چیري په دې دوران کي ښه نسي نودښځې په درخواست کولوسره دي ددوئ دواړوپه مینځ کي تفریق راولي ، اوکه چیري لیونی معسراومفلس هم وي نوقاضي دي دښځې تردرخواست پیشېدو وروسته هغې ته یوه میاشت مهلت ورکړي که په دې دوران کي دخاوندله لوري دنفقې انتظام وسنې نوصحیح ده کنې قاضی دي تفریق راولي.

(۷) که خاونددجذام ( کوي ) یابرص ( پیس ) یادیوداسي موذی مرض ښکارسوی وي دکوم په سبب چي دښځې لپاره له هغه سره اوسېدنه سخته وي نوښځه دعدالت وطرفته رجوع کولای سي ، قاضی دي له تحقیق اوپلټنې وروسته مریض ته یوکال مهلت ورکړي ،که چیري په دې موده کي هم جوړنسي نودښځې په غوښتنه سره دي قاضی ددواړوپه مینځ کي تفریق (جلاوالی ) راولي لیکن داحکم په هغه صورت کي دی چي خاوندله نکاح وروسته په دې مرض اخته سوی وي ،یامرض ترنکاح مخکې وي خوښځه په خبره نه وي ،که داسي نه وي نوبیاښځې ته ددعوې کولوحق نسته.

(۸) خاوندکه چیري ظالم اوجابروي ښځه ډیره وهي نوهم ښځه دهغه خلاف درخواست کولای سي دحال له پلټنې وروسته دقاضی فرض جوړیږي چي ددې ظلم مخنیوی وکړي ، هغه که ددواړوپه مینځ کي په صلح سره وي ( دواړه راضي

نامه ولیکي ) یاله خاوندڅخه داسي ضمانت واخلي چي په راتلوونکې کې به داسي ظلم نه کوي یابه ددواړوپه مینځ کې تفریق کوي.

(۹) دخاونداوښځې په مینځ کې یوله بله نفرت اوکراهت هم دتفریق سبب جوړېدای ښي ، لکه څرنګه چي په تیروسویوصفحوکې دامسئله تیره سوې ده چي که چیري دښځې اوخاوندپه مینځ کې دجګړواندېښنه وي نوددواړوله کورنیوڅخه دي یو،یودرېمګړی وټاکل سي ،دواړه درېمګړې دي سره یوځای سي دخاونداوښځې په مینځ کې دي جګړه ختم کړي اودهغوئ په مینځ کې دي پوره دصلحې اوروغې کوشش وکړي که چیري هغه په دې کوشش کې ناکامه سي ،اودروغوالی کوم صورت په نظرورنسي ،دخاونداوښځې په مینځ کې دالله تعالی حدودنه رعایت کیږي ،دارازخاوندپرخلع باندي هم نه راځي نوپه داسي صورت کې دي حاکم ددواړوپه مینځ کې تفریق وکړي.

(۱۰) داچي خاوندترنکاح مخکې دانجلۍ والوپه مخکې خپل دیني ،خانداني اومالي حالت په صحیح توګه ښکاره نه کړي ، ( مالي حالت داسي وښیې چي دمهرپرادا ینه اودنفقې پرورکړه قادردی بیاپه حقیقت کې قادرنه وي ) په دوکه سره نکاح وکړي نودحال په معلومېدوباندي انجلۍ ته اختیاردی چي عدالت ته رجوع وکړي ،نکاح فسخه کړي ، له دې پرته هم دنکاح اوتفریق په مینځ کې دښځې اوخاوندمتعددصورتونه په شریعت کې موجوددي ،مثلا دنابالغ هلک یاانجلۍ نکاح له پلاراونیکه پرته کوم بل ولي (لکه ورور، اکاوغیره ) په کفو( هم مثل ) کې کړې وي بیاهم له بلوغ وروسته هغوئ ته اختیاردی چي دانکاح برقرارساتي یادمسلمان حاکم په ذریعه یې فسخ کوي ، که چیري دبالغ هلک یاانجلۍ په مخکې داصورت راسي بیاهم نکاح صحیح ده لیکن له خبرېدو وروسته هغوئ ته دنکاح باقي ساتلواوفسخ کولواختیارسته.

دوهم صورت داچي دبالغې انجلۍ ولي دهغې له اجازې پرته په کفوکې نکاح کړې وي لیکن په دومره مهرباندي کوم چي ترخانداني مهرډېرکم وي نودانجلۍ



ولي عصبه ( پلار، نیکه ، ورور،وغیره ) ته له هلک څخه دمطالبې کولوحق سته چي انجلۍ ته پوره مهرمثل (یعني دومره مهرچي ددې هم مثل انجونوته ورکول سوی وي ) ورکړي ،یاپه بل عبارت هغه دعدالت په ذریعه دانکاح فسخ کولای سي.

اوپه بعضي صورتونوکې پخپله دخاونداوښځې په مینځ کې حرمت اوفرقت راتلای سي ، ددې لپاره دقاضي دقضاء یادیوعدالت دفیصلې ضرورت نه وي ، مثلا په خاونداوښځه کې نعوذبالله یومرتدسي نونکاح سمدستي له بین ځي اوایلاء ( لږ،ترلږه ښځې ته دڅلورمیاشتې نژدې نه ورتلودقسم کولو ) په صورت کې که چیري دایلاء دمودې په دننه کې خاوندرجوع ونکړي نودمودې له تیریدووروسته پخپله پرښځې باندي بائن طلاق راځي ،دارازپه نکاح فاسده کې دښځې اوخاوندپه مینځ کې چي هریوهم متارکت وکړي ( دخپل شریک په باره کې په ژبه ووایې چي ماهغه پرېښودو ) نوبیاهم نکاح فسخ کیږي.

اوحرمت مصاهرت ( له کومې ښځې سره زناکول یاهغه په شهوت سره مسه کول ) له ثابتېدو وروسته خاوندمتارکت وکړي نوبیاهم هماحکم دی بلکې په دې دواړوصورتونوکې که چیري ښځه ،خاوندمتارکت نه کوي نوپرحاکم لازم دي چي په زورسره ددواړوپه مینځ کې جلاوالی راولي.

ددې مسئلولپاره : الحیلة الناجزة ( دحکیم الامت تهانوی قدس سره ) ،احسن الفتاوی جلد: ۵( دمفتي رشیداحمدصاحب قدس سره ) داسلام عائلي قوانین ( دمولانامجاهدالاسلام قاسمی قدس سره ) وګورئ.

خلاصه داچي دطلاق مثبت اړخ وي یامنفي په هغه کې دشرعي حدودورعایت ضروري دی څرنګه چي دنکاح قرابت یودائمي قرابت دی له دې وجې خاوند اوښځې ته ښکاردي چي دټول عمردسمښت کوشش وکړي ،که چیري په یوسبب ددوئ په مینځ کې پېچلتیاپیداسي نودهغې ترغتېدومخکې دي دهغې دختمېدوکوشش وکړل سي چي دطلاق نوبت رانسي لیکن خدای دي نه کوي که

چيري معاملہ ډیره درنه سي چي له طلاق پرته هيڅ لارنه وي نودخاوندلپاره جائزنه دي چي ښځه كومې وجې ښځه له ځان سره معلق (ځوړنده) وساتي ،دهغې ژوند برباد كړي ،بلكي ضروري ده چي طلاق وركړي ،هغه فارغه كړي ، افضله طريقه داده چي يورجعى طلاق وركړي ، ددې لپاره چي دصلحې اوروغې په صورت كي رجوع وكولاى سي ، اوكه چيري په ناپوهى كي درې طلاقونه وركړي ،كښيني نواوس له تحليل شرعى پرته درجوع هيڅ صورت نسته لهذادحيلواودلائلو پرځاى دشريعت حكم دزړه له كومې ومنې ،له ښځي څخه جلاوالى غوره كړي ،پرخپله غلطي باندي توبه واستغفاروكړي ( والله الهادى الى سبيل الرشاد(۱۰-۵-۴۲ه )

**په يوه لفظ سره وركول سوي درې طلاقونه هم درې طلاقونه دي ،دي دسعودى عرب دجيدوعلماؤدمنتخبې تحقيقاتي كمېټې متفقه فيصله**



مجلة البحوث الإسلامية

الأمانة العامة لهيئة كبار العلماء

رئيس التحرير

محمد بن سعد الشويعر

مجلة فصلية تعنى بالبحوث الإسلامية

تصدر كل أربعة أشهر مؤقتا

حكم

الطلاق الثلاث

بلفظ واحد

القرار

دمجلس هيئت كبارو علماؤ په مخكې د( طلقات ثلاث بلفظ واحد ) مسئله پيش سوه ددې مسئلې په اړه په ربيع الثانى سنه (۱۳۹۳هج ) كي دمجلس يواجلاس (ناسته ) منعقده سوه په كومه كي چي په يوه مجلس كي په يوه لفظ سره

ددروطلاقونودرې واقع کيدو ياصرف يوه واقع کيدودلائل پيښېدل بيادهغه تجزيه اومناقشه کيده.
مسلسل ترشپږمياشتو ( ۱۹رمضان المبارک سنه ۱۳۹۳ء هج ) پورې دامسئله تربحث لاندې وه په انتهايي محنت اوخولوتويولوسره ددې مسئله په اړه د قرآن اوحديث له نصوصو پرته دتفسيراوحديث داووه خلوېښتوکتابونوله ښې کتنې اوبيا حاصل بحث کولووروسته دکمېټۍ اکثريت په واضح الفاظوسره دافيصله وکړه چي په يوه لفظ ورکول سوې درې طلاقونه هم درې طلاقه دي که څه هم ددرونيت ورسره نه وي اودرجوع اونکاح هيڅ صورت پکي باقي نه پاتي کيږي .الاداچي هغه ښځه دحلا لې په توګه له کوم بل سړی سره نکاح وکړي اوهغه دي ته طلاق ورکړي بيانوهغه داول خاوندلپاره حلاليږي ، اوپه داسي طريقه طلاق ورکول که څه هم حرام اوناجائزدی خودرې سره طلاقونه واقع کيږي دغه قانون دحضرت عمرفاروق رضی الله عنه په مبارک دورکي دصحابه کرامورضی الله عنهم دمنعقده اجماع په رڼاکي دامت اسلاميه اهل سنت متفقه مسلک اوموقف دی ، ددې بحث دکارروايې مکمل متن پر۱۳۶صفحوباندي مشتمل دی کوم چي دکميټۍ لاندي ښاخ د( الجنة الدائمة للبحوث العلمية والافتاء ) دتفصيلي رپورټ په شکل کي مرتب کړدکميټۍ دمرکزي بورډ په مخ کي يې پيش کړ، ددې تفصيلي رپورټ اوکاروواېي په اخيرکي دلاندي ښاخ ( الجنة ) درئيس ابراهيم بن محمدآل الشيخ پرته دنائب الرئيس عفيفی دارازدنورو دووارکانوعبدالله بن سليمان بن منيع اوعبدالله بن عبدالرحمان بن غديان دستخط هم ثبت دی.
له دې وروسته په ۱۲ذی قعده سنه : ( ۱۳۹۳هج ) دکميټۍ مرکزی بورډددې تفصيلي رپورټ په رڼاکي يوقراردادپاس کړدکوم دمتن پښتوترجمه چي دغه لاندي ده د( طلقات ثلاث بلفظ واحد ) پرموضوع هغه مخکنی بحث کوم چي دهيئت کبارالعلماء دمنتخب نومړې کمېټۍ پيش کړی وو ،اوکوم چي ( الجنة



الدائمة للبحوث العلمية والافتاء ) مدون اومرتب کړی وو موږ په دي خبرسوپردې مسئله باندي له کامل بحث اوتحقيق اودخيالاتوله تبادلې اود جمله اقوالواومسالکوله چاڼ کولواوله مناقشې اوتجزيې وروسته دکميټۍ اکثره ارکان دې نتېجې ته ورسيدل چي په لفظ واحد سره درې طلاقونه درې سره واقع کيږي اوهمدامختاراوغوره قول دی ۱۲/ ۱۱/ ۱۳۹۳هج ) دغه دقرارداد رپورټ پرنه ( ۹ ) صفحې باندي حاوی دی.
دغه پوره بحث اوکارروايې سره له قرارداده دسعوديه حکومت پخپله رساله ( مجلة البحوث الاسلاميه ، ۱۳۹۷هج ) کي په الرياض المملکة العربيه السعوديه کي شائع کړ، دامجله اوس دشيخ عبدالعزيزبن بازرحمه الله په نګراني کي شائع کيږي.
جلالة الملک خادم حرمين حفظه الله چي کوم توسيع حرمين ، تزئين مدينه ، طباعت قرآنکريم ،په عالمي ژبوکي دتفاسيرواشاعت داسي شانداره کارنامي کړي دي چي هغه داهل سنت والجماعت دموقف مطابق (طلقات ثلاث بلفظ واحد ) ددابسي معرکة الآراء اختلافي مسئلوتجديداواحياء کړې اومسلمانان يې له حراموساتلې داپرامت اسلاميه باندي دهغه عظيم احسان دی ( فجزاهم الله خيرالجزاء ).
کوم چاچي ددې مسئلې اختلاف کړی ،په يوه واردروطلاقونوسره پريوه طلاق منلويې اصرارکړی پرهغوحضراتوباندي دسعوديه عربيه دغه فيصله حجت قاطعه دی.
دحق دتلاش کولولپاره دترددهيڅ ځای نه پاتيږي ، که څه هم دسعودی عرب دکبارو علماؤ په دې تحقيقاتي کمېټۍ کي يوهم حنفی عالم موجودنه وو خوشايدبعضی خلګوته به داغلط فهمي پيښيږي چي په يوه واردرې طلاقونه درې منل يواځي داحنافوعلماؤمسلک دی مګرحقيقت ددې پرخلاف دی دادخلوروسره مذهبونودائمه اواصحابوقطعی اومتفقه اومسلمه ده.

## دخيرالفتاوى له پنځم جلدڅخه خلاصه

كتاب الطلاق ( مولاناخيرمحمد جالندهرى رحمه الله )

نحمده ونصلى على رسوله الكريم

امابعد !داسلام دين دالله تعالى كامل دين دى اواخيري هم دى ، اويواځي اويواځي يودين دى كوم چي محفوظ دى ، حقيقت همدادى چي داحكام شرعيه كلى علم رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ورکول سوى دى دهغه دكلياتو تعبيراوتشريح اوتفصيل ائمه مجتهدينوکړى دى اوددين كامليت يې دنيمي ورځي دلمرپه څيرروښانه كړ، داسلام كوم كامل تعبيراوتشريح چي په خيرالقرون كي سوې له هغې ورځي ترننه پورې په عام شهرت اولازوال دوام سره مشرف سوى ،دهغه نوم حنفي دى ،مشهوره اومسلمه مقوله ده ( وبضدهاتتبين الاشياء ) څراغ په تاريكه كي رڼاكوي نوردينونه وګورئ تاسوته به يوجزهم دطهارت ، عباداتو، معاملاتو، سياسياتو،معيشت ،معاشرت پرجزئياتو مشتمل په لاس درنسي ، هرطرف ته ظلمات ( تاريكى ) بعضهافوق بض نه ختمېدونكي تاريكي ده ،ليكن په اسلام كي ديوه ،يوه كتاب په سلهاوو صفحې پيداكيږي ، په كوم كي چي په زرهاووجزئيات وي ، تاسوهرڅومره د پېچلي مسئلي صورت جوړكړئ ،پېش يې كړئ مفتى صاحبان به دشريعت په اصولوسره تاسوته حكم دركوي.

داستاسوپه لاس كي دخيرالفتاوى پنځم جلددى ، داله عباداتوسره نه دى متعلق ، له معاملاتوسره متعلق دى ،اوټول معاملات هم نه بلكي صرف دطلاق پرمسائلوباندي مشتمل دى ،كوم چي دټولني يواهمه مسئله دى ، تاسودټولي دنيالائبريانې ، عيسايي ،يهودى ، هندو،بدهسټ ،جين كوم چي ددين دعويداران دي وګورئ ددغه جلدسلمه حصه هم په هيڅ مذهب كي به دطلاق پرجزئياتومشتمله په لاس درنسي.



مجتهدين اومفتيان كرام حضرات دپوره دين محافظ اوپيره داران دي ،او تفصيل وتشريح يې هم كړې ده ،خيرالمدارس جامعه يوبين الاقوامى يونورستي ده ، ددې جامعې باني عارف كامل جامع بين الشريعة والطريقة استاذالعلماء حضرت اقدس مولاناخيرمحمد صاحب جالندرى قدس سره وو.

ع خالق كائنات رنگارنگ مخلوق پيدافرمائى

اى ذوق اس جهان كوهى زيب اختلاف سى

په هغوئ كي يې انسان اشرف المخلوقات جوړكړى اوپه هغه كي دوه قسمه شهوت اېښې دى ،يوشهوت بطن ،دوهم شهوت شرمګاه ، شهوت بطن داصل دبقاء لپاره دى ، ددې لپاره چي انسان خوشحال واوسي ، هغه خوري ،څيښى ، ددې مشينرۍ دچلېدولپاره يې دوينوپټرول پيداكړل اودشرمګاه شهوت دنسل دبقاء لپاره دى.

### تورات اوطلاق

په تورات كي دي: كه چيري يونارينه له ښځي سره كوزده وكړي اوپه وروسته كي په دوئ كي داسي بيهوده خبره راسي دكومې په وجه سره چي دښځې وطرفته التفات نه كيږي نوخاونددي دهغې طلاقنامه وليكي هغې ته دې وسپاري اوهغه دې له خپله كوره وباسي ،اوكله چي يې له خپله كوره وايستله نوهغه بل خاوندكولاى سي ، بياكه چيري هغه بل خاوندهم ناخوښه وي ورسره اوددې طلاقنامه وليكي ورته وي سپاري ،له خپل كورڅخه يې وشړي ياهغه بل خاوندكوم چي له دې سره نكاح كړې مړسي نودهغې اول خاوندكوم چي داله كوره شړلې وه ، ددې ښځې له ناپاكه كېدووروسته بياله هغې سره نكاح نسي كولاى ، ،ځكه داسي كاردخداى په نزدمكروه دى ( استثناء ۲۴: ۴۱ ) وګورئ دلته نه دطلاق تعدادمعين دى اونه دطلاق كومه عده ستة په كومه كي چي دواړوته دفكرموقع په لاس ورسي ، ياوروڼه اودوستان دوئ يوه كړي.

### انجيل اوطلاق

اوفرانسویانوته ورسه دهغوئ دازمویني لپاره له هغوئ څخه پوښتنه وکړئ چي داروا ده چي خاوند خپله ښځه پرېږدي ؟ هغوئ به په جواب کي درته ووايي چي موسی علیه السلام تاسوته حکم درکړی ؟ هغوئ وايي موسی علیه السلام ته اجازه ورکول سوې چي طلاقنامه وليکي ،پرېږدي ، مګريسوع هغوئ ته وايي چي داستاسودسخت دلی په سبب تاسوته داحکم ليکل سوی وو، ليکن دخلقت له شروع څخه چي هغه ښځه اونارينه پيداکړل ، ددې لپاره يې نارينه له خپل پلارڅخه جلاکړچي له خپلې ښځې سره واوسي ، اوهغه اودهغه ښځه دواړه يوجسم دي ،بلکي هغه دوه نه بلکي يوجسم دي ، له دې وجې چي خدای جوړه دی هغه انسان جلانکړ، اوپه کورکي چي شاګردان له دوئ څخه په دې باب کي بياپوښتنه کوي ،نودوئ ورته وايي چي کوم څوک خپله ښځه پرېږدي اوهغه بل ځای نکاح وکړي نودا ښځه دمخکي خاوندپرخلاف زناکوي ،اوکه چيري ښځه خپل خاوندپرېږدي اوبل ځای نکاح وکړي نوهغه زناکوي ( مرقس ۱۰-۱۲۲ ) جناب يسوع دطلاق جوازختم کړ.

## اسلام اوطلاق

په يهوديانوکي خوپرطلاق هيڅ پابندي نسته اوپه عيسايانوکي بياطلاق جائزنه دی ، اسلام طلاق ډېرناخوښه کړی دی ، دضرورت په وخت کي يې حلال کړی دی مګرداپابندي يې لګولې چي نارينه ته تردروطلاقونوورکولوپورې حق حاصل دی ، کله چي هغه درې پوره کړي نواوس هغه ته درجوع حق څه چي له دې ښځې سره دنکاح حق هم نلري.

## دنبي علیه السلام په زمانه کي طلاق

دنبی صلی الله علیه وسلم په زمانه کي ابودرداء رضی الله عنه ، رفاعه قرظی رضی الله عنه ، دعباده ،رضی الله عنه پلارپه يوه واردرې طلاقه ورکړې ووئونبی علیه السلام داسلامي حکم مطابق داورته وويل چي اوس ته له هغې



سره نکاح نسي کولای ، ترڅوپورې چي هغه له بل خاوندسره نکاح ونکړي ، يوصحيح ،صريح غيرمعارض حديث به هم څوک پيش نکړي چي مدخوله ښځي ته طلاق ورکول سوی وي ،اوهغې ته درې طلاقه ورکول سوې وي اوبيانبی علیه السلام هغه ته دښځي له ځان سره دساتلواجازه ورکړې وي.

## دصديقي رضي الله عنه دور

درسول صلی الله علیه وسلم درحمت له دوروروسته دصديق رضی الله عنه دخلافت په زمانه کي هم يوه داسي واقعه پېښه سوې نه ده چي يوسړی خپلې ښځې ته ويلې چي تاته درې طلاقونه اوابوبکرصديق رضی الله عنه دي هغه ته ويلې وي چي دايورجعی طلاق دی ته ښځه له ځان سره بيرته وساته.

## دعمرفاروق رضي الله عنه دور

عمرفاروق رضی الله عنه دخپل خلافت دزمانې له دورڅخه دربيم کال دمسائل شرعيه په باره کي هم اعلانونه کول ، هغه رضی الله عنه دمتعې دحرمت دحکم تاکيدی اعلان وکړ، اوداچي کومې ښځې ته وويل سي چي تاته درې طلاقونه هغه به درې شمېرل کيږي ،اودشل رکعاته تراويح په جماعت سره يې خلګوته امروکړاوهيڅ يوه چاهم ددې خلاف اوازنه دی پورته کړی ، دکتاب اوسنت پردې حکومونودټولوصحابه کرامورضی الله عنهم اجماع ده.

## دعثمان رضي الله عنه دور

عثمان رضی الله عنه يادده دخلافت په زمانه کي هيڅ يوه مفتی دافتوی نه ده ورکړې چي دايورجعي طلاق دی ،ته رجوع وکړه ، ددې ويلومثال نه پيداکيږي.

## دعلي رضي الله عنه دور

دعلی رضی الله عنه په دورکي به هم ديوچانوم وانخستل سي چي هغه خپلې ښځې ته درې طلاقونه ياسل طلاقونه وغيره ويلې وي اوعلی کرمه الله وجهه

يادهغه دخلافت يومفتي دافتوى وركړې وي چي دايورجعى طلاق دى ته بيرته ښځه له ځان سره وساته.

**سيدناامام حسن رضي الله عنه**

هغه خپله خپلې ښځې ته په غصه كي ويلې ووچي تاته درې طلاقه ،بياهغه په دې پرېشانه ومګرله هيڅاڅخه يې دافتوى ونه غوښته ،نه كوم مفتي ووچي دافتوى يې وركړې واى ، چي كله تاسودواړه يوځاى كېدل غواړئ نوبيرته نكاح وكړئ.

**دتابعينودور**

روافضويوشرارت كړى چي يوه بوډاته يې وويل چي ته داحديث خلګوته ورواوروه چي علي كرم الله وجهه ته رسول صلى الله عليه وسلم وويل چي كه چيري يوسړى خپلې ښځې ته په يوه واردرې طلاقونه وركړي نوهغه يوشمېرل كيږي ، هغه بوډاپه پټه ،پټه ترشلوكالوپورې دابيان كاوو، حضرت امام اعمش رضى الله عنه ته ددې خبرورسيدونوفوراهغه بوډاته ورغى نوپه هغه يې دخپلې غلط بيانى اقراروكړ، دارازپه اوله صدى كي دروافضوشرارت ونه چليد، اويوحرام يې حلال نكړ، دتابعينودورتر ١٧٠هج پورې په دې دوركي له ١٤٥هج څخه تر١٥٠هج پورې مذهب حنفى مدون سو، كوم چي دكتاب اوسنت اولنى جامع اومكمل تعبيراوتشريح وو،اودامذهب په دې دوركي دتواترترحده ورسيد، اوترننه پورې متواتردى ، په دې كي هم په يوه مجلس كي درې طلاقونه درې وبلل سو، اويواوازهم د كوم صحابى ياتابعى له لورې ددې خلاف پورته نسو، امام محمدرحمه الله په كتاب الآثاركي واشكاف الفاظ كي تحريرفرمايلي دى(لا اختلاف فيه ) په دې مسئله كي دهيڅاهيڅ اختلاف نسته

**دتبع تابعينودور**



دادورتر٢٢٠هج پورې دى ، په دې دوركي دامام مالك ،امام شافعى اوامام احمدرحمهم الله مذاهب مدون سوپه درې سره مذهبونوكي هم په اتفاق سره دامسئله ليكل كېده چي په يوه مجلس كي وركول سوې درې طلاقونه هم درې شميرل كيږي.

**درېيمه صدى**

اوس دڅلورسره مذهبونوچلندعام وو، كه چيري يوصاحب همت وكړي په تاريخ كي كومه مستنده حواله ددېوداسي انسان پيداكړي نوموړېږيوه حواله باندي زرروپۍ انعام وركوو، په دې دوركي هم دڅلوروسره مذهبونوچلنداووچي داسي ښځې ته درجوع كولوهيڅ حق نسته ، په دې صدۍ كي مسندامام احمد ، دارمى ، بخارى ،مسلم ، ابن ماجه ، ابوداؤد،ترمذى ،نسائى ، داحاديثو كتابونه مدون سوي دي ، په دوئ كي يوه محدث هم دمذاهب اربعه په خلاف كومه فتوى نه ده وركړې.

**څلورمه صدى**

داهل سنت په څلورومذهبونوكي چي دكوم مذهب تقليدكول سوى وو، كوم چي په هغه علاقه كي درسًا وعملامتواترو، هغه كه فقه وي ياقاضي محدث وي يامفسر، ددې صدۍ تقريبا د٢٠٢جليل القدرمحدثين تذكره ذهبى كړې ده ، په دوئ كي دهيڅ يوسنى محدث په باره كي دانه ده ثابته چي هغه غيرمقلدوو، اوپه طلاق ثلاثه كي دې دمذاهب اربعه په خلاف فتوى وركړې وي.

**پنځمه صدى**

ددې صدۍ ممتاز( وتلي ) علماء ټول په مذاهب اربعه كي ديومذهب مقلدوو، امام بيهقى په السنن الكبرى جلداووم كي ددروطلاقونوپر مسئله باندي په پوره پيمانه بحث كړى ،ليكن دڅلورومذهبونوداجماعى مسئلې طلاق ثلاثه خلاف يوه فقره هم دهيڅاپرژبه اوقلم نه ده راغلې.

**شپږمه صدى**

په دې صدۍ کې هم دتمام عالم اسلام اهل سنت والجماعت ،فقهاء اومحدثين په څلورومذهبونوکي ديومذهب نه يومذهب مقلدين وو.

**اوومه صدۍ**

دادورهم داسلامي ترقۍ اوعروج دوروو، دعلم اوعمل اواخلاص دوروو ،دفقهاؤکرفت مزبوط وو، دطريقت امام قطب الاقطاب خواجه معين الدين چشتي اجميری رحمه الله.

**دسعودی دعلماء کراموډسپريم کونسل فيصله**

دسعودی حکومت دخپل يوشاهي فرمان په ذريعه سره دحرمين شريفين اودملک پرنورونامداروعلماؤمشتمل يوتحقيقاتي مجلس قائم کړی دی ، دکوموفيصله چي په ټولوملکي عدالتونوکي نافذيږي ، بلکي پخپله باچا( سلمه الله ) هم ددې پابندی ، په دې مجلس کي دطلاق ثلاثه مسئله پيش سوه ، مجلس ددې مسئله په اړه د قرآن اوحديث له نصوصو پرته دتفسيراوحديث داووه څلويښتوکتابونوله ښې کتنې اوښه حاصل بحث کولووروسته دکمېټۍ اکثريت په واضح الفاظوسره دافيصله وکړه چي په يوه لفظ ورکول سوې درې طلاقونه هم درې طلاقه دي ، بحث په ربيع الثاني (۱۳۹۳هج کي سوی وو، په کوم کي چي دافيصله وسوه ، په دې مجلس کي دغه لوئ علماء موجودوو، دکومونومونه چي په لاندي ډول دي : (۱) الشيخ عبدالعزيزباز، ( ۲) الشيخ عبدالله بن حميد ،(۳) الشيخ محمدالامين الشنقيطی ،(۴) الشيخ سليمان بن عبيد ،( ۵) الشيخ عبدالله خياط ،(۶) الشيخ محمدالحركان ،(۷) الشيخ ابراهيم بن محمدآل الشيخ ،(۸) الشيخ عبدالرزاق عفيفی ،(۹) الشيخ عبدالعزيزبن صالح ، (۱۰) الشيخ صالح بن غصون ،( ۱۱) الشيخ محمدبن جبير،(۱۲) الشيخ عبدالمجيدحسن ،(۱۳) الشيخ راشدبن حنين ، ( ۱۴) الشيخ صالح بن الحيدان ،(۱۵) الشيخ محضارعقيل ،(۱۶)الشيخ عبدالله بن غديان ،(۱۷) الشيخ عبدالله بن سليمان بن منيع اوداسي نورعلماء شريک وو.



دغوحضراتودقرآن اوحديث اواجماع په رڼاکي په خپله اکثريتي فيصله کي همدااقرارکړی چي په يوه مجلس کي درې طلاقونه درې سره واقع کيږي.

دقرآن کريم درې آيتونه ، تقريبًا دوشپيته مرفوع اوموقوف حديثونه اود جمهوروسلف صالحينوپه اتفاق له ديرشو تصريحاتوڅخه داثابتيږي چي مدخول بهاته په يوه مجلس کي درې طلاقونه درې سره واقع کيږي ،په سلف صالحينوکي يوهم چي قابل داقتداوي داسي نه دی سوی چي ددې خلاف دي قول کړی وي ،څرنګه چي ابن رجب جنبلی رحمه الله ليکي:

الم انه لم يثبت عن احد من الصحابة ولا من التابعين ولا من ائمة السلف المعتد بقولهم في الفتاوى في الحلال والحرام شئ صريح في ان الطلاق الثلاث بعد الدخول يحسب واحدة اذا سيق بلفظ واحد ذكره ابن عبدالهادی عن ابن رجب رحمه الله (رساله : الطلاق الثلاث ص: ۳۲۲ )

په تيروسويوصفحوکي چي کوم دلائل اواحاديث ذکرکړل سودهغوئ په رڼاکي موږپرهغوئ باندي دهغو حضراتومختصرفهرست ذکرکول غواړو، کوم چي پ يوه مجلس کي ددروطلاقونوقائل دي.

له حق جل شانه اونبی کريم صلی الله عليه وسلم وروسته په صحابووکي عمربن الخطاب ، عثمان بن عفان ،علی ، عبدالله بن مسعود، عبدالله بن عباس عبدالله بن عمر، عبدالله بن عمرو،بن العاص ، ابوهريره ، ام المؤمنين عائشه ام المؤمنين ام سلمه ، مغيره بن شعبه ، عمران بن حصين ، انس ،زيدبن ثابت ،حسن بن علی ، ابوقتاده ، عبدالله بن مغفل ، رضی الله عنهم بياپه تابعينوکي قاضی شريح ،ابراهيم نخعی ، مکحول ، قتاده ، امام شعبی ، امام زهری ، حسن بصری ،سعيدبن جبير،سعيدبن المسيب ،حميدبن عبدالرحمن ،مصعب بن سعيد ، ابومالک ،عبدالله بن شداد ،عطاء بن ابی رباح ، امام جعفرصادق ،عمربن عبدالعزيز، امام محمدبن سيرين ، مروان بن الحکم ،سليمان بن اعمش کوفی ،مسروق ،امام قاضی ابويوسف ،امام ابوحنيفه ، امام محمد ،

په دې صدۍ کې هم دتمام عالم اسلام اهل سنت والجماعت ،فقهاء اومحدثين په څلورومذهبونوکې ديومذهب نه يومذهب مقلدين وو.

## اوومه صدۍ

دادورهم داسلامي ترقۍ اوعروج دوروو، دعلم اوعمل اواخلاص دوروو ،دفقهاؤكرفت مزبوط وو، دطريقت امام قطب الاقطاب خواجه معين الدين چشتي اجميري رحمه الله.

## دسعودی دعلماء کراموسپريم کونسل فيصله

دسعودي حکومت دخپل يوشاهي فرمان په ذريعه سره دحرمين شريفين اودملک پرنورونامداروعلماؤمشتمل يوتحقيقاتي مجلس قائم کړی دی ، دکوموفيصله چې په ټولوملکي عدالتونوکي نافذيږي ، بلکي پخپله باچا( سلمه الله ) هم ددې پابندی ، په دې مجلس کې دطلاق ثلاثه مسئله پيش سوه ، مجلس ددې مسئله په اړه د قرآن اوحديث له نصوصو پرته دتفسيراوحديث داووه څلوېښتوکتابونوله ښې کتنې اوښه حاصل بحث کولووروسته دکمېټۍ اکثريت په واضح الفاظوسره دافيصله وکړه چې په يوه لفظ ورکول سوې درې طلاقونه هم درې طلاقه دي ، بحث په ربيع الثانی (١٣٩٣هج کې سوی وو، په کوم کې چې دافيصله وسوه ، په دې مجلس کې دغه لوئ علماء موجودوو، دکومونومونه چې په لاندي ډول دي : (١) الشيخ عبدالعزيزباز، ( ٢) الشيخ عبدالله بن حميد ،(٣) الشيخ محمدالامين الشنقيطی ،(۴) الشيخ سليمان بن عبيد ،( ۵) الشيخ عبدالله خياط ،(٦) الشيخ محمدالحركان ،(٧) الشيخ ابراهيم بن محمدآل الشيخ ،(٨) الشيخ عبدالرزاق عفيفی ،(٩) الشيخ عبدالعزيزبن صالح ، (١٠) الشيخ صالح بن غصون ،( ١١) الشيخ محمدبن جبير ،(١٢) الشيخ عبدالمجيدحسن ،(١٣) الشيخ راشدبن حنين ، ( ١۴) الشيخ صالح بن الحيدان ،(١۵) الشيخ محضارعقيل ،(١٦)الشيخ عبدالله بن غديان ،(١٧) الشيخ عبدالله بن سليمان بن منيع اوداسي نورعلماء شريک وو.



دغوحضراتودقرآن اوحديث اواجماع په رڼاکي په خپله اکثريتي فيصله کي همداقرارکړی چې په يوه مجلس کي درې طلاقونه درې سره واقع کيږي.

دقرآن کريم درې آيتونه ، تقريبًا دوشپته مرفوع اوموقوف حديثونه اود جمهوروسلف صالحينوپه اتفاق له ديرشو تصريحاتوڅخه داثابتيږي چې مدخول بهاته په يوه مجلس کي درې طلاقونه درې سره واقع کيږي ،په سلف صالحينوکي يوهم چې قابل داقتداوي داسي نه دی سوی چې ددې خلاف دي قول کړی وي ،څرنګه چې ابن رجب جنبلی رحمه الله ليکي:

الم انه لم يثبت عن احدمن الصحابة ولامن التابعين ولامن ائمة السلف المعتمدبقولهم فی الفتاوی فی الحلا ل والحرام شئ صريح فی ان الطلاق الثلاث بعدالدخول يحسب واحدة اذاسبق بلفظ واحد ذكره ابن عبدالهادی عن ابن رجب رحمه الله( رساله : الطلاق الثلاث ص: ٣٦٦ )

په تيروسويوصفحوکي چي کوم دلائل اواحاديث ذکرکړل سودهغوئ په رڼاکي مورپرهغوئ باندي دهغو حضراتومختصرفهرست ذکرکول غواړو، کوم چې په يوه مجلس کي ددرو طلاقونوقائل دي.

له حق جل شانه اونبی کريم صلی الله عليه وسلم وروسته په صحابوکي عمربن الخطاب ، عثمان بن عفان ،علی ، عبدالله بن مسعود، عبدالله بن عباس ، عبدالله بن عمر، عبدالله بن عمرو ،بن العاص ، ابوهريره ، ام المؤمنين عائشه ، ام المؤمنين ام سلمه ، مغيره بن شعبه ، عمران بن حصين ، انس ،زيدبن ثابت ،حسن بن علی ، ابوقتاده ، عبدالله بن مغفل ، رضی الله عنهم بياپه تابعينوکي قاضی شريح ،ابراهيم نخعی ، مکحول ، قتاده ، امام شعبی ، امام زهری ، حسن بصری ،سعيدبن جبير،سعيدبن المسيب ،حميدبن عبدالرحمن ،مصعب بن سعيد، ابومالک ،عبدالله بن شداد ،عطاء بن ابی رباح ، امام جعفرصادق ،عمربن عبدالعزيز، امام محمدبن سيرين ، مروان بن الحکم ،سليمان بن اعمش کوفی ،مسروق ،امام ابوحنيفه ، امام قاضی ابويوسف ،امام محمد ،

امام مالک ،امام شافعی ،امام احمدبن حنبل ،امام اوزاعی ، سفیان ثوری ،اسحاق ،نووی ،بخاری رحمهم الله اونوردامت فقهاء رحمهم الله.

**پردې مسئله باندې دائمه اربعه اودجمهورو**

**داتفاق دنقل کوونکوحضراتو نومونه**

امام بخاری ، نووی ،علامه بدرالدین عینی ، ملاعلی قاری ، امام قرطبی ،شیخ زین الدین بن ابراهیم المعروف بابن نجیم الحنفی ، شیخ ابوبکررازی المعروف بالجصاص ، مولاناخلیل احمد سهارنپوری ،مولانا ظفراحمدعثمانی فی اعلاء السنن ، قاضی ثناء الله ،شیخ عبدالله ،احمدبن محمدبن قدامه فی کتابه المغنی ،سیدعبدالله بن مظفرحسین حیدرآبادی ،علامه ابن رشد ،علامه محمدامین المعروف بابن عابدین ،شیخ کمال الدین ، محمدبن عبدالواحدبن عبدالحمیدالمعروف بابن الهمام الحنفی ، شیخ محمودبن صدرالشریعة ،عبیدالله بن مسعودبن تاج الشریعة ، شیخ محمدامین الشنقیطی ،مفتی تقی عثمانی مصنف تکمله فتح الملهم ،علامه حبیب الرحمن الاعظمي اودامت نورفقهاء رحمهم الله.

حضراتوعلماء کرامورحمهم الله په یوه مجلس کي ددروطلاقونونافذیدل په هغواجماعي مسائلوکي شامل کړی دی ،دکوم په خلاف چي دقاضی قضاء هم نه نافذیږي ،بلکي دقاضی ددې خلاف فیصله دقبول وړنه ده ، ځکه چي دصریح قرآن اوسنت یااجماع امت خلاف دقاضی فیصله مردوده بلل کیږي لکه څرنګه چي په بحرالرائق کي دي:

ولاحاجة الی الاشتغال بالادلة علی ردقول انکروقوع الثلاث جملة لانه مخالف للاجماع کماحکاه فی المعراج ولذاقالوالوحکم حاکم بان الثلاث بفم واحدفواحدة لم ینفذحکمه لانه خلاف لااختلاف ( بحرالرائق ص: ۲۵۷ج: ۳ )

ترجمه: چي که چیري قاضی یاحاکم ددې اجماع په خلاف فیصله وکړي نوهغه نافذنه ده ،ځکه داخلاف دی اختلاف نه دی.



دپورته تفصیل مطابق هیڅ دفهم اودیانت خاوندته په دې کي شک نه پاتي کیږي چي همدامسئله حق ده چي په یوه مجلس کي درې طلاقونه درې سره واقع کیږي.

په تیروسویوصفحوکي دقرآن ،سنت ، آثارصحابه ، وتابعین ،فقهاءکرام ،ائمه مجتهدین ،مفسرین محدثین اود اجماع امت له تصریحاتوڅخه داحقیقت واضح کیږي چي دیوه مجلس درې طلاقونه درې سره شمیرل کیږي . ( دنیت دتاکیدصورت تربحث لاندي نه دی ) ددې مسئلي داثبات لپاره صرف دغه پورته دلائل کافي نه دي بلکي تردې پورته نورهم سته (خیرالفتاوی جلد: ۵ ص: ۴۵۰)

**په یوه لفظ سره ددروطلاقونوحکم**

دکباروعلماؤهیئت دسعودی حکومت دخپل یوشاهی فرمان په ذریعه سره دحرمین شریفین اودملک پرنورونامداروعلماؤمشتمل یوتحقیقاتي مجلس قائم کړ ، دکوموفیصله چي په ټولوملکي عدالتونوکي نافذیږي ، بلکي پخپله باچا( سلمه الله ) هم ددې پابنددی ، په دې مجلس کي دطلاق ثلاثه مسئله پیش سوه ، مجلس ددې مسئلي په اړه د قرآن اوحدیث له نصوصو پرته دتفسیر اوحدیث داووه څلوېښتوکتابونوله نبي کتني اوبنه حاصل بحث کولووروسته دکمېټۍ اکثریت په واضح الفاظوسره دافیصله وکړه چي په یوه لفظ ورکول سوي درې طلاقونه هم درې طلاقه دي.

دغه پوره بحث اومتفقه فیصله دسعودی حکومت ترنظرلاندي په رساله کي شائع سوی ،غیرمقلدین اکثره په مختلف فیه مسئلوکي اهل حرمین ددلیل په توګه پیشوي ،دافیصله هم دعلماء حرمین ده له دې وجي دټول امت مسلمه لپاره ده.

**دیوه مجلس درې طلاقونه**

**دقرآن اوحدیث اواقوال صحابه اوتابعینوپه رڼاکي**

## په یوه مجلس کې ددرو طلاقونو دواقع کېدو ثبوت له احادیثو څخه

### له فتاوی رحیمیه صفحه نمبر: ۳۳۰ څخه اقتباسات

داوېناچې په یوه وار په درو طلاقونو سره یو طلاق واقع کیږي قطعًا غلط او گمراه کوونکې دی دقرآن ،احادیثو، اجماع صحابه رضی الله عنهم ،علماؤ، سلفو، فقهاء ،مشائخ ،ائمه مسلمین ، حضرت امام ابوحنیفه ،امام مالک ،امام شافعي ،امام احمدبن حنبل رحمهم الله اوداسي نورووددین دبزرگانو دمتفقه فیصلې خلاف دی.

له دروطلاقونو وروسته له شرعی حلالې پرته نکاح کول صحیح نه دي ،اوپه خپلوکي دخاوندا وښځې په څیراوسېدل ناجائزاوقطعی حرام دي ،دواړه زناکاره اوبدکاره بلل کیږي.

یوه سړي له نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه چې له ( الطلاق مرتان ) وروسته دریېم چیري ذکردی ؟ نبی علیه السلام وویل ( التسریح باحسان ) هوالثالثة ،تسریح باحسان همدادریېم طلاق دی ،( روح المعاني دابوداؤدپه حواله ،تفسیرمظهری ، دابوداؤدپه حواله ،سنن سعیدبن منصورمردویه اردو )

اوپه قرآنکریم کې هم د( مرتان ) لفظ داثنان ( دوو ) په معنی استعمال سوی دی دالله تعالی ارشادمبارک دی : ( نؤتهااجرهامرتین ) سوره احزاب ، پ : ۲۲ اودقرآنکریم یوآیت دبل تفسیرکوي ، ددې اصول په نظرکې په نیولو سره په ( الطلاق مرتان ) کې هم همدامعنی اخستل مناسب دي لکه څرنګه چې همدامعنی امام بخاری رحمه الله هم فهمولې ده اوپه خپل مشهور کتاب صحیح بخاری کې یې په یوه وارددروطلاقونو دوقوع پرجائزکېدوباندې مستقل باب قائم کړی دی اوپه ترجمة الباب کې یې همداایت ذکرکړی دی.

طلاق خودنارېنه حق دی هغه دنکاح په ذریعه حاصل کړی دی ،ددې که هغه په جلا جلاتوګه استعمال کوي یایې په یوه واراستعمالوي ، کله چې یې څرنګه هم



استعمال کړي دهغه حق ختم کیږي ،ددې مثال داسی دی چې تاسوخپلې درې روپۍ په درومختلفووختونوکې خرچ کوئ ،یایې په یوه وخت کې په سوداا خستلو خرڅوئ په دواړه صورتونوکې داروپۍ ستاله ملک څخه وځي.

دحدیث ترجمه : له محمودبن لبیدرضی الله عنه څخه روایت دی هغه وایې چې نبی علیه السلام ته خبرورکړل سوچې یوسړی خپلې ښځې ته درې طلاقونه په یوه وارورکړل ، ،نبی علیه السلام په غضب سوتقریرېې وکړچې آیاله کتاب الله سره تاسولوبې شروع کړې حال داچې زه لاستاسوسره موجودیم ، دنبی علیه السلام داغصه چې ولیدل سوه نویوصحابی رضی الله عنه ودرېدعرض یې وکړیارسول الله صلی الله علیه وسلم آیازه یې قتل نه کړم ؟ ( نسائی شریف ص: ۷۹۱ ج:۲ ، مشکوة شریف ص: ۲۸۴ ج، اغاثة اللهفان ص: ۳۵۴ )

دحدیث ترجمه : دحضرت حسن رضی الله عنه بیان دی چې موږ ته حضرت ابن عمررضی الله عنه بیان کاووچې هغه خپلې ښځې ته دحیض په حال کې یوطلاق ورکړی ووبیایې اراده وکړه چې په دووطهرونوکې باقي طلاقونه ورکړي ،نبی علیه السلام ته خبرورسیدنوهغه صلی الله علیه وسلم وویل ای ابن عمر! داراز الله تعالی تاته حکم نه دی درکړی ، تادسنت طریقې خلاف کړې ( چې دحیض په حالت کې دې طلاق ورکړی ) سنت طریقه داده چې دطهرانتظاربه کیږي ، اوپه هرطهرکې به یوطلاق ورکوې له دې وروسته نبی علیه السلام ماته درجوع کولوحکم راکړ څرنګه چې مارجوع وکړه بیایې وویل چې کله هغه پاکه سوه نوتاته اختیاردی چې طلاق ورکوې یایې له ځان سره ساتې ،ابن عمررضی الله عنهما وویل بیامااله رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه چې یارسول الله صلی الله علیه وسلم مادرې طلاقونه ورکړل نوآیازماله پاره رجوع کول جائزکیږي ؟ رسول صلی الله علیه وسلم وویل نه په دې صورت کې مېرمن له تاجلاکیږي اوستادغه فعل چې ( په یوه واردې درې طلاقونه ورکړې ) ګناه ده (دارقطنی ص: ۴۳۸ ج:۲ )

دحدیث ترجمه: نافع رضی الله عنه وایې: چي کله له ابن عمررضی الله عنهما څخه دداسي سړي په هکله پوښتنه وسوه چي درې طلاقونه یې ورکړې وي نووي ویل که چیري یې یویادوه طلاقونه ورکړې وي (نورجوع کیږي)، ځکه چي نبی علیه السلام ماته ددې (یعنی درجوع کولو) حکم راکړی وواوکه یې چیري درې طلاقونه ورکړې وي نوښځه حرامیږي ترهغوپورې چي هغه له بل سړی سره نکاح وکړي اوهغه په خپله رضاطلاق ورکړي یاهغه څیني مړسي نوله عدې وروسته دمخکني خاوندلپاره حلالیږي (بخاری شریف، ص: ۷۹۲ج: ۲، ص: ۸۰۳ج: ۲)

په مسلم شریف کي هم دهغه فتوی نقل سوې: وکان عبدالله رضی الله عنه اذاسئل عن ذلك قال لاحدهم امانت طلقت امرأتك مرة اومرتین فان رسول الله صلی الله علیه وسلم امرنی بهذاوان کنت طلقتهاثلاثافقد حرمت علیك حتی تنکح زواجاغیرك وعصیت الله فیماامرك من طلاق امرأتك (مسلم شریف ص: ۴۷۲ج: ۱، سنن دارقطنی ص: ۴۳۸، ج: ۷، بیهقی ص: ۳۳۲ج: ۷) ددې دسندپه اړه ابن رجب ویلې دي: چي اسناده صحیح یعنی ددې سندصحیح دی (دکتاب الاشفاق په حواله) داروایت طبرانی هم روایت کړی دی.

ترجمه: عویمررضی الله عنه خپلې ښځې ته دنبی علیه السلام په مخکې درې طلاقونه ورکړل اورسول الله صلی الله علیه وسلم هغه نافذکړل (یعنی درې یې یونکړل) (ابوداؤدشریف ص: ۲۱۳ج: ۱)

ترجمه: عامرشعبی رحمه الله وایې مافاطمی بنت قیس ته وویل چي دخپل طلاق قصه ماته وکړه، هغې وویل چي زماخاوندپه یمن کي ووهغه له هغه ځایه ماته درې طلاقونه راواستول نونبی علیه السلام ددرې سره دواقع کېدوفتوی وکړه (ابن ماجه ص: ۱۴۷)

خلاصه داچي د فاطمه بنت قیس رضی الله عنهاله متعددروایاتو څخه ثابتیږي چي فاطمی رضی الله عنهاته دهغې خاونددرې طلاقونه په یوه وخت ورکړې وواونبی علیه السلام هغه درې سره واقع بللې وو، علامه ابن حزم هم داراجح



بللی دی اوله کوموروایاتو څخه چي ددې خلاف معلومیږي دهغویې جواب کړی دی (محلی ص: ۱۷۱، ۱۷۲ج: ۱۰)

له علی کرمه الله وجهه څخه روایت دی: هغه رضی الله عنه وایې چي نبی علیه السلام دیوسړی په هکله ویل چي هغه (البتة) طلاق ورکړی (له لفظ البتة څخه طلاق مرادیږي اوددروطلاقونو نیت هم کیږي) نبی علیه السلام په غضب سووي ویل چي دالله تعالی آیاتونه مومسخره جوړکړې دي چاچي دالبتة طلاق ورکړی دی موږدهغه پرذمه درې لازم کړي دي (بیادغه ښځه دهغه لپاره حلاله نه ده) تردې پورې چي هغه له بل سړی سره نکاح ونکړي (دراقطنی ص: ۴۳۳ج: ۲)

ترجمه: معاذبن جبل رضی الله عنه وایې چي نبی علیه السلام فرمایلې: چي کوم سړی په بدعی طریقه سره طلاق ورکړی وي یوطلاق وي یادوه یادرې طلاقونه وي نوموږهغه پرده باندي لازموو (دارقطنی ص: ۴۴۳، ۴۴۴ج: ۲، اغاثة اللهفان ص: ۳۵۵، ۳۵۲)

عبادة بن صامت رضی الله عنه بیان کوي چي دهغه پلارخپلې ښځې ته زر طلاقونه ورکړې وو، عباده رضی الله عنه نبی علیه السلام ته راغی اوواقعه یې ورته بیان کړه نونبی علیه السلام وویل دهغه ښځه په درې طلاقونوسره بائنه سوه اوهغه نورنه سوه اواوه نیوی ظلم اوتیری دی که الله تعالی وغواړي نوددې ظلم سزابه ورکړي اوکه وغواړي نومعاف به یې کړي (داحدیث طبرانی هم روایت کړی دی (مصنف عبدالرزاق، ص: ۳۹۳، ج ٦، فتح القدیرص: ۳۳۰ج: ۳)

له صفوان بن عمررضی الله عنه څخه روایت دی چي دیوې ښځې خاوندناخوښه وو (یووخت) هغه ویده وودا راغله پرسینه یې ورکښېښسته اوچاړه یې دهغه پرسینه ورکښېښوده اووي ویل چي ماته درې طلاقونه راکړه کنې حلالوم دي، خاوندقسم وکړ چي زه تاته په وروسته کي طلاق درکوم لیکن هغې انکاروکړ

مجبوره یې کړهغه ښځې ته درې طلاقونه ورکړل ) له دې وروسته هغه رسول صلی الله علیه وسلم ته راغلی اودمسئلې پوښتنه یې وکړه نونبی علیه السلام ورته وویل، په طلاق کې چشم پوشی نه کیږي یعنی پرطلاق باندې سترګې نه پوټیږي(انوارالسنن ص:۸۱۲)

دنبی علیه السلام اوعمراوابوبکررضی الله عنهماپه ابتدائی زمانه کې چې به کله(انت طالق ، انت طالق ،انت طالق ) وویل سونوعموماخلګودوهم اودریم طلاق دتاکیدپه نیت وایو،دجلانیت به یې نه وواوپه هغه زمانه کې په خلګوکې دینداري اوتقوی ، داخیرت ویره اودخدای ویره غالبه وه ، ددنیاپه خاطرددورغودبیان خطره په زړه کې هم نه راتله ، په اخیرت کې کوم چې ابدی دی اوداخیرت دعذاب دومره استحضاروو چې مجرم به پخپله حاضریدی دخپل جرم اقراربه یې کاوواوپرخپل ځان به یې دشرعی حدجاري کولوخواست کاوو پردې بناء باندې دهغوئ پرخبره اعتمادکېدی نودیوه طلاق ورکولوحکم کیدی په دې اعتبارپه حدیث کې دي : چې په هغه زمانه کې درې طلاقونه یوشمېرل کېدل مګرځرنګه چې له هغه وروسته زمانه سوه اوعجمیان هم حلقه بګوش په اسلام کې راداخل سول په هغوئ کې تقوی اوداخیرت ویره کمه ده اودمخکې په څیررښتیاویل ،امانتداري ،دینداري پکې نسته ددنیااوښځې په خاطردروغ وایې چې اندازه یې له دې واقعې څخه ښه کیږي:

حضرت عمررضی الله عنه ته له عراق څخه یوسرکاری خط راغی ، چې هلته یوسړی خپلې ښځې ته داجمله ویلې وه (حبلک علی غاربک ) یعنی ستارسی ستاپرغاړه ده ، عمربن خطاب رضی الله عنه خپل عامل ته ولیکل چې (ان مره ان یلاقینی بمکة فی اللموسم ) هغه ته ووایې چې دحج په موسم کې په مکه مکرمه کې له ماسره ووینه ، حضرت عمررضی الله عنه دحج په زمانه کې دکعبې شریفې طواف کاووچې هغه سړی (عراقی ) له هغه سره ولیدل اوسلام یې ورواچاووعمررضی الله عنه وویل ( من انت ) ته څوک یې ؟ هغه وویل ( اناالرجل



الذی امرت ان اجلب علیک ) زه هغه یم کوم چې تادحج په موسم کې طلب کړی ووعمررضی الله عنه ورته وویل تاته درب په کعبه قسم درکوم چې رښتیاووایه چې ستاله ( حبلک علی غاربک ) څخه نیت څه وو؟ هغه سړی وویل ( یاامیرالمؤمنین لواستحلفتنی فی غیرهذاالموضع ماصدقتک اردت بهذا الفراق ) ای امیرالمؤمنین که چیرې تاله دې مبارک ځای پرته بل ځای قسم راکړی وای نوصحیح مې نه درته ویل خوحقیقت دادی چې زماپه دې جمله سره مرادفراق یعنی ښځه له خپلې نکاح څخه جلا کېدل ووعمررضی الله عنه وویل ښځه دې ستاله ارادې سره سمه جلاوالی اختیارکړي ( موطاامام مالک ص : ۲۰۰، فی الخلیة والبریة واشباه ذلک )

تاسوددې دروغوددروازې بندولولپاره فیصله کوئ (چې خلګو په داسې شی کې جلدبازي شروع کړې په کوم کې چې هغوئ ځنډکول غواړي ) چې کوم سړی درې واره طلاق ورکړي موږهغه درې بولوصحابه کراموررضی الله عنهم په دې فیصله کې اتفاق کړی اوهیڅ یوه هم دعمررضی الله عنه مخالفت نه دی کړی لکه ځرنګه چې امام طحاوی رحمه الله لیکلې دي:

حضرت عمررضی الله عنه په دې وخت تولوخلګوته خطاب وکړپه دې کې هغه صحابه کرام رضی الله عنهم هم ووکوم چې په دې خبره خبرووچې دنبی علیه السلام په وخت کې دمطلقه ثلاثه څه حکم ووبیاهم په هغوئ کې یوه هم انکار ونکړاودعمررضی الله عنه ارشادیې ردنکړ ( طحاوی شریف ص: ۲۹ج:۲ )

محقق علامه ابن همام رحمه الله ویلې دي: لم ینقل عن احدمنهم انه خالف عمررضی الله عنه حین امضی الثلاث وهی یکفی فی الاجماع ! یعنی یوه صحابی رضی الله عنه هم دانه دي نقل کړې چې کله عمررضی الله عنه دصحابوورضی الله عنهم په موجودګۍ کې ددروطلاقونوفیصله کوله په هغوئ کې یوه هم دعمررضی الله عنه خلاف نه دی کړی اودومره خبره داجماع لپاره کافي ده

( حاشیه ابوداؤدص: ۳۰۲ج:۱)

کله چي دعمررضی الله عنه زمانه راغله اوخلګوددې جمله په کثرت سره استعمال شروع کړاوعمومادهغوئ نيت به له دوهمې اودرېيمې جملې څخه استيناف ( جلاکلام ) وو له دې وجې داجمله چي کله هم څوک استعمال کړي نودعرف پربنا باندې ددروطلاقونوحکم کيږي ( نووي شرح مسلم ص: ۴۷۸ج: ۱)

علامه ابن قيم رحمه الله ليکي: يعنی له ابن مسعود ،علی ،اوحضرت ابن عباس رضی الله عنهم اجمعين څخه په يوه واردروطلاقونولازم کيدل ببله شکه اوشبهې ثابت دي (اغاثة اللهفان ص: ۱۷۹) اوداسي په اعلام الموقعين کي هم دي:

مولاناسيدنذيرحسين صاحب دهلوی ليکلي دي: دصحابه کرامورضی الله عنه داعادت وڅي دنبی عليه السلام له اجازې پرته يې هيڅ يوشرعی اوددين حکم محض له خپل طرف څخه نه قائم کاوو (مجموعه فتاوی نذيريه ص: ۳۵۸ج:۱)

(۱) عن انس رضی الله عنه قال کان عمررضی الله عنه اذااتی برجل قد طلق امرأته ثلاثاًفی مجلس اوجعه ضرباً وفرق بينهما (مصنف ابن ابی شيبه ص: ۱۱ج:۵)

انس رضی الله عنه وايي: چي کله به عمررضی الله عنه ته داسي سړی راوستل سوچاچي به خپلې ښځې ته په يوه مجلس کي درې طلاقونه ورکړي وونوهغه رضی الله عنه به هغه ته سزاورکوله اوددواړوپه مينځ کي به يې تفريق کاوو.

(۲) زيدبن واهب رضی الله عنه وايي چي يوسړی عمررضی الله عنه ته راوستل سوهغه خپلې ښځې ته يوزرطلاقونه ورکړي وو، هغه عمررضی الله عنه وويل ،آياتاهغې ته دومره طلاقونه ورکړي ؟ هغه وويل مامسخرې کولې عمررضی الله عنه هغه ته ددرې سزاورکړه وي ويل چي تاته په زروکي صرف درې کافي وو(محلی ابن حزم ص: ۱۷۲ج:۱)

(۳) عمررضی الله عنه خپل والي ابوموسی اشعری رضی الله عنه ته خط وليکی په هغه کي داهم ليکلي وو( ومن قال انت طالق ثلاثاًفهی ثلاث ) کوم سړی چي ووايي تاته



درې طلاقونه نودرې واقع کيږي (سنن سعيدبن منصورص: ۲۵۹ج: ۳) قسم اول رقم الحديث نمبر۱۰۷۹)

## دخليفه راشدعثمان بن عفان رضي الله عنه فتوی

معاويه بن ابی يحيی بيان کوي چي يوسړی حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه ته راغی اوويل ويل ماخپلې ښځې ته زرطلاقونه ورکړي دي هغه رضی الله عنه جواب ورکړ(بانت منك بثلاث )يعنی ستاښځه له تاڅخه په دروطلاقونوسره جلاسوه.

## دخليفه راشدعلي کرم الله وجهه آثار

(۱) روی وکيع عن حبيب بن ابی ثابت قال جاء رجل الی علی بن ابی طالب قال انی طلقت امرأتی الفاً فقال له علی بانت منك بثلاث !(محلی بن حزم ص: ۱۳ج: ۱۰، سنن بيهقی ص: ۳۵۳ج: ۳، زادالمعادص: ۲۵۹ج:۲، مصنف بن ابی شيبه ص: ۱۳ج: ۵ ، ايضاص: ۱۴ج: ۵، فتح القديرص: ۳۳۰ج: ۳، طحاوی شريف ص: ۳۰ج:۲)

ترجمه: حبيب بن ثابت رضی الله عنه روايت کړی چي علی کرم الله وجهه ته يوسړی راغی ،وي ويل چي ماخپلې ښځې ته زرطلاقونه ورکړي . هغه رضی الله عنه ورته وويل چي په درې طلاقونوسره ښځه بائنه سوه.

علامه شوکانی هم په نيل الاوطارکي ويلي: چي زه دعلی کرم الله وجهه همدامسلک بيانوم چي هغه ددروطلاقونودواقع کېدوقائل وو(نيل الاوطارص :۲۴۵ج:۲)

په حقيقت کي دالويه ناپوهي اوکجروي ده چي دامت کوم جماعت اودهغه رسول په مينځ کي واسطه وي ،هغوئ دهغه له اقوالو ،افعالوترموږښه خبرهم دی پرهغوئ اعتماد نه کوي ،که چيري دخدای رسول صلی الله عليه وسلم په خپل ژوندمبارک کي پرهغه باندي غوښتی وای ، دکفاروله باچاهانو اوقبيلوسره يې دهغه دمعرفت خبره کړې وای نوبياهيڅ وجه نه وه چي امت پرهغه اعتمادنه وای کړی يوعالم ګيردين چي له کوم جماعت څخه راغلی که

چیري همدا جماعت ناقابل اعتمادوي نوبیادي په آئنده کي دي ددې دین خدای حفاظت وکړي.

ددې اهمیت په نظرکي په نیولوسره دفرقه ناجیه علامه ( مااناعلیه واصحابی ) په ښولوسره دصحابه کرامورضی الله عنهم سنت ته یومستقل حیثیت ورکړی دی ، داراز درسول الله صلی الله علیه وسلم طریقه دخدای تعالی له طریقې جلاکول صحیح نه دي دارازدصحابه کرامورضی الله عنهم سنت درسول صلی الله علیه وسلم له سنت څخه جلا نه دي له دې وجې دفرقه ناجیه لویه علامه داده چي هغوئ ددې دواړوطریقوکومې چي په حقیقت کي یوه طریقه ده په خپله خپله مرتبه کي دبزرګۍ اواحترام قائل دي ،بلکي پردې روان هم دي ،خوارجوصرف درسول صلی الله علیه وسلم سنت واخست اودصحابه کرامورضی الله عنه یوجماعت ته یې کافروویل دادوئ دپرناحق کېدو اولنۍ علامه ده.

دهجرت په شپږم کال دصلحې حدیبې پرموقع باندي چي کله عروه ثقفی دقریشوله طرفه دصلحې لپاره راغی نوپه کوموالفاظوکي چي دصحابه کرامورضی الله عنهم دوفاداری نقشه هغه دقریشوپه مخکي کیښوده له هغه څخه اندازه کیږي چي دیوه کافرپرزړه دهغه څومره لوئ اثرلویدلی وو وایې:

مادقیصراوکسری اونجاشي دربارلیدلی دی ،لیکن کوم دعقیدت منظرچي مادلته ولیدهلته نه وو، کله چي به رسول الله صلی الله علیه وسلم خبرې کولې نودهغوئ پرمحفل باندي به یودسکوت عالم عارض وو، یوه سړی به هم دهغه وطرفته نه کتل ، دهغه داوداسه اوبه اودهغه بلغم به یې مخکې ته نه پرېښوول هغوئ به په لاسونوراخستل اوپه خپلومخونواولاسونوبه یې مښل.

دصحابه کرامورضی الله عنهم له تاریخ څخه پته لګیږي چي هغوئ ترټولومخکې ( ترکتاب الله وروسته )دهغه صلی الله علیه وسلم دسنت تلاش کاووکه چیري به هغه پیدانسونوله هغه وروسته به یې په خپل اجتهادفیصله



کوله اوکه به چیري له دې وروسته هم سنت په لاس ورغی نودهغه اتباع به یې کوله اوله خپل قول څخه به یې رجوع کوله ،یوه واقعه به داسي ونښوول سي چي یوصحابی رضی الله عنه دي دنبی علیه السلام په یومعامله کي خپله فیصله اوروليې وي ،اودهغه له ثبوت وروسته دي بیادهغه دخلاف فیصلې په زړه کي هم خطره محسوس کړې وي.

له دې وجې په موجوده مسئله کي چي صحابه کرامورضی الله عنهم فتواوي کړې دي ،دامعلومیږي چي په وروسته کي دومره خبره ښه ثابتیږي چي درسول اللهصلی الله علیه وسلم فیصله هم همداده.

سهل بن ابی حثمه رضی الله عنه وایې : چي درسول الله صلی الله علیه وسلم په عهد مبارک کي شپږوحضراتودفتوی کارکاوودرې مهاجرین اودرې انصاروو (۱) عمرفاروق رضی الله عنه ( ۲ ) عثمان بن عفان رضی الله عنه (۳) علی مرتضی رضی الله عنه (۴) ابی بن کعب رضی الله عنه (۵ )معاذبن جبل رضی الله عنه (٦)زیدبن ثابت رضی الله عنهم اجمعین اومسعودبن مخرمه رضی الله عنه ویلې چي دټولوصحابه کرامورضی الله عنهم علم پردې شپږوحضراتوباندي پای ته رسیږي.

حضرت صدیق اکبررضی الله عنه ته چي به کله یومشکل راغی نودې شپږو حضراتوته به یې رجوع کوله ، بیادفاروق اعظم رضی الله عنه په دورکي هم همداصورت باقي وو چي ددغوحضراتوفتوی چلېده ( طبقات ابن سعدص : ۱۰۹ج:۲دثمرات الاوراق په حواله: ص:۱۹۲)

اوس دصحابه کرامورضی الله عنه فتواوي ستاسوپه مخکي عرض کول غواړو: په مصنف عبدالرزاق کي دي

### دعلي رضي الله عنه فتوی

له شریک بن ابی نمرڅخه روایت دی چي یوسړی علی کرم الله وجهه ته راغی اووې ویل ما خپلې ښځې ته دعرفج ددرختود حساب په برابرطلاقونه ورکړې دي

( علي رضی الله عنه ورته وویل چې په دغوکې درې واخله اونورباقي پرېږده
مصنف عبدالرزاق ص: ۳۹۴ج: ۲).

**دعبدالله بن مسعودرضي الله عنه فتوی**

مسروق اوعلقمه رحمهماالله وايي :چې عبدالله ابن مسعودرضی الله يوسړی ته کوم چې خپلې ښځې ته سل طلاقونه ورکړې وو(او يوبل سړی ته کوم چې خپلې ښځې ته نه نيوي (۹۹) طلاقونه ورکړې وو ) وويل چې په درې طلاقونوسره ښځه جلاسوه اوباقي پاتي ظلم ،عدوان اوزياتی دی .(محلی ص : ۱۲۷ج : ۱۰، مصنف ابن ابی شيبه ص: ۱۲ج: ۵، زادالمعادص: ۲۵۹ج: ۲)

**دعلي ، عبدالله اوزيدرضي الله عنهم فتوی**

حکم روايت کړی دی چې علی ، عبدالله بن مسعود ، اوزيدبن ثابت رضی الله عنهم اجمعين دغودرې سره حضراتوويلي دي چې که چيري غيرمدخوله منکوحه ته درې طلاقونه په يوه لفظ سره ( انت طالق ثلاثا ، تاته درې طلاقونه ) دي نودرې سره واقع کيږي اوښځه دخاوندلپاره نه حلاليږي ترڅوپوري چې يې له سړي سره نکاح نه وي کړې اوکه يې چيري په جلا ،جلا لفظونوسره طلاق ورکړی وي نوپه اول طلاق سره بائنه کيږي ( مصنف عبدالرزاق ص: ۳۳۶ج: ۲)

**دعبدالله بن مسعودرضي الله عنه فتوی**

علقمه رحمه الله وايي: چې يوسړی ابن مسعودرضی الله عنه ته راغی وي ويل ماخپلې ښځې ته نه نيوي (۹۹ ) طلاقونه ورکړي ،زه دمسئلې پوښتنې ته راغلی يم ماته جواب راکول سوی چې ښځه له ماڅخه جلاسوه ، ابن مسعودرضی الله عنه وويل ددې خلکو خواهش دادی چې په تاسودواړوکې تفريق وکړي ،داچې يې واورېدل هغه سړي وويل ته څه وايې ؟ له دې څخه هغه داګمان وکړچې شايدابن مسعودرضی الله عنه رخصت ورکړي ) اودرجوع کولوحکم ورته وکړي ) ابن مسعودرضی الله عنه جواب ورکړچې په دروطلاقونوسره هغه له تاجلا سوه اوباقي پاتي ظلم اوزياتی دی ( مصنف عبدالرزاق ص: ۳۹۵ج: ۲)



**دابن عباس رضي الله عنهمافتوی**

له ابن عباس رضی الله عنهماڅخه يوسړی ددې په اړه سوال وکړچې چاخپلې ښځې ته دستوروپه برابرطلاقونه ورکړې وي نوهغه ورته وويل چې دې سړی دسنت طريقې خلاف وکړل اودهغه ښځه پرده حرامه سوه ( دارقطنی ص: ۴۳۳ج :۲)

يوسړی ابن عباس رضی الله عنهماته راغی اووي ويل ای ابن عباس رضی الله عنهما ! ماخپلې ښځې ته سل طلاقونه په يوه وارورکړي دي آياهغه له ماڅخه په دروطلاقونوسره جلاکيږي ياهغه يوشميرل کيږي ؟ هغه ورته وويل په درې طلاقونوسره هغه له تاجلا کيږي اوپاته اووه نيوی ستاپروزرباندې بوج دي همدافتوی دابوهريره اوعائشی رضی الله عنهماهم وه.

يوسړی ابن عباس رضی الله عنهماته راغی اووي ويل ماخپلې ښځې ته زرطلاقونه ورکړي دي هغه رضی الله عنهما ورته وويل په دوئ کې درې واخله ( چې دښځې دحرامېدولپاره درې کافي دي اوخاوندددروطلاقونومالک دی ) اوپاتي ۹۹۷ پرېږده (مصنف عبدالرزاق ص: ۳۹۶ج: ۲)

عطاء رحمه الله وايي : يوسړی ابن عباس رضی الله عنهماته راغی اوويل ويل چې ماخپلې ښځې ته درې طلاقونه و رکړې دي ورته وي ويل چې ستاسوخلکوطريقه داده چې په ګندګي سره پوره ولړل سي بيانوماته راځئ څه ولاړسه تادخپل رب نافرماني کړې ،پرتاباندې ښځه حرامه سوه ، تردې وخته چې له بل سړي سره نکاح وکړي (کتاب الآثارص: ۳۰ج:۲)

**دابن عباس ، ابوهريره ، اوعبدالله بن عمرورضي الله عنهم فتوی**

محمدابن ایاس رحمه الله وایې : چي له ابن عباس ، ابوهریره اوعبدالله بن عمروبن العاص رضی الله عنهم اجمعین څخه سوال وسوچي غیرمدخولې ته خاوند په مجموع توګه (په یوه وار) درې طلاقونه ورکړي نوڅه حکم دی ؟ دغو درې سره حضراتو په یوه خوله ورته وویل چي دغه ښځه ددې سړی لپاره حرامه سوه تردې پوري چي هغه له بل سړی سره نکاح وکړي ( ابوداؤد ص: ۳۰۲ ج :۱)

نافع رحمه الله بیان کړی دی: چي له عبدالله بن عمررضی الله عنهما څخه چي به کله دداسي سړی په هکله پوښتنه وسوه چي خپلې ښځې ته یې درې طلاقونه ورکړي وي نوهغه رضی الله عنه به جواب ورکاوه چي که چیري یو واریادوه واره طلاق ورکول سوی وي نورجوع کولای سي ځکه چي رسول صلی الله علیه وسلم ماته هغې ته درجوع کولوحکم راکړی وولیکن که چیري درې طلاقونه یې ورکړي وي نوهغه حرامیږي تردې پورې چي له بل خاوند سره نکاح کوي ( بخاری شریف )

عبدالله بن عمررضی الله عنه ویلې دي : چي کوم سړی خپلې ښځې ته درې طلاقونه ورکړي نوهغه دخپل رب نافرماني وکړه ( مصنف ابن ابی شیبه ص: ۱۱ ج :۵)

له عبدالله بن عمررضی الله عنهما څخه دهغه چاپه هکله پوښتنه وسوه کوم چي خپلې ښځې ته سل طلاقونه ورکړي وي نوهغه رضی الله عنه وویل چي په دروطلاقونوسره خوښځه حرامه سوه اوباقي زیاتی دی (طحاوی شریف ص : ۳۱ ج: ۲)

### دابن عباس ، ابوهریره ، اوعائشي رضي الله عنهم فتوی

معاویه رضی الله عنه وایې چي ابن عباس ، ابوهریره ، اوام المؤمنین عائشه صدیقه رضی الله عنهم اجمعین دهغې ښځې په اړه کومې ته چي درې طلاقونه



ورکول سوې وي وویل چي اوس هغه دخاوندلپاره حلاله نه ده ترڅوپورې چي له بل خاوند سره نکاح ونکړي ( مصنف ابن ابی شیبه ص: ۲۲ ج: ۵ )

### دام سلمه رضي الله عنهافتوی

له جابررضی الله عنه څخه روایت دی چي له ام المؤمنین ام سلمه رضی الله عنها څخه دداسي سړی په اړه پوښتنه وسوه کوم چي خپلې ښځې ته ترکوروالی مخکې درې طلاقونه ورکړې ووهغې رضی الله عنها په جواب کي وویل اوس دهغې دخاوندلپاره حلال نه دي چي له هغې سره کوروالی وکړي.

### دمغیره بن شعبه رضي الله عنه اثر

طارق رحمه الله وایې : چي قیس بن ابی حازم رحمه الله له مغیره بن شعبه رضی الله عنه څخه روایت کړی دی چي له مغیره رضی الله عنه څخه دهغه چاپه هکله پوښتنه وسوه کوم چي خپلې ښځې ته سل طلاقونه ورکړي وي نوهغه رضی الله عنه وویل چي په دروطلاقونوسره خوښځه حرامه سوه اوباقي فاضل اوبېکاره دي ( مصنف ابن ابی شیبه ص: ۱۳-۱۴ ج: ۵ ، اغاثة اللهفان ص: ۳۲۹عن بیهقی )

### دعمران بن حصین رضي الله عنهمااثر

له عمران بن حصین رضی الله عنهما څخه دداسي سړی په هکله پوښتنه وسوه کوم چي په یوه مجلس کي خپلې ښځې ته درې طلاقونه ورکړې وي نوهغه رضی الله عنه ورته وویل چي هغه دګناه کاروکړاوپرهغه باندي ښځه حرامه سوه ( مصنف ابن ابی شیبه ص: ۱۰، ۱۱ ج: ۵، احکام القرآن للجصاص ص: ۳۸۳ ج: ۱، اغاثة اللهفان ص: ۳۷۱ )

### دانس رضي الله عنه اثر

شفیق رحمه الله وایې : چي انس بن مالک رضی الله عنه دهغه چاپه هکله کوم چي ترکوروالی مخکې خپلې ښځې ته درې طلاقونه ورکړې وي وویل چي درې طلاقونه واقع سوا اوس هغه ښځه دده لپاره حلا له نه ده ترڅوپوري چي هغه له بل

سړی سره نکاح ونکړي او عمررضی الله عنه ته چې به کله داسې سړی راوستل سونوهغه به سزاورکوله (سنن سعیدبن منصورص: ۲۲۰ج: ۳ قسم اول – رقم الحدیث: ۱۰۷۴)

شریح رحمه الله دعمررضی الله عنه مقررکړل سوی قاضی وو، دعمررضی الله عنه له زمانې نه واخله دعثمان، علی اومعاویه رضی الله عنهم ترزمانې پورې قاضی وو، دلویې کچې تابعی وو، دشعبی رحمه الله بیان دی چې یوه سړی شریح رحمه الله ته وویل چې ماخپلې ښځې ته سل طلاقونه ورکړې دي، قاضی شریح ورته وویل چې ښځه په درې طلاقونوسره جلا سوه باقي پاتي اووه نیوي اسراف اومعصیت دی.

مغیره له ابراهیم نخعی رحمه الله څخه روایت کوي چې که چیرې یوسړی نکاح وکړي اوترکوروالی مخکې درې طلاقونه ورکړي نوڅه حکم دی؟ هغه وویل که چیرې یې په یوه جمله سره درې طلاقونه ورکړې وي (یعنی داسې یې ویلې وي چې تاته درې طلاقونه) نوښځه دهغه لپاره ترهغه وخته چې له دوهم سړی سره نکاح کوي حلاله نه ده (مصنف ابن ابی شیبه ص: ۲۳ج: ۵)

امام شعبی رحمه الله وایې: چې کوم سړی خپلې ښځې ته درې واره دطلاق ورکولو اختیارورکړي اوښځه پرځان باندې یووارطلاق واقع کړي نو (درې طلاقونه واقع کیږي اوښځه له ده څخه جلاکیږي)

امام شعبی رحمه الله وایې: چې کوم سړی داارادہ وکړي چې هغه خپله ښځه بلکل له خانه جلا کړي هغه دې درې طلاقونه ورکړي.

یوسړی حسن بصری رحمه الله ته راغی اووې ویل ماخپلې ښځې ته زرطلاقونه ورکړې دي هغه رحمه الله ورته وویل: ښځه له تاجلا سوه (مصنف ابن ابی شیبه ص: ۱۴ج: ۵)

حزم بن حزم رحمه الله وایې: چې یوسړی له حسن بصری رحمه الله څخه دمسئلې پوښتنه وکړه چې تیره شپه یوسړی خپلې ښځې ته دنشې په حال کې درې



طلاقونه ورکړې دي هغه ورته وویل چې هغه اتیا(۸۰) درې ووهئ اودهغه ښځه له ده جلاکیږي (سنن سعیدبن منصورص: ۲۲۲ج: ۳ قسم اول – رقم الحدیث نمبر: ۱۱۰۰)

**دامام جعفرصادق رحمه الله اثر**

دامام جعفرصادق رحمه الله صریح فتوی ده چې له دروطلاقونووروسته ښځه له حلالې پرته نه حلالیږي عن ابان تغلب قال سألت جعفربن محمد (د عن رجل طلق امرأته ثلاثًا فقال بانت منه ولاتحل له حتی تنکح زوجًا غیره فقلت افتی الناس بهذا قال نعم (سنن دارقطنی ص: ۴۴۴ج: ۲)

**دعمربن عبدالعزیزرحمه الله اثر**

قال عمربن عبدالعزیزرحمه الله لوکان الطلاق الفا مابقت البتة منه شیئًا !(موطاامام مالک ص: ۱۹۹)

هغه ارشادکوي: چې که چیرې خاوندته دشریعت له لورې دیوزر طلاقونو ورکولو اختیارورکول سي اویوسړی خپلې ښځې ته د(البتة) په لفظ سره طلاق ورکړنویوبه هم باقي پاتي سوی نه وای (زرسره به واقع سوي وای) (سنن سعیدبن منصورص: ۳۹۰، ج: ۳قسم الاول رقم الحدیث نمبر: ۱۷۷۳)

نتیجه داچې: دعمربن عبدالعزیزرحمه الله په نزدهم په کلمه واحده سره درې طلاقونه واقع کیږي (سنن سعیدبن منصورص: ۳۲۲ج: ۳) قسم اول – رقم الحدیث نمبر: ۱۷۷۳)

مسروق رحمه الله وايي : چي کوم سړی خپلې غيرمدخولې ښځې ته درې طلاقونه ورکړي نواوس هغه دده لپاره حلا له نه ده تردې پورې چي له بل سړي سره نکاح ونکړي فقط والله اعلم بالصواب ( موطاامام مالک ص: ۲۲۰ )

ابن شهاب زهری رحمه الله وايي : چي که چيري يوسړی خپلې ښځې ته په ( البتة ) سره طلاق ورکړي نوهغه دي په حکم کي ددروطلاقونووبلل سي ( دګلدستې داول جلدپه حواله )

تمت بالخير

دترجمې دپای نېټه

۲۰۱۰-۳۴دسمبر

مولوي سفرمحمد[عابد]

